# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

## کتاب الجهاد والسِّیر (دوم)

**تالیف** ⬅ صدر وفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ⬅ مولانا حبیب حسین صاحب

**ترجمه** ⬅ مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم

**خصوصیات**

**جلد ۷**

① د احادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ د گرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ د حدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې دا حدیث په کوم کوم ځائې کښې دې

**خورونکی** فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم: کشف الباری عما فی صحیح البخاری

جلد: کتاب الجهاد والسیر (دوم)

شارح: صدر وفاق المدارس شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان مدظله العالی

ترتیب وتحقیق: مولانا حبیب حسین صاحب

پښتو مترجم: مولانا شاه فیصل فاضل امداد العلوم و وفاق المدارس
ایم اے اسلامیات وعربی پېښو ر یونیورسټی

# فہرست مضامین

## باب ۱۰۱: دعا النبي ﷺ إلى الإسلام والنبوة، وأن لا يتخذ بعضهم بعضا أربابا من دون الله

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## باب ۱۰۲: من أراد غزوة فورى بغيرها، ومن أحب الخروج يوم الخميس



## باب ۱۰۳: الخروج بعد الظهر



## باب ۱۰۴: الخروج آخر الشهر



## باب ۱۰۵: الخروج في رمضان



## باب ۱۰۶: التوديع

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## باب ۱۰۷: السمع والطاعة للامام



## باب ۱۰۸: یقاتل من وراء الامام ویتقی به



## باب ۱۰۹: البیعة فی الحرب أن لا یفروا، وقال بعضهم علی الموت

## باب ۱۱۰: عزم الامام على الناس فيما يطيقون

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

## باب - ۱۱۳ من غزا وهو حدیث عهد بعرسه



## باب - ۱۱۴ من اختار الغزو بعد البناء



## باب - ۱۱۵ مبادرة الامام عند الفزع

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## باب-۱۱۹: الاجیر

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## باب ۱۳۴: السرعة فی السیر



## باب ۱۳۵: إذا حمل علی فرس فرآها تباع

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



## باب ۱۳۸: من اکتتب فی جیش فخرجت امرأته حاجة، وکان له عذر، هل یؤذن له



## باب ۱۳۹: الجاسوس

| شمیرہ | مضمون | صفحہ |
|---|---|---|

## باب ۱۴۲: ألاسارى فى السلاسل



## باب ۱۴۳: فضل من أسلم من أهل الكتابين



## باب ۱۴۴: أهل الدار يبيتون، فيصاب الولدان والذرارى

## باب ۱۴۵: قتل الصبیان فی الحرب

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## باب ۱۵۱ حرق الدور والنخیل



## باب ۱۵۲ قتل النائم المشرك

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## باب ۱۵۴ الحرب خدعة



## باب ۱۵۵ الكذب في الحرب



## باب ۱۵۶ الفتك بأهل الحرب

## باب ۱۷۰: دواء الجرح بإحراق الحصير، وغسل المرأة عن أبيها الدم عن وجهه وحمل الماء في الترس



## باب ۱۷۱: ما يكره من التنازع والاختلاف في الحرب، وعقوبة من عصى إمامه

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## باب ۱۷۷ كتابة الامام الناس

باب ١٧٨ إن الله يؤيد الدين بالرجل الفاجر

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



باب ۱۸۰ العون بالمدد



باب - ۱۸۱ من غلب العدو فأقام على عرصتهم ثلاثا

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## باب ۱۸۴ من تكلم بالفارسية والرطانة

## باب - ۱۸۸ البشارة في الفتوح



## باب - ۱۸۹ ما يعطى البشير

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

باب ۱۹۰ لا هجرة بعد الفتح



باب ۱۹۱ إذا اضطر الرجل إلى النظر فی شعور أهل الذمة والمؤمنات اذا عصین الله وتجریدهن

## باب - ۱۹۲ استقبال الغزاة

## باب - ۱۹۵ الطعام عند القدوم

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

## باب ۹۸: هل يرشد المسلم اهل الكتاب او يعلمهم الكتاب

حدیث نمبر ۲۷۷۸ (۱) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَتَبَ إِلَى قَيْصَرَ وَقَالَ «فَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَإِنَّ عَلَيْكَ إِثْمَ الأَرِيسِيِّينَ». [ر: ۷]

**باب سابق سره مناسبت:** - په سابقه باب کښې د کافرانو د پاره د بد دعا ذکر وو دلته د خیر دعا یعنی د اسلام طرف ته رهنمائی او د قرآن د تعلیم چه د رشد او هدایت اصل او منبع ده د دې ذکر دې

**د ترجمة الباب مقصد:** د ترجمه دوه اجزا دی ① ارشاد المسلم اهل الكتاب ② تعليم القرآن لاهل الكتاب امام بخاری رحمه الله دلته خودل غواړی چه آیا مسلمان د اهل کتاب د حق طرف ته لار خودنه کولې شی که نه؟ او هغوی ته د قرآن کریم تعلیم ورکولې شی که نه؟ د رومبی جز باره کښې ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د اهل کتاب رهنمائی او هغوی ته د دین تعلیم ورکول په مسلمانانو حاکمانو باندې واجب دی او دا د هغوی په ذمه وارئی کښې شامل دی. (۲)

**کافرانو ته د قران د تعلیم ورکولو حکم:** - البته په دویم جز کښې اختلاف دې. د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله په نیز که کافر حربی وی که ذمی، هغه ته د قرآن، فقه او عام علوموخودلو کښې هیڅ حرج نشته ممکن دی چه هغه د دې علم په برکت سره د اسلام طرف ته راغب شی (۳) امام مالک رحمه الله مطلقًا ناجائز ګرځولې دی. د امام شافعی رحمه الله نه دواړه شان اقوال نقل دی (۴) امام احمد رحمه الله د اسلم قبلولو په شرط باندې جائز ګرځوی. د هغوی په نیز که د اسلام قبلولو امیدنه وی نو بیا کافرانو ته د قرآن تعلیم ورکول جائز نه دی. (۵)

**د احنافو دلائل** - امام طحاوی رحمه الله د احنافو د طرف نه مختلف دلائل ورکړی دی:

① هرقل ته چه کوم خط مبارک لیګلې شوې وو په هغې کښې د قرآن کریم پوره یو آیت موجود دې چه یقینًا د قرآن پاك تعلیم دې بلکه هغه په یو قسم باندې په زده کولو سره مجبور کړې شو چه هغه دې د قرآن په آیت باندې د پوهیدلو کوشش او کړی ځکه چه رومیان د عربی نه واقف نه وو آیت باندې بغیر د ترجمې نه شو پوهیدلې په معنی د پوهیدلو د پاره په قرآن پوهیدل او

---

(۱) قدمر تخریجه فی بدء الوحی. انظر كشف الباری: ۱/۳۷۷.

(۲) شرح ابن بطال: ۱۱۲/۵. وعمدة القاری: ۲۰۷/۱۴.

(۳) رد المحتار ۹/۷۱.

(۴) ایضًا.

(۵) المغنی لابن قدامة ۹/۷۸۹.

زده کول ضروری دی (۱)

② د الله تعالی فرمان ﴿ وَاِنْ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ فَاَجِرْهُ حَتّٰى يَسْمَعَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ اَبْلِغْهُ مَاْمَنَهٗ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُوْنَ ۝ ﴾ (۲)

وقال ابن أبي نجيح عن مجاهد في تفسير هذه الآية قال: إنسان يأتيك يسمع ما تقول وما أنزل عليك فهو آمن حتى يأتيك فتسمعه كلام الله.... إلى آخر ما قال (۳) یعنی که یو مشرك تانه پناه او امان او غواړی نو تاسو هغوی ته پناه ورکړئ دي د پاره چه هغوی د الله تعالی کلام واوری نو داهم د قرآن تعلیم دی

③ حضرت اسامه بن زید ﷺ په روایت په کوم کښې چه نبی کریم ﷺ د مشرکانو او یهودیانو په مجلس تیریدو او هغوی ته د قرآن اورولو ذکر دي د روایت الفاظ دا دی مر النبی صلی الله تعالی علیه وسلم علی عبدالله أبي قبل أن يسلم، وفي المجلس أخلاط من المسلمين والمشركين واليهود، فقرأ عليهم القرآن. (۴) رسول الله اکرم ﷺ د عبدالله بن ابی په خوا تیریدو کله چه هغه اسلام نه وو راوړلي په مجلس کښې مسلمانان مشرکان او یهودیان مختلف خلق شریك وو رسول الله ﷺ د دغه ټولو په وړاندې د قرآن کریم تلاوت اوفرمائیلو

④ حماد بن سلمة، حبیب المعلم نه نقل کوی چه ما د حضرت حسن بصری ﷺ نه معلومه کړه چه آیا زه ذمیانو ته قرآن لوستلي شم؟ هغوی اوفرمائیل ولې هغوی تورات او انجیل نه لولی؟ هغه هم د الله تعالی کتابونه دی. (۵)

**د مالکیه دلائل:-** ① د هغوی اولنې دلیل د قرآن کریم دا آیت دې ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا ۚ وَاِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيْكُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖٓ اِنْ شَاۗءَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝ ﴾ (۶) یعنی مشرکان خو هم نجس دی.

② د مالکیه استدلال د دې احادیثو نه هم دې په کوم کښې چه قرآن کریم سره د کافرانو د ملکونو طرف ته د سفر کولو نه نهی او ممانعت وارد شوې دې چه چرته قرآن مجید د کافرانو په لاس اونه لګی. ښکاره خبره ده چه په دې کښې د بې حرمتئ اندیښنه ده چنانچه په مسلم شریف کښې د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ یو روایت دې "نهی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم أن يسافر بالقرآن إلى أرض العدو" (۷)

---

۱) فتح الباری ۱۰۷/۲، عمدة القاری: ۱۴/۷، شرح ابن بطال: ۱۳/۵.

۲) سورة النور: ۶.

۳) تفسیر ابن کثیر: ۳۳۷/۲.

۴) عمدة القاری: ۲۰۷/۱۴. وشرح ابن بطال: ۱۱۳/۵.

۵) شرح ابن بطال: ۱۱۳/۵.

۶) سورة التوبة: ۲۸.

۷) صحیح مسلم کتاب الامارة، باب النهی أن یسافر بالمصحف إلى أرض الکفار إذا خیف... بأیدیهم (رقم الحدیث ۴۸۴)

رسول الله ﷺ د دښمن ملك ته قرآن مجيد او رلوسره سفر کولو نه منع فرمائيلي ده

دغه شان د صحيح مسلم يو بل روايت کښې دا اضافه ده " مخافة أن يناله العدو" يعنې قرآن خان سره په سفر کښې د اورلو د ممانعت وجه دا ده چه چرته قرآن د دښمن په لاس اونه لګی البته بعض مالکيه په کومو کښې چه علامه أبی ښکاره دي دعوت اسلام د پاره دوعظ په توګه د يو يا دوو آيتونو د جواز قائل دي (۱)

**د حافظ ابن حجر رحمه الله محاکمه** - حافظ صاحب فرمائی چه صفاسره خبره دا ده چه په دې مسئله کښې تفصيل دې د کوم سړی باره کښې چه دا اميدوی چه هغه به اسلام قبول کړی يا د هغه نه کم نه کم د نقصان خطره نه وی نو داسې سړی ته د قرآن پاك تعليم ورکولو کښې هيڅ حرج نشته خو داسې سړی د کوم باره کښې چه دا خبره معلومه شوې وی چه د قرآن زده کول د هغه د پاره فائده مند نه دی او چه داسې سړی قرآن زده کړی نو دين به پيغورونو او بداخلاقو نښه جوړ کړی نو داسې سړی ته د قرآن تعليم ورکول جائز نه دی (۲)

**د امام بخاری رحمه الله خيال** - امام بخاری رحمه الله د دې خبرې طرف ته مائل دې چه کافرانو ته لاړ خودلې شی او هغوی ته د قرآن تعليم هم ورکولې شی سرورکونين ﷺ چه قيصرروم ته کوم خط ورليکلې وو په هغې کښې دا دواړه خبرې مخې ته وې

**د حديث باب ترجمة الباب سره مطابقت** - نبی کريم ﷺ چه قيصرروم ته کوم خط ليکلې وو په هغې کښې د قرآن کريم يو پوره آيت هم موجود وو

﴿قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا ٱللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِۦ شَيْـًٔا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَقُولُوا۟ ٱشْهَدُوا۟ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ﴾ (۳)

د ترجمه دوه جزونه دی رومبی جز سره مناسبت خو "فان توليت" نه معلوميږی ځکه چه په دې جمله کښې د نه د هدايت او حق لارې طرف ته ښودنه کيږی "أسلم تسلم يؤتك الله أجرك مرتين" کښې ترغيب دې "فان توليت" کښې زجر او "فان عليك إثم اليريسيين" کښې وعيد دې دويم جز نه انطباق نامه مبارك ليکل ماخوذ دی (۴) او دا خو معلومه شوې ده چه په دې کښې د قرآن کريم آيت مذکوره موجود وو نو دا يقيناً هم د قرآن تعليم دې

**تنبيه** - د دې روايت تشريح وړاندې په تفصيل تيره شوې ده. (۵)

## باب ۹۹: الدعاء للمشركين بالهدى ليتألفهم

احديث نمبر ۲۷۷۹ (۶) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ قَالَ

---

۱) إکمال إکمال المعلم: ۵/۲۱۶.

۲) فتح الباری: ۶/۱۰۷.

۳) سورة آل عمران: ۶۴.

۴) عمدة القاری: ۱۴/۲۰۷.

۵) کشف الباری: ۱/۵۵۶.

۶) اخرجه البخاری فی کتاب المغازی: ۲/۶۳۰، باب قصة دوس والطفيل بن... [بقيه حاشيه برصفحه آئنده

قَالَ أَبُوهُرَيْرَةَ -رضي الله عنه قَدِمَ طُفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو الدَّوْسِيِ وَأَصْحَابُهُ عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنَّ دَوْسًا عَصَتْ وَأَبَتْ، فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهَا. فَقِيلَ هَلَكَتْ دَوْسٌ. قَالَ «اللّٰهُمَّ اهْدِ دَوْسًا وَائْتِ بِهِمْ». [۲۱۳۱، ۴۱۳۱، ۶۰۳۴]

**ماقبل سره ربط**:- د سابقه باب نه وړاندې باب ذکر شو "باب الدعاء على المشركين بالهزيمة والزلزلة" او دلته "باب الدعاء للمشركين بالهدى ليتالفهم" لکه چه دلته مناسبت کښې تضاد دې په ماقبل کښې د مشرکانو دپاره بددعا ذکر شوه او اوس دلته هغوی دپاره د هدايت ذکر کيږی

**د ترجمة الباب مقصد**: امام بخاری رحمه الله ددې باب په قايم کولو سره دا ښودل غواړی چه د مشرکانو دپاره د هدايت دعا کول جائز دی کله چه د هغوی د اسلام د قبلولو توقع وی (۱)

دلته دا خبره د ذکر قابل ده چه بعض وخت رسول الله ﷺ مشرکانو ته بددعا فرمائيلې او بعض وخت ئې د هغوی دپاره د هدايت دعا فرمائيلې ده دا د حالاتو د بدلون او تغير نتيجه ده کله چه به د مشرکانو په طاقت کښې زياتوالې کيدو نو د هغوی د طرف نه به مسلمانانو ته تکليفونه او سزاگانې رسولو سلسله اوږديده او مسلمانان به د هغوی د شر نه غير محفوظ کيدل نو نبی کريم ﷺ به مشرکانو ته بددعا فرمائيله لکه څنګه چه نبی کريم ﷺ د قريشو سردارانو دپاره بددعا فرمائيلې وه د کومې په نتيجه کښې چه د هغوی اکثر کسان په غزوه بدر کښې قتل کړې شو.

او کله چه به نبی کريم ﷺ د کافرانو د شر نه اطمينان او تسلی محسوس کوله او د اسلام طرف ته به ئې د هغوی توجه ته کتل نو د هغوی د هدايت دپاره به ئې دعا فرمائيله ځکه چه نبی کريم ﷺ ته د خلقو مسلمان کيدو او د هغوی د ايمان راوړلو زيات شوق وو په بددعا کولو کښې به نبی کريم ﷺ د تندئی نه کار نه اخستلو بلکه ډيره حده پورې به ئې احتياط فرمائيلو (۲)

لړشان گورئی چه حضرت طفيل رضی الله عنه د بددعا درخواست کوی او رسول الله ﷺ د هغوی دپاره د هدايت او خير دعا فرمائی يقيناً دا د حضور پاك د عظيم اخلاقو يو د کارنامه وه او د سرور کائنات فخر موجودات حضرت محمد مصطفی ﷺ د رحمة للعالمين کيدو يوه لويه نښه وه (۳)

**د حديث باب مختصر تشريح**:- حضرت طفيل بن عمرو دوسی رضی الله عنه د هجرت نه وړاندې مکه ته راغلې وو اسلام ئې قبول کړې وو بيا هغه خپلې قبيله ته د تبليغ دپاره واپس لاړو خو د هغوی والد صاحب او حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه بغير چا هم اسلام قبول نه کړو (۴) نو هغه واپس راغلو او نبی کريم ﷺ ته د قبيله دوس د نافرمانئی او سرکشئی شکايت او کړو او عرض ئې او کړو چه

---

.....بقيه از حاشيه گذشته] عمرو الدوسی (رقم ۴۳۹۲). وفی كتاب الدعوات: ۹۴۶/۲. باب الدعاء للمشركين (رقم الحديث:۶۳۹۷)، ومسلم: ۲۱۶ج ۲ فی فضائل الصحابه. باب من فضائل غفار وجهينة. (رقم الحديث: ۲۵۲۴)

(۱) فتح الباری: ۱۰۸/۶. وعمدة القاری: ۲۰۷/۱۴.

(۲) فتح الباری: ۱۰۸/۶. وعمدة القاری: ۱۰۷/۱۴. والقسطلانی: ۱۱۰/۵. وشرح ابن بطال: ۱۱۴/۵.

(۳) شرح الكرمانی: ۱۸۴/۱۲. والقسطلانی: ۱۱۰/۵.

(۴) الاصابة: ۲۱۰/۲-۲۰.

د رسول الله تاسو د قبيلې دوس دپاره بددعا اوكړئ نو حاضرينو اووئيل دوس دې برباد شى بعض رواياتو كښې دى چه حضرت طفيل ﷺ په قبيله دوس كښې سود او زنا غوندې خبيث وبا او اخلاقى بيمارو خوريدو شكايت اوكړو (۱) ليكن رحمة للعالمين ﷺ دعا كولو سره اوفرمائيل اې الله دوس ته هدايت اوكړې او هغوى مونږ له راولې.

**حضرت طفيل** ﷺ . ابن اسحاق په مغازى كښې صالح بن كيسان په طريق باندې نقل كړى دى چه نبى كريم ﷺ هغوى د قبيله دوس بت "ذوالكفين" ماتولو په مهم باندې روان كړې وو هغوى دغه بت په اور باندې اوسوزولو او ايره ئې كړو هغه وخت دوى دا اشعار لوستل:

ياذا الكفين لسنا من عبادكا ميلادنا أكبر من ميلادكا وقد حشوت السارفى فؤادكا (۲)

يعنى اې ذوالكفين مونږ ستا بنديګان نه يو زمونږ د تخليق مقصد ستا د تخليق د مقصد نه اوچت او غوره دې او ما ستا زړه د اور نه ډك كړې دې.

د حضرت طفيل بن عمرو ﷺ لقب "ذوالنور" وو د دې تفصيل وړاندې كتاب المغازى كښې راروان دې (۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** د رسول الله ﷺ دعائيه كلمات "اللهم اهد دوسا وائت بهم" سره د ترجمة الباب انطباق بالكل واضح دې. (۴) يعنى نبى كريم ﷺ د قبيله دوس د زړه ساتنې د خاطره هغوى ته د هدايت دعا اوفرمائيله.

## باب ۱۰۰: دعوة اليهود والنصارى، وعلى ما يقاتلون عليه، وما كتب النبى ﷺ إلى كسرى وقيصر، والدعوة قبل القتال

[حديث نمبر ۲۷۸۰] (۵) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - يَقُولُ لَمَّا أَرَادَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يَكْتُبَ إِلَى الرُّومِ، قِيلَ لَهُ إِنَّهُمْ لاَ يَقْرَءُونَ كِتَابًا إِلاَّ أَنْ يَكُونَ مَخْتُومًا. فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ، فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى بَيَاضِهِ فِي يَدِهِ، وَنَقَشَ فِيهِ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ. [ر: ۶۵]

**د ترجمة الباب مقصد:-** امام بخارى رحمه الله چه دلته كومه ترجمه قايم كړې ده د هغې څلور اجزا دى

① **دعوة اليهود والنصارى** يعنى اهل كتاب ته دعوة وركول پكار دى كه نه؟

② **على مايقاتلون عليه** يعنى په كوم بنياد باندې به هغوى سره جنګ كولې شى چه هغوى د توحيد منكرنه دې؟

③ **وما كتب الرسول صلى الله تعالى عليه وسلم إلى كسرى وقيصر** يعنى دغه دواړو ته د ليكلې

---

(۱) عمدة القارى: ۲۰۸/۱۴.
(۲) السيرة النبوية لابن هشام: ۳۸۵/۱. والاصابة: ۲۲۵/۲.
(۳) كشف البارى كتاب المغازى ص: ۶۱۳ – ۶۱۴.
(۴) عمدة القارى: ۲۰۸/۱۴. وفتح البارى: ۱۰۸/۶.
(۵) قدمر تخريجه فى كتاب العلم. انظر كشف البارى: ۱۷۶/۳.

شوی خطونو مضمون څه وو؟

④ الدعوة قبل القتال یعنی دَ جنګ نه وړاندې دَ دعوت ورکولو څه حکم دې؟ [۱]

**کافرانوته دَ جهادنه وړاندې دَاسلام دعوت دې ورکړې شی که نه؟** - په دې مسئله کښې اختلاف دې او درې مذاهب دی: ① دعوت ورکول مطلقًا واجب نه دی دَحافظ ابن حجر رحمه الله داقول امام شافعی رحمه الله طرف ته منسوب کړې دې [۲] حالانکه علامه نووی رحمه الله دامذهب دَ چاطرف ته دَ منسوب کولونه بغیرډیر ضعیف یا باطل ګرځولې دې [۳]

②دعوت مطلقًا واجب دې اوترهغه وخته پورې کافرانوسره جنګ جائزنه دې ترکومې چه هغوی ته دَاسلام دعوت ورنه کړې شی که هغوی ته دې نه وړاندې دَاسلام دعوت رسیدلې وی اوکه نه وی رسیدلې. [۴]

البته چه کوم یهود نصاریٰ اوغیرمسلم خلق دارالاسلام سره نیزدې اوسیږی دَهغوی دَپاره داحکم نه دې بلکه بغیردَ څه پیشګی اطلاع نه په هغوی حمله کولې شی ځکه چه هغوی په ګاوندکښې اوسیږی اودَ اسلام باره کښې معلومات لرې. اودهغوی په زړونوکښې دَ مسلمانانوخلاف دنفرت اوعداوت اُور لګیدلې دې اوهغوی یوشان په مسلمانانوحملې کوی او شرخوره وی داسې خلق دَ غفلت په حالت کښې راګیرول پکاردی

خوهغه خلق چه دَ دارالاسلام نه لرې دی هغوی ته به دعوت ورکولې شی اودهغوی دَ شکونواو شبهاتو دَ لرې کولوکوشش به کولې شی. بیاهم که هغوی نه منی نو هغوی سره به جنګ کولې شی. دادَ مالکیه مذهب دې [۵]

③که یوقوم ته دَ جنګ نه وړاندې دَاسلام دعوت نه وی رسیدلې نوپه داسې صورت کښې دعوت واجب دې اوبغیردَدعوت نه هغوی سره جنګ کول ناجائزدی. اوکه چرې دغه قوم ته دعوت رسیدلې وی نو په داسې صورت کښې دَ جنګ نه وړاندې دعوت ورکول مستحب دی هم دغه راجح اودَ جمهورائمه مذهب دې.

وهذاقول الحسن البصری والنخعی وربیعة واللیث وأبی حنیفة والثوری والشافعی وأحمد وإسحاق وأبی ثور. [۶]

**دَ مالکیه دلائل: - ړومبې دلیل:** ابن المنذر، عمر بن عبدالعزیز رحمه الله باره کښې نقل کوی فرمائی

---

[۱]) عمدة القاری: ۲۰۸/۱٤. وإرشاد الساری: ۱۱۰/۵.

[۲]) فتح الباری: ٤۷۸/۷.

[۳]) شرح النووی علی صحیح مسلم: ۸۱/۲. کتاب الجهاد. باب جواز الاغارة علی الکفار الذین بلغتهم دعوة الاسلام من غیر تقدم إعلام بالاغارة.

[۴]) المدونة الکبری: ۳/۲. وفیه "قلت: أکان مالکیری أن یُدعوا قبل القتال ولایری الدعوة قدبلغتهم قال: نعم"

[۵]) المدونة: ۲/۲.

[۶]) الهدایة: ۲ /۵۵۸ – ۵۵۹. کتاب الجهاد. وشرح النووی علی صحیح مسلم: ۸۱/۲ کتاب الجهاد: باب جواز الاغارة علی الکفار الذین بلغتهم دعوة الاسلام من غیرتقدم أعلام بالاغارة والمغنی: ۱۷۲/۹. مسالة (۷٤۳۶). وشرح ابن بطال: ۱۱۷/۵. والشامی: ۲٤۳/۳.

چه هغوی به د لښکر امراء، ته د جنګ نه وړاندې د دعوت ورکولو حکم ورکولو (١)

**دویم دلیل** حضرت علی رضی الله عنه به تر هغه وخته پورې حمله نه کوله ترکومې چه به هغوی دښمن ته دزې خل د اسلام دعوت نه ورکولو (٢)

**دریم دلیل** حدیث باب کوم چه د سهل بن سعد رضی الله عنه نه روایت دې د دې الفاظ په واضحه توګه د جنګ نه وړاندې دعوت ورکول مطلقا واجب کیدو باندې دلالت کوی خکه چه د خیبر یهودیانو ته د اسلام دعوت وړاندې رسیدلې وو خود دې باوجود نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل "

علی رسلك! حتی تنزل بساحتهم، ثم ادعهم إلی الاسلام....." صبر اوکړئی تردې چه تاسو د مشرکانو په علاقه کښې داخل شئی بیا هغوی ته د اسلام دعوت ورکړئی

**د جمهورو دلائل - رومبی دلیل** د ابورافع ابن ابی الحقیق او کعب بن اشرف قتل کوم چه په دهوکه سره اوکړې شو (٣)

**دویم دلیل** - نبی کریم صلی الله علیه وسلم په بنی المطلق باندې ناخاپی حمله کړې وه په کوم وخت چه د هغوی څاروو اوبه څکلې هغه خلقو د حضورپاك د دغه ناخاپی حمله طاقت رانوړلې شو اوهغوی ماتې اوخوړلو حضورپاك جنګ کونکی قتل کړل اوکوم چه ژوندی پاتې شو هغوی قید کړل (٤)

**دریم دلیل** - د سنن ابی داؤد روایت دې چه حضورپاك صلی الله علیه وسلم حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه ته حکم ورکړو چه "اُبنی" (٥) باندې د سحر په وخت حمله اوکړه او کلی ئی اوسوزولو (٦)

**څلورم دلیل** - صعب بن جثامة رضی الله عنه روایت کښې دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه د حمله کولو په نتیجه کښې هلاك کیدونکو ماشومانو اوښځو باره کښې معلومه کړه نو حضورپاك اوفرمائیل "هم منهم" یعنی د هغوی په دې وخت د وژلو هیڅ حرج نشته هغه هم د مشرکانو په حکم کښې دی (٧)

دا خبره بالکل واضحه ده چه حمله ناخاپی او په بې خبرئی کښې کولې شی هغه وخت دعوت ورکړې کیدې شی اونه هغوی خبردار کولې شی ګنی حمله به بې مقصده پاتې شی

د دې ټولو روایتونو نه دا خبره ثابته شوې ده چه کوم قوم ته دعوت رسیدلې وی هغوی ته د جنګ نه وړاندې دعوت ورکول واجب یا ضروری نه دی. ترکومې چه د دې احادیثو تعلق دې په کوم کښې چه د دعوت ورکولو ذکر دې نو د هغې محمل د جمهورو په نیز دا دې چه چرې یو د اسې

---

١) المدونة الکبری:٢/٣ وشرح ابن بطال:٥/١١٧.

٢) المدونة الکبری: ٢/٣.

٣) صحیح بخاری:٥٧٧-٢/٥٧٦، کتاب المغازی، باب قتل کعب بن الاشرف. (رقم:٤٠٣٧) وباب قتل أبی رافع عبدالله بن أبی الحقیق، رقم: ٤٠٤ - ٤٠٣٨.

٤) صحیح البخاری:٢/٥٩٣، کتاب المغازی باب غزوة بنی المصطلق من خزاعة رقم:٤٠٣٨ - ٤٠٣٩.

٥) أبنی: بضم الهمزة وسکون الموحدة وبعدها نون وآخرها ألف مقصورة، موضع من بلاد فلسطین بین عسقلان والرملة و "یبنی" أیضا کما فی الحدیث الاتی بعده. (رقم: ٢٦١٧)

٦) أبوداؤد، کتاب الجهاد، باب فی الحرق فی بلاد العدو (رقم: ٢٦١٦)

٧) البخاری:١/٤٢٣، کتاب الجهاد، باب أهل الدار یبیتون فیصاب الولدان والذراری: (رقم: ٣٠١٢).

قوم سره جنګ کولې شي نو دوباره هغوی ته دعوت ورکول مستحب دی (۱)

**پو اشکال او دهغې جواب:** دلته دا اشکال پیدا کیږی چه د حدیث صعب بن جثامة نه په بې خبرئ کښې د حملې کولو جواز معلومیږی خو د حضرت انس رضی الله عنه په حدیث باب کښې تر سحره پورې انتظار کولو او بیا د اذان په آواز باندې د فیصلې کولو ذکر دې یعنی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به په یو ه علاقه کښې د اذان اواز اوریدلو یا د اسلام څه ظاهری علامت به نی لیدلو نو حمله به نی نه کوله ګنې حمله به نی کوله لکه چه په حدیث صعب بن جثامة نه ثابتیږی چه د غفلت په حالت کښې حمله کول مباح ګرځولې شی خو د حضرت انس رضی الله عنه حدیث د دې برعکس دې

**جواب:** په دې دواړو احادیثو کښې هیڅ تعارض نشته ځکه چه د صعب رضی الله عنه حدیث تعلق هغه خلقو سره دې کوموته چه اول دعوت رسیدلې دې په داسې خلقو باندې په غفلت کښې حمله کولې شي. او د حضرت انس رضی الله عنه تعلق داسې خلقو سره دې کوموته چه تر دغه وخته پورې دعوت نه وی رسیدلې یا د هغوی حالاتو نه مسلمانان پوره واقفیت نه وی (۲)

**دموجوده وخت د کافرانو حکم:** د دې تفصیل نه معلومه شوه چه زمونږ د زمانې کافرانو ته د اسلام دعوت ورکول مستحب دی واجب نه دی. د دعوت نه بغیرهم هغوی سره جنګ کولې شی ځکه چه هغوی د اسلام د صداقت او پیغام نه ښه خبر دی چنانچه امام شافعی رحمه الله فرمائی:

لاأعلم أحدًا من المشركين لم تبلغهم الدعوة اليوم (۳) د امام احمد رحمه الله نه هم دغه قول نقل دې (۴)

د احنافو هم دغه مذهب دې ځکه چه دعوت اسلام هرطرف ته خورشوې دې او د نن صباجدید دور کښې چه ذرائع ابلاغ ښه ترقی کړې ده. دا خبره لرې معلومیږی چه یو قوم یا کس ته د اسلام دعوت نه وی رسیدلې. خو داهم کیدې شی چه د دنیا په یو ګوټ کښې داسې قومونه آباد وی کوموته چه تر دغه وخته دعوت نه وی رسیدلې په داسې صورت کښې هغوی ته دعوت ورکول واجب دی. په تاتارخانیه کښې دی چه داسې قومونه کوموته چه دعوت رسیدلې دې خو هغوی ته دا نه ده معلومه چه مسلمانان جزئیه هم قبلوی په داسې صورت کښې هغوی سره تر هغه وخته پورې جنګ جائز نه دې تر کومې چه هغوی ته د جزئیې باره کښې خبر نه کړې شی. (۵) والله اعلم وأتم وأحکم

**د لفظ قیصر معنی:** قیصر په رومی ژبه کښې هغې ته ونیلې شي د چاخیټه چه پرې کړې شوې وی. د هرقل مور د حمل په حالت کښې وفات شوې وه نو د هرقل د مور خیټه شلولو سره راویستې وو. هغه به په دې کار فخر کولو چه هغه د شرمګاه په لار نه دې راغلې (۶)

---

[۱] ) المغنی: ۱۷۲/۹. مسالة (۷۴۳۶) وشرح ابن بطال: ۱۱۸/۵.

[۲] ) شرح ابن بطال: ۵/ ۱۲۰-۱۱۹.

[۳] ) شرح ابن بطال: ۱۱۷/۵.

[۴] ) المغنی: ۱۷۲/۹. مسالة: ۷۴۳۶.

[۵] ) البحر الرائق: ۷۵/۵. وفتح القدیر: ۱۹۶/۵. وردالمختار: ۲۴۴/۳. والتناوی التتفارخانیة: ۲۲۷/۵-۲۲۶. کتاب السیر. الفصل الثانی فی بیان شرائط جواز قتال الکفرة.

[۶] ) عمدة القاری: ۲۰۸/۱۴. وأرشادالساری: ۱۱۰/۵.

**په خطونو باندې د مهر لګولو حیثیت** - قرآن کریم کښې د حضرت سلیمان علیه السلام نوم مبارک ته کتاب کریم ونیلې شوې دې حافظ سیوطی رحمه الله درمنثور (١) اوامام طبری رحمه الله په خپل تفسیر کښې د دې معنی مهر لګولې شوې کړې ده (٢) بل د نبی کریم ﷺ نه یو روایت نقل دې "کرامة الکتاب ختمه" یعنی د خط عزت خود هغې مهر دې. (٣) داحدیث په کتاب العلم کښې په تفصیل سره تیرشوې دې (٤)

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی د ترجمة الباب څلور اجزادی اول جز سره مطابقت دادې چه رسول الله ﷺ په خط کښې هرقل ته د اسلام دعوت ورکړې وو هغه نصرانی وو. یهود هم په دې حکم کښې داخل دی ځکه چه هغوی هم اهل کتاب وو معلومه شوه چه اهل کتاب ته به هم د اسلام دعوت ورکولې شی (٥)

دویم جز سره داسې انطباق دې د هغه والا نامه مقصد چرته چه په واضح توګه هرقل او رومیانو ته دعوت اسلام پیش کول دی بل طرف ته د دې نه دا مطلب هم وتلې شی که چرې تاسو دا دعوت قبلولو سره اسلام قبول نه کړئی نو تاسو سره به جنګ کولې شی. د دې خبرې تصریح په وړاندې باب کښې د حضرت علی رضی الله عنه په روایت کښې راځی د دې نه معلومه شوه چه اسلام نه قبلولو په بنیاد باندې به هغوی سره جنګ کولې شی۔

دریم جز نه مطابقت بالکل واضح دې چه حضور پاك په دعوت اسلام باندې مشتمل مضمون نامه مبارك کښې اولیکل. او څلورم جز سره مطابقت داسې دې چه نبی کریم ﷺ رومیانو ته د توحید او نبوت محمدی (علی صاحبها الصلوات والتسلیمات) د تصدیق کولو دعوت ورکړو دا دعوت د جنګ نه وړاندې دې ځکه چه دې نه وړاندې د مسلمانانو اورومیانو په مینځ کښې هیڅ جنګ نه وو شوې. (٦)

[حدیث نمبر ٢٧٨١] (٧) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَبَّاسٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرَى، فَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ، يَدْفَعُهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرَى، فَلَمَّا قَرَأَهُ كِسْرَى خَرَّقَهُ، فَحَسِبْتُ أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ. [ر: ٦٤]

---

١) درمنثور: ١٠٦/٥.
٢) تفسیر الطبری، النمل ص: ٩٥. بل اوګورئی: شرح ابن بطال: ١١٥/٥.
٣) الجامع الصغیر: ٨٩/٢ وشرحه فیض القدیر: ٥٥٠/٤.
٤) کشف الباری: ١٧١/٣ – ١٧٥.
٥) عمدة القاری: ٢٠٩/١٤.
٦) عمدة القاری ٢٠٩/١٤.
٧) قدمر تخریجه فی کتاب العلم اوګورئی کشف الباری: ١٧١/٣.

**دَ بددعاكولووجه** - كسرى دَ رسول الله ﷺ خط مبارك شلولې وو داد نبوت دَ شان توهين دې لهذا نبى كريم ﷺ بد دعا اوكړه چه الله تعالى رب العزت دې دده سلطنت ټكړې ټكړې كړې واضحه دې وى چه دين پورې توقې كول اودې توهين كول كفردې اوددين په معاملاتو كښې بې خايه مداخلت اوگستاخى كونكې سياستاً قتل كولې هم شى الله تعالى دغه كبيره گناه كفر گرخولوسره فرمائيلى دى ﴿ وَلَئِن سَأَلْتَهُمْ لَيَقُولُنَّ إِنَّمَا كُنَّا نَخُوضُ وَنَلْعَبُ ۚ قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ ۝ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ﴾ يعنى كه چرې ته ددوى نه تپوس اوكړې نودوى به زراووائى چه مونږ خوهسې گپ شپ او زړه خوشحالولو تاسو دهغوى، ته اووايئى آيا تاسو دَ الله تعالى آياتونو اودهغه رسول ﷺ سره توقې كولې؟ عذر مه بنايئى بيشكه تاسو خلقو دَ كفر ارتكاب كړې دې دَخپل ايمان نه پس.

معلومه شوه چه دخط شلول او دَدين توهين او شان رسالت كښې گستاخى وه دَ كوم په وجه چه كسرىٰ دَ بددعا موجب شو.[1]

**تنبيه**:-دلته په نوروآياتونوكښې په خائى دَ "خرقه" "مزقه" واردشوې دې[2] دَ دواړو معنى ذره ذره كول شلول ده.[3] يعنى داسې قوم هيڅ كله كامياب كيدې نه شى چه دَ حكومت واك اختيار ئى ښځوته حواله كړې وى.[4]

**دَ روايت ترجمة الباب سره مطابقت**:- په دې روايت كښې راغلى دى "بعث بكتابه الى كسرىٰ" مطابقت هم په دې جمله كښې دننه دې.[5] دَ دې حديث متعلق نورتفصيل كتاب العلم لاندې تيرشوې دې.[6]

## باب ۱۰۱ : دعاالنبى ﷺ الى الاسلام والنبوة، وأن لايتخذ بعضهم بعضاً أرباباًمن دون الله

وَقَوْلِهِ تَعَالَى (مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللَّهُ) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ. [آل عمران ۷۹]

**دَترجمة الباب مقصد**:- په دې باب كښې امام بخارى رحمه الله دَتيرشوو ابوابو كوم چه دعوت سره متعلق وو دَهغې نور وضاحت كولوسره خودل غواړى چه نبى كريم ﷺ دعوت اسلام سره سره دَنبوت اقرار او دَ شرك نه دَ خلاصى عوت هم وركولو داخوښكاره خبره ده چه يهود اونصارى سره دَدې چه اهل كتاب دى حضرت عزير عليه السلام او حضرت عيسى عليه السلام ته دخدائى درجه

---

[1] ) شرح ابن بطال: ۱۱۵/۵.

[2] ) البخارى، كتاب العلم، باب مايذكر فى المناولة وكتاب أهل العلم بالعلم إلى البلدان. (رقم: ٦٤) وكتاب المغازى، باب كتاب النبى صلى الله عليه وسلم إلى كسرىٰ وقيصر رقم (٤٤٢٤). كتاب أخبار الاحاد، باب ماكان يبعث النبى صلى الله عليه وسلم من الامروالرسل واحداً بعد واحد. رقم (٧٢٦٤).

[3] ) تقدم تخريجه. كشف البارى. كتاب العلم ص: ۱۷۵.

[4] ) حواله بالا. بل اوگورئى عمدة القارى: ۲۱۰/۱٤.

[5] ) پورتنئ حواله .

[6] ) كشف البارى. كتاب العلم ص ۱۷۶.

ورکوله دَ الله تعالى ارشاد دې ﴿ وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرُ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللَّهِ ﴾ (١) يعنى يهودوونيل چه عزير عليه السلام دَ الله تعالى خونى دې او نصارىٰ ونيل حضرت مسيح عليه السلام دَ الله تعالى خوى دې حالانكه دادواړه بشردى او بشرد خدائى اهل نه دې

امام بخارى رحمه الله دَدې باب لاندې هغه روايات نقل كړى دى په كوم كښې چه اهل روم چه نصرانى وو اواهل خيبرچه يهود وو دوى ته دَ توحيد، نبوت محمدى ﷺ او دَ شرك نه دَخلاصى دعوت وركولوذكردې.

**دَ ايت دَ ذكر كولو مقصد** - دَدې آيت مبارك دلته ذكركولومقصد په هغه خلقو باندې ردكول دى چه خلقوته دَالله تعالى دَ عبادت په ځائى دَ خپل عبادت دعوت وركوى لكه چه دَ اهل كتابودَ طورطريقې ذكركولوسره الله تعالى ارشاد فرمائيلې ﴿ كُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ (٢) يعنى ته الله تعالى پريږده زما بنده جوړشه. او بل ارشاد دې ﴿ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ (٣) يعنى اې عيسىٰ عليه السلام بن مريم آياتادې خلقوته ونيلى ووچه تاسو ما او زما مور معبودان جوړكړئى دَالله تعالى نه بغير؟ او بل ارشاد دې ﴿ اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ﴾ (٤) هغوى خپل عالمان او پيران خپل رب جوړكړل دَالله تعالى نه سوا. يعنى يو داسې سړې چه الله تعالى ورته كتاب حكمت او نبوت ورعطا كړې دې هغه سره دا مناسب نه دى چه هغه دې خلق دَ الله تعالى دَ عبادت طرف ته دَ متوجه كولو په ځائى دَخپل ذات طرف ته متوجه كړى.

نوچه كله يورسول يا نبى دَپاره داخبره بنه نه ده چه هغوى دَالله تعالى مقرب ترين او خوبن بنديګان دى نودَ نورو دَپاره كه هغه ولى وى يا عالم وى څنګه به نه وى. دَ غيرالله عبادت كول به په طريقه اولى ناجائز وى ليكن اهل كتاب دَ خپلو علماؤ او راهبانو دَ الله تعالى په شان عبادت كولو لكه چه دَالله تعالى ارشاد مبارك دې ﴿ اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَالْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ ۚ وَمَآ اُمِرُوْٓا اِلَّا لِيَعْبُدُوْٓا اِلٰهًا وَّاحِدًا ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۗ سُبْحٰنَهٗ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴾ (٥) يعنى هغوى خپل عالمان او خپل پيران دَالله تعالى نه سوا خپل رب جوړكړل او مسيح ابن مريم هم حالانكه هغوى ته صرف ددې خبرې حكم وركړې وو چه هغوى دې هم دَ يوخدائى بندګى كوى.

[حديث نمبر ٢٧٨٢] (٦) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - كَتَبَ إِلَى قَيْصَرَ يَدْعُوهُ إِلَى

(١) التوبه: ٣٠.
(٢) آل عمران: ٧٩.
(٣) المائدة: ١١٦.
(٤) التوبة: ٣١.
(٥) ايضاً.
(٦) أخرج البخارى طرقه فى كتاب الجهاد، باب هل يرشد المسلم أهل الكتاب أو يعلمهم الكتاب؟ (رقم ٢٥٣٦)

الإسلام، وبعث بكتابه إليه مع دحية الكلبي، وأمره رسول الله - صلى الله عليه وسلم - أن يدفعه إلى عظيم بصرى ليدفعه إلى قيصر، وكان قيصر لما كشف الله عنه جنود فارس مشى من حمص إلى إيلياء، شكرا لما أبلاه الله، فلما جاء قيصر كتاب رسول الله - صلى الله عليه وسلم - قال حين قرأه التمسوا لي ها هنا أحدا من قومه لأسألهم عن رسول الله - صلى الله عليه وسلم -

قال ابن عباس فأخبرني أبو سفيان أنه كان بالشأم في رجال من قريش، قدموا تجارا في المدة التي كانت بين رسول الله - صلى الله عليه وسلم - وبين كفار قريش، قال أبو سفيان فوجدنا رسول قيصر ببعض الشأم فانطلق بي وبأصحابي حتى قدمنا إيلياء، فأدخلنا عليه، فإذا هو جالس في مجلس ملكه وعليه التاج، وإذا حوله عظماء الروم فقال لترجمانه سلهم أيهم أقرب نسبا إلى هذا الرجل الذي يزعم أنه نبي قال أبو سفيان فقلت أنا أقربهم نسبا. قال ما قرابة ما بينك وبينه فقلت هو ابن عمي، وليس في الركب يومئذ أحد من بني عبد مناف غيري. فقال قيصر أدنوه. وأمر بأصحابي فجعلوا خلف ظهري عند كتفي، ثم قال لترجمانه قل لأصحابه إني سائل هذا الرجل عن الذي يزعم أنه نبي، فإن كذب فكذبوه. قال أبو سفيان والله لولا الحياء يومئذ من أن يأثر أصحابي عني الكذب لكذبته حين سألني عنه، ولكني استحييت أن يأثروا الكذب عني فصدقته، ثم قال لترجمانه قل له كيف نسب هذا الرجل فيكم قلت هو فينا ذو نسب. قال فهل قال هذا القول أحد منكم قبله قلت لا. فقال كنتم تتهمونه على الكذب قبل أن يقول ما قال قلت لا. قال فهل كان من آبائه من ملك قلت لا. قال فأشراف الناس يتبعونه أم ضعفاؤهم قلت بل ضعفاؤهم. قال فيزيدون أو ينقصون قلت بل يزيدون. قال فهل يرتد أحد سخطة لدينه بعد أن يدخل فيه قلت لا. قال فهل يغدر قلت لا، ونحن الآن منه في مدة، نحن نخاف أن يغدر. قال أبو سفيان ولم يمكني كلمة أدخل فيها شيئا أنتقصه به لا أخاف أن تؤثر عني غيرها. قال فهل قاتلتموه أو قاتلكم قلت نعم. قال فكيف كانت حربه وحربكم قلت كانت دولا وسجالا، يدال علينا المرة وندال عليه الأخرى. قال فماذا يأمركم قال يأمرنا أن نعبد الله وحده لا نشرك به شيئا، وينهانا عما كان يعبد آباؤنا، ويأمرنا بالصلاة والصدقة والعفاف والوفاء بالعهد وأداء الأمانة. فقال لترجمانه حين قلت ذلك له قل له إني سألتك عن نسبه فيكم، فزعمت أنه ذو نسب، وكذلك الرسل تبعث في نسب قومها، وسألتك هل قال أحد منكم هذا القول قبله فزعمت أن لا، فقلت لو كان أحد منكم قال هذا القول قبله قلت رجل يأتم بقول قد قيل قبله. وسألتك هل كنتم تتهمونه بالكذب قبل أن يقول ما قال فزعمت أن لا، فعرفت أنه لم

يَكُنْ لِيَدَعَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ وَيَكْذِبَ عَلَى اللَّهِ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ فَزَعَمْتَ أَنْ لاَ، فَقُلْتُ لَوْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قُلْتُ يَطْلُبُ مُلْكَ آبَائِهِ. وَسَأَلْتُكَ أَشْرَافُ النَّاسِ يَتَّبِعُونَهُ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ فَزَعَمْتَ أَنَّ ضُعَفَاءَهُمْ اتَّبَعُوهُ، وَهُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَزِيدُونَ أَوْ يَنْقُصُونَ فَزَعَمْتَ أَنَّهُمْ يَزِيدُونَ، وَكَذَلِكَ الإِيمَانُ حَتَّى يَتِمَّ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ سَخْطَةً لِدِينِهِ بَعْدَ أَنْ يَدْخُلَ فِيهِ فَزَعَمْتَ أَنْ لاَ، فَكَذَلِكَ الإِيمَانُ حِينَ تَخْلِطُ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوبَ لاَ يَسْخَطُهُ أَحَدٌ، وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَزَعَمْتَ أَنْ لاَ، وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ لاَ يَغْدِرُونَ. وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَاتَلْتُمُوهُ وَقَاتَلَكُمْ فَزَعَمْتَ أَنْ قَدْ فَعَلَ، وَأَنَّ حَرْبَكُمْ وَحَرْبَهُ تَكُونُ دُوَلاً، وَيُدَالُ عَلَيْكُمُ الْمَرَّةَ وَتُدَالُونَ عَلَيْهِ الأُخْرَى، وَكَذَلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلَى، وَتَكُونُ لَهَا الْعَاقِبَةُ، وَسَأَلْتُكَ بِمَاذَا يَأْمُرُكُمْ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَعْبُدُوا اللَّهَ وَلاَ تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا، وَيَنْهَاكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ، وَيَأْمُرُكُمْ بِالصَّلاَةِ وَالصِّدْقِ وَالْعَفَافِ وَالْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ، وَأَدَاءِ الأَمَانَةِ، قَالَ وَهَذِهِ صِفَةُ النَّبِيِّ، قَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ خَارِجٌ، وَلَكِنْ لَمْ أَظُنَّ أَنَّهُ مِنْكُمْ، وَإِنْ يَكُ مَا قُلْتَ حَقًّا، فَيُوشِكُ أَنْ يَمْلِكَ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ، وَلَوْ أَرْجُو أَنْ أَخْلُصَ إِلَيْهِ لَتَجَشَّمْتُ لُقِيَّهُ، وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ لَغَسَلْتُ قَدَمَيْهِ. قَالَ أَبُو سُفْيَانَ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُرِئَ فَإِذَا فِيهِ «بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ، إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ، سَلاَمٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى، أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الإِسْلاَمِ، أَسْلِمْ تَسْلَمْ، وَأَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللَّهُ أَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ، فَإِنْ تَوَلَّيْتَ فَعَلَيْكَ إِثْمُ الأَرِيسِيِّينَ وَ(يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَنْ لاَ نَعْبُدَ إِلاَّ اللَّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ). قَالَ أَبُو سُفْيَانَ فَلَمَّا أَنْ قَضَى مَقَالَتَهُ، عَلَتْ أَصْوَاتُ الَّذِينَ حَوْلَهُ مِنْ عُظَمَاءِ الرُّومِ، وَكَثُرَ لَغَطُهُمْ، فَلاَ أَدْرِي مَاذَا قَالُوا، وَأُمِرَ بِنَا فَأُخْرِجْنَا، فَلَمَّا أَنْ خَرَجْتُ مَعَ أَصْحَابِي وَخَلَوْتُ بِهِمْ قُلْتُ لَهُمْ لَقَدْ أَمِرَ أَمْرُ ابْنِ أَبِي كَبْشَةَ، هَذَا مَلِكُ بَنِي الأَصْفَرِ يَخَافُهُ، قَالَ أَبُو سُفْيَانَ وَاللَّهِ مَا زِلْتُ ذَلِيلاً مُسْتَيْقِنًا بِأَنَّ أَمْرَهُ سَيَظْهَرُ، حَتَّى أَدْخَلَ اللَّهُ قَلْبِي الإِسْلاَمَ وَأَنَا كَارِهٌ.ار ٧]

دذي حديث تخريج اوتشريح په تفصيل سره تيره شوې ده[1] خويوڅوخبرې بيا هم دذكرقابل دى:

① دا روايت په بدء الوحی کښې تيرشوې دې هرقل يولس سوالونه کړی دی او په ترتيب سره حضرت ابوسفيان ﷺ دهغې يولس واړو سوالونوجوابونه ورکړې دی بيا هرقل په ترتيب سره په دغه جوابونو باندې تبصره کړې ده خود بدء الوحی په ترتيب کښې څه اختلال واقع شوې دې البته دکتاب الجهاد ترتيب اولی دې[2]

---

[1]) كشف الباري: ۱/ ٤٥٧ – ٤٧٧.

[2]) كشف الباري: ١/ ٥١٥.

② **لما أبلاه الله**:- أبليته، أبليه، أبلاء دَ باب افعال نه دى نو دَدې معنى دَخير كيږى او بلوته بلاء دَ باب نصر نه معنى شر كيږى قال الله تعالى ﴿ وَنَبْلُوكُم بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ﴾ (۱) "من أبلي فذكر فقد شكر" (۲) يعنى چاته چه يونعمت وركړې شو او هغه الله تعالى يادكړو نو هغه شكراداكړو او په حديث كعب بن مالك كښې دى "ماعلمت أحدا أبلاه الله أحسن مما أبلاني" (۳) يعنى زه يو مسلمان نه پيژنم (دَ رښتياوَ وجه) چه الله تعالى ورته دومره وركړې وى څومره نى چه ماته راكړى دى.
او ابتلاء په خيراوشر دواړو معنوكښې استعماليږى دَدې اصل معنى امتحان او ازميښت دې اوس دَ دې عبارت مطلب داشو چه كله الله تعالى قيصر ته په ايرانيانو باندې فتح وركړه نو هغه دَ شكرانې په توگه "حمص" دَشام نه "ايلياء" بيت المقدس ته تلې وو (۴)
③ **ببعض الشام**:- دې نه مراد مشهور ښار غزة دې (۵) چه اوس په فلسطين كښې واقع دې
④ **فتكون لهاالعاقبة**:- په صحيح بخارى كښې بعض طرق سره په ځائى دَ لها لهم راغلې دې (۶) په دواړو صورتونو كښې ضمير الرسل طرف ته راجع دې
**ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې چه دَ حديث په الفاظوسره په پوهه كښې راځى. (۷) يعنى دَ رسول الله ﷺ دَ خط الفاظ دى "من محمد عبدالله ورسوله" دا دَ نبوت دَ طرف نه دعوت دې بياوړاندې دى "فاني أدعوك بدعاية الاسلام" دادَ اسلام دعوت دې والله أعلم وعلمه أتم وأحكم

[حديث نمبر ۲۷۸۳] (۸) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِي حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رضى الله عنه - سَمِعَ النَّبِي - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ يَوْمَ

---

(۱) الانبياء: ۳۵.
(۲) أبوداؤد: ۳۰۷/۱. كتاب الادبباب شكر المعروف. رقم (۴۸۱۴) وفيه "فذكره".
(۳) البخارى: ۲۸۶/۱. كتاب الوصايا، باب إذا تصدق أو وقف بعض ماله أو دوابه. فهوجائز. رقم (۲۷۵۷) والابلاء بمعنى الاحسان والانعام كما فى قوله تعالى ﴿ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ﴾ الانفال: ۱۷.
(۴) النهاية لابن الثير: ۱۵۵/۱. عمدة القارى: ۲۱۳/۱۴.
(۵) عمدة القارى: ۲۱۳/۱۴.
(۶) انظر صحيح البخارى: ۳۹۳/۱ كتاب الجهاد باب قول الله تعالى ﴿ قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ﴾ رقم (۲۸۰۴) والحرب سجال و كتاب التفسير باب: ﴿ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ ﴾: ۶۵۳/۲. (رقم: ۴۵۵۳).
(۷) عمدة القارى: ۲۱۲/۱.
(۸) أخرجه البخارى: ۴۲۲/۱. فى كتاب الجهاد. باب فضل من أسلم على يديه رجل رقم (۳۰۰۹). وفى ۵۶۵/۱ . كتاب فضائل أصحاب النبى صلى الله تعالى عليه وسلم. باب مناقب على بن أبى طالب رضى الله عنه رقم (۳۷۰۱) وفى المغازى: ۶۰۳/۲. باب غزوة خيبر. رقم (۴۲۰۹/۴۲۱۰) ومسلم: ۲۷۸/۲. كتاب المناقب. باب ماجاء فى مناقب على رضى الله عنه. رقم (۳۷۲۴).

خيبر «لأعطين الراية رجلا يفتح الله على يديه». فقاموا يرجون لذلك أيهم يعطى، فغدوا وكلهم يرجو أن يعطى فقال «أين على». فقيل يشتكى عينيه، فأمر فدعى له، فبصق فى عينيه، فبرأ مكانه حتى كأنه لم يكن به شىء فقال نقاتلهم حتى يكونوا مثلنا. فقال «على رسلك حتى تنزل بساحتهم، ثم ادعهم إلى الإسلام، وأخبرهم بما يجب عليهم، فوالله لأن يهدى بك رجل واحد خير لك من حمر النعم». [۲۸۴۷، ۳۴۹۸، ۳۹۷۳]

رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ اوفرمائيل په خدائى چه زه به صبا جهنډا داسې يوكس ته حواله كوم د چا په لاس به الله تعالى فتح وركوى. ټول صحابه كرام ﷺ د دې نيك بختنى د حاصلولو د پاره په انتظاروو چه سحرشو نو رسول الله ﷺ د حضرت على ﷺ تپوس اوكړو نوورته اووئيلې شو چه هغوى د سترګو خوږيدو بيمارى ده هغه ئى راوغوښتلو اودهغوى په سترګو كښې ئى خپل لعاب مبارك اولګولې نودهغه تكليف داسې ختم شو لكه هډو وو نه

حضرت على ﷺ عرض اوكړو چه مونږ به د هغوى سره ترهغه وخته پورې جنګيږو تركومې پورې چه هغوى زمونږ په شان نه شى يعنى مسلمانان شى. حضورپاك اوفرمائيل لږ شان حصار شه كله چه ته دهغوى په علاقه كښې وركوز شې نوهغوى ته د اسلام دعوت وركړه او هغوى ته دهغوى د ذمه واروباره كښې اوښايه. والله كه يوسړى ته هم ستا د وجې نه هدايت ملاؤشو نودا ستادپاره د ډيرو سرو اوښانو نه بهتردى

**فائده:-** د حضرت على ﷺ سترګې خوږيدې د حضورپاك لعاب يعنى توكانړې لګيدوسره تيك شوې دادنبى كريم ﷺ معجزه ده

**يشتكي عينيه** يوبل روايت كښې "وكان به رمد" الفاظ واردشوى دى په دې كښې د سترګو خوږيدو تصريح ده.[1]

**حمرالنعم:** سره اوښان چه په عربو كښې ورته بهترين او ښكلې خيال كولې شى.[2]

**على رسلك:** رسل بكسرالراء وسكون السين. نرمئى اوتوقف ته وئيلى شى دلته محاورةً استعمال شوې دې يعنى لږ شان حصارشه په مزه او په عزت سره[3]

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** دلته ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله كښې دې. "ثم ادعهم إلى الاسلام"[4] چونكه دلته د يهودو دپاره داسلام د دعوت ذكردې اوښكاره خبره ده چه داسلام په دعوت كښې اقرار د نبوت ذكركول لازمى وى.

[حديث نمبر ۲۷۸۴/ ۲۷۸۵][5] حدثنا عبد الله بن محمد حدثنا معاوية بن عمرو حدثنا أبو إسحاق عن حميد قال سمعت أنسا -رضى الله عنه- يقول كان رسول الله -صلى الله

---

[1] صحيح بخارى :۱/۲۲۵. كتاب فضائل أصحاب النبى، باب مناقب على بن أبى طالب رقم (۳۷۰۲).
[2] القسطلانى: ۵/۱۱۴.
[3] مختار الصحاح للرازى: على رسلک بالكسرأى اتئدفيه كما يقال على هينتک.
[4] عمدة القارى: ۱۴/۲۱۳.
[5] قدمر تخريجه فى كتاب الصلوة، باب مايذكر فى الفخذ. رقم (۳۷۱).

علیه وسلم - إِذَا غَزَا قَوْمًا لَمْ يُغِرْ حَتَّى يُصْبِحَ، فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا أَمْسَكَ، وَإِنْ لَمْ يَسْمَعْ أَذَانًا أَغَارَ بَعْدَ مَا يُصْبِحُ، فَنَزَلْنَا خَيْبَرَ لَيْلاً.

رسول الله ﷺ چه به کله چرته غزوه ته تشریف اوړلو نو تر سحر کیدو پورې به نی حمله نه کوله د سحر په وخت کښې چه به نی د اذان آواز اوریدو نو منع کیدو به گنې حمله به نی کوله

حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا غَزَا بِنَا.

امام بخاری رحمه الله دلته حدیث انس رضی الله عنه په دویمه طریقه ذکرکوی (۱) دلته په روایت کښې اختصار دې مکمل روایت کتاب الصلوة، باب مایحقن بالاذان من الدماء کښې تیرشوې دې (۲)

[حدیث نمبر ۲۷۸۵] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - خَرَجَ إِلَى خَيْبَرَ فَجَاءَهَا لَيْلاً، وَكَانَ إِذَا جَاءَ قَوْمًا بِلَيْلٍ لاَ يُغِيرُ عَلَيْهِمْ حَتَّى يُصْبِحَ، فَلَمَّا أَصْبَحَ، خَرَجَتْ يَهُودُ بِمَسَاحِيهِمْ وَمَكَاتِلِهِمْ، فَلَمَّا رَأَوْهُ قَالُوا مُحَمَّدٌ وَاللَّهِ، مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ.

فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اللَّهُ أَكْبَرُ، خَرِبَتْ خَيْبَرُ، إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ». [ر: ۳۶۴]

دا د حدیث انس دریم طریق دې. لم یغر: د باب افعال نه اغارة معنی حمله کول

بمساحیهم: مَسَاحی، د مسحاة جمع ده کودالې ته وائی. سحوت الطین عن وجه الارض وسحیته معنی د زمکې نه خاوره راویستل. مَكَاتِلُ: د مِكْتَلٌ جمع ده توکرئی ته ونیلې شی (۴)

**د رسول الله ﷺ د توقف اوانتظار سبب:-** د حضورپاك د انتظار کولو مقصد حقیقت حال معلومول وو چه دې قوم ته د اسلام دعوت رسیدلې دې که نه؟ نبی کریم ﷺ به ترسحرپورې انتظار کولو دې د پاره چه د اذان یا بل شعاراسلام نه د هغوی د صحیح حالت علم اوشی (۵)

یواشکال اود هغې جواب:- بیا دلته حتی یصبح الفاظ دی اودې نه د سحر طلوع کیدل مراد دی په دې باندې اشکال کیږی چه د صحیح بخاری روایت کښې خیبر ته د راتلو وخت د سحر د طلوع کیدو وخت خودلې شی اود صحیح مسلم روایت کوم چه حماد بن سلمة عن ثابت عن انس په طریق سره نقل شوې دې په هغې کښې "فاتیناهم حین بزغت الشمس" (۶)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/ ۲۱۴.

(۲) صحیح البخاری: ۱/ ۸۶ (رقم ۶۱۰)

(۳) قدمر تخریجه فی کتاب الصلوة. باب مایذکر فی الفخذ. رقم (۳۷۱).

(۴) عمدة القاری: ۱۴/ ۲۱۵. وفتح الباری: ۶/ ۱۱۲.

(۵) عمدة القاری: ۱۴/ ۲۱۴.

(۶) صحیح مسلم: ۲/ ۱۱۱. کتاب الجهاد باب غزوة خیبر.

يعني د نمر د راختو وخت وو
په حقيقت کښې په دواړو روايتونو کښې هيڅ تعارض نشته ځکه چه حبيب پاك ﷺ لښکر سره د ښار په مضافات کښې داخل شوې نو هغه د سحر د طلوع کيدو وخت وو. هلته کښې حضور پاك غلس يعني په تياره کښې د سحر مونځ اداکړو او بياوړاندې روان شو. کوم وخت چه لښکر آبادئ ته داخل شو نو د نمر د راختو وخت وو. د غه وخت حضورپاك د خيبر په کوڅو کښې اس اوزغلولو. (١)

**الله أكبر، خربت خيبر**:- دلته دې څوك هم دا شك نه کوي چه دامقفي عبارت حضورپاك ځنګه اوفرمائيلو داخويه عام توګه د شعرخصوصيت وي او په قرآن کريم کښې ارشاد دې ﴿ وَمَا عَلَّمْنٰهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنْۢبَغِيْ لَهٗ ﴾ دا اشکال په دې وجه صحيح نه دې چه داعبارت شعر نه دې بلکه يومقفي عبارت دې. اوکه چرته شعريا موزون عبارت د نبي کريم ﷺ بلاتکلف صادرشوې نوبيا هم په هغې کښې د اشکال څه خبره نشته. (٢)

دلته يواشکال کيدې شي چه په خيبرباندې خولاتردغه وخته قبضه نه وه شوې نونبي کريم ﷺ خربت د ماضي صيغه ولې استعمال کړه؟

د دې دوه جوابونه دي: ① کيدې شي چه الله تعالى د حضورپاك غالب کيدل اود خيبرتباه کيدلو خبر نبي کريم ﷺ ته د اول نه ورکړې وي اود هغوى دا پيشنګوئى هم د دغه قبيل نه وي. ② داخبره هم ممکن ده چه دا خبره ئې د ښه فال په توګه فرمائيلې وي. رسول الله د يهوديانو په لاسونو کښې کدالې رمبې او ماتولو آلات وغيره کتلو سره ارشاد اوفرمائيلو. بل داخبره هم په خيال کښې ساتل پکاردي چه دا د عربو عام عادت دې چه د کومې واقعې راتلل په مستقبل کښې يقيني وي. هغه د ماضي په صيغه سره بيانوي. (٣) لکه څنګه چه په قرآن کريم کښې د قيامت واقعات د ماضي په صيغوسره بيانولې شي. (٤)

**قاعده فقهيه**:- حکم د ظاهرمطابق لګولې شي. د دې حديث نه دا فقهي قاعده هم مستنبط کيږي چه حکم په ظاهر باندې لګولې شي. رسول الله ﷺ صرف د آذان په اوريدو باندې د جنګ نه بنديدو او اذان خوصرف يوظاهري علامت دې. معلومه نه ده چه هغوى په حقيقت کښې مسلمانان شوي دي که د ځان بچ کولو دپاره اذان کوي. (٥)

**حديث باب سره د ترجمة الباب مطابقت**:- د دې حديث ترجمة الباب سره مطابقت ډير واضحه دې البته علامه عيني رحمه الله فرمائي چه د دې مطابقت "إن سمعه أذانا أمسك" نه په پوهه کښې ... ځکه چه ترجمه د اسلام د دعوت ده او په اذان سره د هغوى په اسلام دلالت کيږي. (٦)

---

(١) عمدة القاري: ٢١٥/١٤ وفتح الباري: ١١٢/٦.

(٢) ايضا.

(٣) عمدة القاري: ٢١٥/١٤.

(٤) كقوله تعالى ﴿ أَتٰىٓ أَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ﴾

(٥) فتح الباري: ١١٢/٦، وعمدة القاري: ٢١٥/١٤.

(٦) عمدة القاري: ٢١٤/١٤.

حضرت گنګوهی ﷫ فرمائی چه ترجمه سره مطابقت هم په دې جمله "فان سمعه أذاناأمسك" سره دې ښکاره خبره ده چه اذان هم د دعوت یوصورت دې دا یوه بله خبره ده چه داعی پخپله دعوی نه دې چاسره چه جنګ کول مقصود دې لهذا فی الجمله دا روایت دلته په ذکر کولوکښې هیڅ قباحت نشته (۱) خود شیخ الحدیث حضرت مولانا زکریا﷫ دا خیال دې چه د دې روایت دلته ذکرکول د تکلف نه خالی نه دی (۲)

[حدیث نمبر ۲۷۸۶] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ . فَمَنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ ، فَقَدْ عَصَمَ مِنِّى نَفْسَهُ وَمَالَهُ ، إِلاَّ بِحَقِّهِ ، وَحِسَابُهُ عَلَى اللَّهِ » رَوَاهُ عُمَرُ وَابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِىِّ صلى الله عليه وسلم [ ۲۵، ۱۳۳۵]

داحدیث په مختصرطرق سره مروی دې په دې کښې بعض طرق کښې اضافه ده او بعض کښې اختصار دلته د حضرت ابوهریره﷛ په روایت کښې صرف د توحید اقرار د ځان او مال د حفاظت دپاره کافی ګرځولې شوې دې خو په صحیح مسلم کښې هم د حضرت ابوهریره﷛ په روایت کښې توحید سره سره د رسالت اقرار هم د ځان اومال د حفاظت شرائطو کښې شامل دې د روایت الفاظ دا دی: حتی یشهدوا أن لا إله إلاالله وأن محمد رسول الله. (۴)

د حضرت ابن عمر﷠ روایت په کتاب الایمان کښې تیرشوې دې په هغې کښې د اقامت صلوة او ایتاء الزکوة اضافه ده. د روایت په الفاظو کښې أمرت أن أقاتل الناس حتی یقولوا لاإله إلاالله وأن محمدًا رسول الله ویقیموا الصلوة ویؤتوا الزکوة، فاذا فعلوا ذلك عصموا منی دماءهم وأموالهم إلا بحق الاسلام، وحسابهم علی الله. (۵) یعنی ماته حکم راکړې شوې دې چه خلقوسره جنګ اوکړم ترهغه وخته پورې چه د دې خبرې ګواهی ورکړی چه د الله تعالی نه علاوه بل څوك معبود نشته او محمد ﷺ د الله تعالی رسول دې. مونځ قایم کړنی اوزکوة اداکړنی کله چه دا درې واړه کارونه اوکړی نوزما نه به خپل ځان اومال محفوظ کړی مګر د اسلام په حق سره او د هغې حساب به په الله تعالی باندې وی

---

(۱) لامع الداری: ۲٤۸/۷.

(۲) حاشیة لامع الداری: ۲٤۹/۷.

(۳) أخرجه البخاری: ۱۸۷/۱، فی کتاب الزکوة، باب وجوب الزکوة، (رقم: ۱۳۹۹) و (۱۰۲۳/۲) فی کتاب استتابة المرتدین، باب قتل من أبی قبول الفرائض، رقم: ٦۹۲٤، ومسلم ۳۷/۱ فی کتاب الایمان، باب الامر بقتال الناس حتی یقولوا: لاإله إلاالله محمدرسول الله رقم: ۲۱، والترمذی: ۸۸/۲، فی کتاب الایمان الباب الاول رقم: ۲٦۰٦، والنسائی: ۳۳۵/۱ فی کتاب الزکوة، باب مانع الزکوة رقم: ۲٤٤۵ وفی إبی داؤد: ۳۵۵/۱ کتاب الجها... باب علی مایقاتل المشرکین رقم: ۲٦٤۰.

(۴) صحیح مسلم ۳۷/۱ کتاب الایمان باب الامر بقتال الناس.... رقم: ۲۱.

(۵) [illegible] اری: ۵/۱ کتاب الایمان باب فان تابوا وأقاموا الصلوة وآتوا الزکوة فخلوا سبیلهم: رقم ۷۵.

دغه شان دحضرت انس رضی الله عنه په روایت کښې استقبال قبله او اکل ذبیحه اضافه ده د روایت الفاظ دادی أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا لا إله إلا الله، فإذا قالوها وصلوا صلاتنا واستقبلوا قبلتنا وأكلوا ذبيحتنا، فقد حرمت علينا دماؤهم وأموالهم إلا بحقها، وحسابهم على الله [1] یعنی ماته حکم راکړې شوې دې چه زه خلقوسره جنګ اوکړم ترهغه وخته پورې چه ددې خبرې ګواهی ورکړی چه الله تعالی نه سوا څوك معبود نشته کله چه دا اووائی اوزمونږ په شان مونځونه قایم کړی زمونږ قبلې طرف ته (مانځه کښې) مخ اوګرځوی اوزمونږ ذبح کړې شوې ځاروی اوخوری نو په مونږ باندې دهغوی ځان اومال حرام شو مګر د څه حق په بدله کښې (یعنی دوینې قصاص) اودهغې حساب په الله تعالی باندې دې

د دې تفصیل نه معلومه شوه چه د روایت په الفاظوکښې کافی فرق دې په دې مختلفو الفاظو کښې تطبیق ورکول سره علامه طبری رحمه الله دا توجیح پیش کړې ده چه په کومو روایتونو کښې صرف د توحید اقرار ذکر دې دهغې تعلق بت پرست اومنکرین توحید سره دې د کوم باره کښې چه د الله تعالی ارشاد دې ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ﴾ [2] او په کومو روایتونوکښې د رسالت تصدیق اضافه ده دهغې ذکر حضورپاك هغه وخت فرمائیلې وو کوم وخت چه اهل کتاب سره جنګ کیدلو ځکه چه هغوی د توحید قائل وو خود حبیب پاك صلی الله علیه وسلم د نبوت په کلی توګه یا جزئی توګه منکر وو نوترکومې چه اهل کتاب د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نبوت تصدیق اونه کړی او حضورپاك نبی اونه منی هغوی سره به جنګ کیږی او هغوی به محقون الدم والمال نه شی تصور کولې. [3]

او په کوموروایتونوکښې چه د زیاتی عباداتو او معاملاتو اضافه ده په هغې کښې ددې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه کوم سړې مسلمان وی د توحید او نبوت اعتراف کوی او طاعات په ځائی نه راوړی هغه سره هم جنګ کولې شی تردې چه هغه په شریعت باندې عمل کونکې شی [4] یا داسې ونیلې شی چه په دې روایت کښې د توحید سره سره اهم اسلامی شعائر مونځ د قبله طرف ته مخ کول او ذبح ذبیحه ذکر دې او مطلب دادې چه د توحید او نبوت سره د اسلامی شعائر هم ضروری دی اوکه څوك دا شعائر په ځائی نه راوړی نوهغوی سره جنګ کیدې شی

**قوله**: أمرت أن أقاتل الناس: نبی که امرت په صیغه د مجهول اووائی نوددې مطلب دا وی چه الله تعالی ماته حکم راکړې دې اوکه چرې دامقوله د صحابی وی نوددې مفهوم به دا وی چه نبی ما ته حکم راکړې دې [5] الناس دا د عام او ارادة الخاص د قبیل نه

---

[1] ) صحيح البخاري: ٥٦/١ كتاب الصلوة باب فضل استقبال القبلة رقم: ٣٩١-٩٣.
[2] ) الصافات: ٣٥.
[3] ) عمدة القاري: ٢١٥/١٤. فتح الباري: ١١٢/٦. وشرح ابن بطال: ١٢٢/٥.
[4] ) فتح الباري: ١١٢/٦.
[5] ) عمدة القاري: ٢١٥/١٤.

دي دا دي نه مراد عام خلق نه دی بلکه دي نه مراد د عربو مشرکان دی د چانه چه جزئیه نه شی قبلولي اهل کتاب ترې مراد نه دی دا د دي تائید د سنن نسائی د دې روایت نه کیږی د کوم الفاظ چه دادی أمرت أن أقاتل المشركين [1] لکه چه الناس الف لام عهد خارجی دې د استغراق نه دې.

**قوله: حتى يقولوا لا إله إلا الله** :- دا تسمیه الکل باسم الجزء د قبیل نه ده دې نه مراد مکمل دین دې ځکه چه لا إله إلا الله د دین اسلام عنوان دې لکه چه څوك اووائی ما یس لوستلې دا عنوان دې مراد پوره سورت دې. [2]

**قوله: إلا بحقه** :- د اسلام حقونه درې دی ① هغه قتل کوم چه موجب قصاص وی ② زنا بعد الاحصان ③ ارتداد یعنی د اسلام قبلولونه پس بیا د کفر طرف ته واپس ګرځیدل که څوك په دې کښې چرته د یوهم رعایت نه کوی نو د هغوی ځان او مال به غیر محفوظ تصور کولې شی. [3]

**قوله: وحسابه على الله** :- یعنی که یو سړې د کلمې ونیلو سره په زړه کښې نفاق پټ ساتی نو د هغه د دې عمل مونږ ذمه وارنه یو مونږ خو به هم په ظاهر باندې حکم لګوو د زړه په حال خو الله تعالی خبر دې د هغې حساب هم د هغه په حواله دې د مخلصین د پاره ثواب او د منافقین د پاره عذاب به مقرروی. ګناهګارانو ته به سزا ورکولې شی یا د الله تعالی د رضا لاندې به معاف کولې شی. [4] د دې حدیث تفصیلی تشریح په کتاب الایمان کښې تیره شوې ده. [5]

د حدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت :- د حدیث شریف مطابقت ترجمة الباب سره دا سې دې چه دلته ذکر دی چه تر هغه وخته پورې به ورسره جنګ کولې شی تر کومې چه دا خلق لا إله إلا الله او نه وائی لکه چه دوی ته د لا إله إلا الله دعوت ورکولې شی د نه قبلولو په صورت کښې به دې سره جنګ کیږی والله اعلم.

**قوله: رواه عمر وابن عمر رضی الله عنهما عن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم** حضرت امام بخاری رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه دا روایت کتاب الزکوة کښې موصولاً ذکر کړې دې [6] د غه شان د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت هم کتاب الایمان کښې موصولاً نقل کړې دې. [7]

## باب ۱۰۲: من أراد غزوة فورى بغيرها، ومن أحب الخروج يوم الخميس

**د ترجمة الباب مقصد** :- دلته د ترجمة الباب دوه جزونه دی ① من أراد غزوة فوری بغیرها

---

[1] ) ارشادالساری: ۱۱۵/۵.
[2] ) شرح الکرمانی: ۱۹۳/۲.
[3] ) عمدة القاری: ۲۱۵/۱۴.
[4] ) عمدة القاری: ۲۱۵/۱۴.
[5] ) کشف الباری: ۳۳۱/۲. ۳۵۱.
[6] ) کتاب الزکوة باب وجوب الزکوة ۱۸۸/۱ رقم: ۱۳۹۹.
[7] ) صحیح البخاری: ۵/۱ کتاب الایمان باب فان تابوا وأقاموا الصلوة... رقم: ۲۵.

② ومن أحب الخروج يوم الخميس
رسول اکرم ﷺ که به د مشرق طرف ته سفرکولو نو د مغرب حالات به نې معلومول او چه د مغرب طرف ته چه به نې تشریف اوړلو نو د مشرق احوال به نې معلومول دې ته توریه ونیلې شي .[1]
غرض به په کښې دا وو چه دښمن ته د رسول الله ﷺ د اراده او عزم پته اونه لګي او هغوی د دفاع د پاره خپل تیارې مکمل نه کړی لیکن دا څه قانون نه وو چه همیشه به نې داسې کول لکه چه د غزوه تبوك په موقع باندې اوشو حضورپاك د جنګ د پوره تیاری حکم ورکړو څکه چه سفر اوږد او سخت وو او حضورپاك د خلقو نه صحیح صورت حال نه پټول غوښتل
امام بخاری رحمه الله دلته دا خودل غواړی که د توریه نه کار واخستې شي نو هیڅ بدیت نشته او دا دروغ نه دی او که دا حالاتو او ظروف دا تقاضاوی چه صفا صفا ورته اوخودلې شي نو بیا هم څه حرج نشته د دې هم ګنجائش شته.[2]
د دې نه پس دویم جزې د دې مقصد دا خودل دی چه د جمعرات په ورځ سفرکول ډیر خوښ کړې شوې دې خو ضروری نه دې.[3] د کوم تائید چه د طبرانی د یوضعیف حدیث نه هم کیږی د کوم الفاظ چه دا دی: بورك لامتي في بكورها يوم الخميس[4] لیکن علامه عینی رحمه الله فرمانی د جمعرات په ورځ د سفرحکمت په یوضعیف حدیث سره ثابتولو ضرورت نشته څکه چه په حدیث باب کښې تصریح هم وارد شوې چه نبی کریم ﷺ به د جمعرات په ورځ سفر خوښولو او د رسول الله ﷺ خوښوالې د یوحکمت نه خالي کیدې نه شي.[5]
نو د جمعرات یعنی زیارت په ورځ سفرکول د خیراوبرکت سبب دې او د جمعرات په ورځ سفرکول زیات مناسب دی څکه چه د رسول الله ﷺ ژوندزمونږ د پاره نمونه او د لارې مشال دې[6] د رسول الله ﷺ بعض سفرونه د هفتې په ورځ هم شوی دی کیدې شي چه حضورپاك په دغه ورځ باندې سفرکول هم خوښ کړی وی لکه چه بعض روایاتو کښې دی بارك الله لامتي في سبتها وخميسها[7] یعنی الله تعالی زما د امت د پاره د هفتې او زیارت دواړو ورځو کښې برکت

---

[1] ) التورية ويسمى الابهام أيضًا وهو أن يطلق لفظ له معنيان: قريب وبعيد. ويراد به البعيد یعنی چه د دوو معنووالا څه لفظ اوونیلې شی چه په هغې کښې یوه معنی قریب وی اوبله بعید اوچه بعید معنی مرادوی نو دا توریه ده لکه الرحمن على العرش (سورة طه) استواء معنی نیزدې نیغ اودریدل او بعید معنی د غالب راتلو ده. او هم دغه په آیت کښې مراد دې د دنور تفصیل د پاره اوګورئی تلخیص المفتاح مع شرحه مختصر المعانی ص: ٤٦٥ وانظر شرح الخطابی ١٤١١/٢.
[2] ) عمدة القاری: ٢١٦/١٤. وشرح ابن بطال: ١٢٣/٥. وفيض الباری: ٤٣٨/٣.
[3] ) فتح الباری: ١١٣/٦. وارشاد الساری: ١١٦/٥.
[4] ) فتح الباری: ١٤٠٩/٦ قدیمی.
[5] ) عمدة القاری: ٢١٦/١٤
[6] ) شرح ابن بطال: ١٢٣/٥.
[7] ) عمدة القاری: ٣٠١/١٤ دار الکتب العلمیة بیروت.

واچوي خود امام بخاري رحمه الله په نيز هم د يوم الخميس روايت ثابت دې په دې وجه هغوی هم دا روايت ذکر کړې دې [1]

[حديث نمبر ۲۷۸۷- ۲۷۹۰] [2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبٍ - رضي الله عنه - وَكَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيهِ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ حِينَ تَخَلَّفَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَلَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يُرِيدُ غَزْوَةً إِلاَّ وَرَّى بِغَيْرِهَا.

[۲۷۸۸] وَحَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا يُونُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ - رضي الله عنه - يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَلَّمَا يُرِيدُ غَزْوَةً يَغْزُوهَا إِلاَّ وَرَّى بِغَيْرِهَا، حَتَّى كَانَتْ غَزْوَةُ تَبُوكَ، فَغَزَاهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي حَرٍّ شَدِيدٍ، وَاسْتَقْبَلَ سَفَرًا بَعِيدًا وَمَفَازًا، وَاسْتَقْبَلَ غَزْوَ عَدُوٍّ كَثِيرٍ، فَجَلَّى لِلْمُسْلِمِينَ أَمْرَهُمْ، لِيَتَأَهَّبُوا أُهْبَةَ عَدُوِّهِمْ، وَأَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ الَّذِي يُرِيدُ.

[۲۷۸۹] وَعَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ - رضي الله عنه - كَانَ يَقُولُ لَقَلَّمَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَخْرُجُ إِذَا خَرَجَ فِي سَفَرٍ إِلاَّ يَوْمَ الْخَمِيسِ.

[۲۷۹۰] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ - رضي الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - خَرَجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ. [ر: ۲۶۰۶]

فوري:- د دې اصل وَرْئٌ دې کوم څيزچه شاته کيخودې شی اوکه چرې خبره صفاصفا بيان نه کړې شی بوداسې ده لکه چه شاته دې کيخودې وی اهل لغت دا وراء يعنی مهموز لولی او محدثين بغير د همزه په آسانتيا سره وری لولی

مفازا: د دې معنی ده د کاميابئ خانی اودا د صحرا د پاره استعماليږی کوم چه د هلاکت او بربادئ خانی دې دا تفاول يعنی نيک فالئ د پاره استعماليږی چه هغه خطرناك صحرا د کاميابئ او سلامتئ خانی ثابت شی لکه لديغ يعنی د مارتك وهلې ته سليم وئيلې شی [3]

---

[1] عمدة القاري: ۲۱۶/۱۴

[2] مر تخريج احاديث الباب فی كتاب الوصايا باب اذا تصدق او وقف بعض ماله او بعض رقيقه او ...... فهوجاز. رقم الحديث: ۲۷۵۷.

[3] شرح ابن بطال: ۱۲۷/۵. وعمدة القاري: ۲۱۷/۱۴.

او دَ ابن الاعرابى رائې داده چه دا فوز دَ تفويزنه ماخوذدې دَ كوم معنى چه هلاكت دې دا دَ قبيل اضدادنه دې معنى كاميابى اوخلاصې دې هم دغه شان دَدې معنى دَهلاكت هم ده [1] دَ صحرا نه مراد دَ مدينې منورې او شام په مينځمې فاصله كښې پريوتونكې صحرادې [2]

لقلما يعنى ډير زيات كم لام دَ تاكيددپاره دې لكه قل رجل يفعل كذا الازيد يعنى ډيركم څوك داسې كوى مګرزيد يعنى دَ رسول الله ﷺ اكثرسفرونه هم دَ جمعرات په ورځ وو

**قوله** فجلى للمسلمين أمرهم ليتأهبوا أهبة عدوهم فأهب للحرب يعنى نبى كريم ﷺ په مسلمانانو باندې دَ سفرطرف ښكاره كړودې دپاره چه صحابه كرام رضي الله عنهم دَ دښمن دَمقابله دَ پاره تيارشى.

من بنيه دَحضرت كعب بن مالك رضي الله عنه درې خامن وو عبدالله عبيدالله او عبدالرحمن په آخر كښې چه كله دَ كعب رضي الله عنه نظر په تللوشو نودَهغوى څوئى عبدالله به دَ هغوى رهنمائى كوله

## باب ۱۰۳: الخروج بعد الظهر

**دَ ترجمة الباب مقصد** - امام بخارى رحمه الله دلته دَ خروج بعد الظهر ذكر كړې دې په دې كښې دَ صخرغامدى رضي الله عنه دَ روايت طرف ته اشاره كول مقصود دى په كوم كښې چه دَ سحروخت ډيرَ بركت ګرځولې شوې دې دَ هغې الفاظ دادى اللهم بارك لامتى فى بكورها حضرت صخر رضي الله عنه فرمائى چه حضورپاك ﷺ چه به كله لښكر ليګلو نودَ ورځې په شروع كښې به ئې ليګلو راوى وائى چه حضرت صخر رضي الله عنه يوسوداګرسړې دې هغه به سحروختى خپل كاروزګار شروع كولو دَ كوم چه دانتيجه وه چه هغه دومره مالدارشوې وو چه هغه نه پوهيدلو چه خپل مال كوم ځائى او چرته كيږدى.

بعض حفاظو دَ دې روايت طرق راجمع كړو نومعلومه شوه چه داروايت دَ شلو صحابه كرامو رضي الله عنهم نه نقل دې [3] امام احمد او اصحاب سنن دَدې حديث تخريج كړې دې [4] او ابن حبان رحمه الله دَدې تصحيح كړې ده. [5]

دَدې روايت نه معلوميدله چه دَ ورځې په شروع كښې سفركول ډيرمناسب او بهتردى او په

---

[1] ) الصحاح للجوزى مادة فوز.

[2] ) شرح الكرمانى: ۱۹۳/۱۲.

[3] ) فتح البارى ۱۱۴/۶.

[4] ) أبوداؤد: ۳۵۱/۲، كتاب للجهاد باب فى الابتكار فى السفر رقم: ۲۶۰۶، والترمذى: ۲۲۰/۱ كتاب البيوع باب فى التكبير فى التجارة رقم: ۱۲۱۲، وابن ماجة و كتاب التجارات، باب مايرجى من البركة فى البكور رقم: ۲۲۴۶، وسنن الدارمى: ۲۸۳/۲، كتاب السير، باب بارك لامتى بكورها، رقم: ۲۴۳۵، وأحمد: ۴۱۶/۳، ۴۳۲، و ۳۸۴/۴، ۳۹، ۳۹۱.

[5] ) انظر الحسان بترتيب صحيح ابن حبان: ۱۲۲/۸ – ۱۲۳، ذكر مايستحب للمرء أن يكون إنشاء الحرب وابتداء الامور فى الاسباب بالغدوات تبركا بدعاء المصطفىٰ صلى الله تعالى عليه وسلم فيه رقم: ۴۷۳۵.

نورو وختونو كښې سفر كول مناسب نه دى امام بخارى رحمه الله دلته خودل غواړى چه وختونه ټول يوشان وى او يو وخت منحوس او سپيره نه وى اونه بې بركته وى د سحروخت ته د بركت وخت فرمائيلوسره دا لازم نه راځى چه نوروختونه د بركت نه خالى دى خود سحروخت د چستنى وى او په دې وخت سړې تكړه او تازه وى هغه وخت چه كوم كاركولې شى هغه بهتراو ښه وى اودغه وخت خلق دخپل خپل كارونو شروع كوى په دې وجه نبى كريم ﷺ په خاص توګه دغه وخت دپاره د بركت دعا فرمائيلې ده دې د پاره چه د رسول الله ﷺ د دعابركت تبولوته حاصل شى

رسول ﷺ چه كله د حج سفركړې دې نودماسپښين مونځ ئې په مدينه منوره كښې كړې دې او بيا هغه روان شوې دې او د مازيګرمونځ ئې ذوالحليفه كښې اداكړې دې ددې دپاره چه اول سفرپه نهاركښې نوبياهم ډيره ښه خبره ده اوچه د ورځې په آخره كښې وى نوهغه هم ټيك دې[1]

[حديث نمبر ۲۷۹۱] [2] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - صَلَّى بِالْمَدِينَةِ الظُّهْرَ أَرْبَعًا ، وَالْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ ، وَسَمِعْتُهُمْ يَصْرُخُونَ بِهِمَا جَمِيعًا .[ر: ۱۰۳۹]

يصرخون: بفتح الراء وضمها يعنى په زوره زوره ئى لبيك لبيك وئيل بهما: أى بالحج والعمرة[3]

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حديث ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې په روايت كښې راغلى دى چه رسول الله ﷺ څلور ركعته دماسپښين مونځ په مدينه منوره كښې اوكړو او په ذوالحليفه كښې د مازيګرمونځ په قصرسره اوكړو ښكاره خبره ده چه دماسپښين مونځ ئى په مدينه منوره كښې كړې دې نوسفرخوهم د ماسپښين نه پس شروع شوې دې[4]

## باب ۱۰۴: الخروج آخر الشهر

**د ترجمة الباب مقصد:-** دامام بخارى رحمه الله مقصد دلته دجهاليت ترديدكوى د اهل جهاليت به په اصل كښې داخيال كيدلو چه كه چرې د مياشت په آخره كښې سړې په سفرروانيږى نود مياشتې ختميدل نيزدې وى په دې وجه به هغوى د دې نه بدفالى اخستله چه څنګه د مياشت په آخره كښې عمركميږى دغه شان به زمونږ كارونه هم په تاوان كښې وى اوزمونږ مقصدبه فوت شى او زمونږ به په دغه مدعى كښې كاميابى حاصله نه شى خو رسول الله ﷺ خود دغه خرابو رسوماتو او غلطو عقيدودختمولودپاره راغلې وو په دې وجه نبى كريم ﷺ د حج د سفر دپاره د مياشت په آخره كښې روان شو[5]

علامه كرمانى رحمه الله فرمائى چه دامام صاحب مقصد دلته د دغه خلقو ترديد دې كوم چه د

---

[1] ) شرح ابن بطال: ۱۲٤/۵.

[2] ) مر تخريج فى كتاب تقصير الصلوة باب يقصر إذا خرج من موضعه رقم:۱۰۸۹.

[3] ) عمدة القارى: ۲۱۸/۱٤.

[4] ) ايضًا.

[5] ) شرح ابن بطال: ۱۲۵/۵ وفتح البارى: ۱۱٤/٦ وعمدة القارى: ۲۱۸/۱٤.

نجومیانو د کړنو مطابق د میاشت په آخر کښې سفرسپیره او ناخوښه ګڼړلو (۱) حضرت علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی د امام صاحب مقصد دلته د دې روایت د ضعف طرف ته اشاره کول دی په کوم کښې چه د میاشت آخره منحوس یعنی سپیره ګرځولې شوې دی (۲) نو بعض خلقو د فی یوم مستمر تفسیر د میاشتې آخری چارشنبې سره کړې دې (۳)
نو امام صاحب تنبیه اوفرمائیله چه دابې کاره خبرې دی ځکه چه نبی کریم ﷺ د میاشت په آخره کښې سفرکړې دې. (۴)

احدیث نمبر ۲۷۹۲] وَقَالَ كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضی الله عنهما - انْطَلَقَ النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - مِنَ الْمَدِينَةِ لِخَمْسٍ بَقِينَ مِنْ ذِي الْقَعْدَةِ، وَقَدِمَ مَكَّةَ لأَرْبَعِ لَيَالٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ.[ر ۱۴۷۰]

دلته روایت معلق دې امام بخاری رحمه الله دا په کتاب الحج کښې موصولاً ذکرکړې دی (۵)
**یواشکال اودهغې جواب.** په روایت کښې دی چه کوم وخت نبی کریم ﷺ په سفرباندې اووتلو هغه وخت د ذیقعده پنځه ورځې پاتې وې. پنځه ویشتم تاریخ باندې د مدینې نه اووتلو او د ذی الحجه په څلورم تاریخ مکې ته اورسیدو
اوس دلته یواشکال پیداکیږی که چرې رسول الله ﷺ د حج د سفرد پاره د هفتې په ورځ وتلو نو د ذیقعده څلور ورځې باقی پاتې کیدلې ځکه چه د ذی الحجه رومبې تاریخ د جمعرات په ورځ وو اووقوف عرفه د جمعه په ورځ وه اوکه د سفرشروع د جمعرات په ورځ شوې وی نود ذیقعده شپږ ورځې باقی پاتې کیدې د سفرد شروع د پاره د جمعه ورځ خو قطعاً نه جوړیږی ځکه چه دحضرت انس رضی الله عنه روایت اوس تیرشوې دې صلی الظهربالمدینة أربعًا اوښکاره خبره ده چه د ماسپښین مونځ د جمعه په ورځ نه اداکیږی نو لخمس بقین څنګه صحیح کیدې شی؟
ددې جواب دادې چه د سفرشروع ئې هم د هفتې په ورځ کړې ده لیکن د ذیقعده میاشت د دیرشو په ځائې د یوکم دیرش وه نوراوی په دې خیال سره چه میاشت به مکمل شی ځکه چه هم دغه اصل دې نولخمس بقین ئې اووئیل (۶) حافظ ابن حجررحمه الله فرمائی چه د اکثر علماؤ دغه جواب دې اویوجواب داهم ورکولې شی چه یوم الخروج یعنی د هفتې ورځ د سفرپه ورځو کښې اوشمیرلې شی نوبیا هم معنی ټیک کیدې شی سره ددې چه په وتلووتلوکښې غرمه

(۱) شرح الکرمانی:۱۲/۱۹۴، وعمدة القاری: ۱۴/۲۱۸.
(۲) انظر: کنزالعمال: ۱۱/۲ رقم:۲۹۳۱.
(۳) الدرالمنثور:۶/۳۱۵ وفیه: وأخرج وکیع عن الغرر وابن مردویه والخطیب بسندضعیف عن ابن عباس قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم آخر أربعاء فی الشهریوم نحس مستمر وانظرالالی المصنوعة للسیوطی:۱/۴۴۱ وتنزیه الشریعة: ۲/۵۵.
(۴) فیض الباری:۳/۴۳۸.
(۵) البخاری:۱/۲۰۹کتاب الحج باب مایلبس المحرم من الثیاب والاردیة والازر. رقم: ۱۵۴۵.
(۶) شرح الکرمانی: ۱۲/۱۹۴ – ۱۹۵ وفتح الباری: ۶/۱۱۴.

شوي وه او تيري خو نن يقيناً د وراندې نه شوې وو لكه چه كوم وخت هغوى تيارى اوكړو نو دوى هغتې په شپه هغوى د سفر په ورخو كښې شمير كړه نو دا پنځه ورځې شوې

**فائده** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه لخمس بقين او لاربع ليال خلون داد تاريخ ليكلو فصيح طريقه ده چه د مياشت اول نصف د يوې ورځې د تاريخ بيانولو دپاره لفظ خلا او آخرى نصف دپاره د تاريخ ذكر كولو دپاره لفظ بقى استعمال كړې شى [1]، مثلاً چه مياشت د ديرشو ورځوى نو د شروع پنځلس ورځې اول نصف او آخرى پنځلس ورځوته نصف آخر وئيلې شى كه د نصف اول تاريخ بيانولو دپاره اوونيلې شى چه زيد د شوال بندې سفر اوكړو نو ددې فصيح عربى تعبير به وى سافر زيد لخمس خلون من شوال خو سافر زيد في الخامس من شوال به غير فصيح تعبيروى كه د زيد سفر د نصف آخر ٢٥ تاريخ كښې شوې وى نو ددې فصيح تعبير به وى سافر زيد لخمس بقين من شوال خو في الخامس والعشرين به غير فصيح تعبيروى

خلون، بقين دا دواړه د جمع مؤنث صيغې دى. خلا يخلو وخلاء د باب نصر نه اليوم ورځ تيره شوې ده او بقى، يبقى بقاء د باب سمع نه. اليوم ورځ باقى ده

[حديث نمبر ٢٧٩٣] [2] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَنَّهَا سَمِعَتْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - تَقُولُ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - لِخَمْسِ لَيَالٍ بَقِينَ مِنْ ذِي الْقَعْدَةِ، وَلاَ نُرَى إِلاَّ الْحَجَّ، فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنْ مَكَّةَ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْىٌ إِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ وَسَعَى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ أَنْ يَحِلَّ . قَالَتْ عَائِشَةُ فَدُخِلَ عَلَيْنَا يَوْمَ النَّحْرِ بِلَحْمِ بَقَرٍ فَقُلْتُ مَا هَذَا فَقَالَ نَحَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ أَزْوَاجِهِ . قَالَ يَحْيَى فَذَكَرْتُ هَذَا الْحَدِيثَ لِلْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ فَقَالَ أَتَتْكَ وَاللَّهِ بِالْحَدِيثِ عَلَى وَجْهِهِ . [ر ٢٩٠]

ذيقعده بفتح القاف وكسرها. كيناستونكې مياشت ځكه چه عربو به په دې مياشت كښې جنګ پريخودو او كيناستل به [4]

لاترى إلا الحج صيغه مجهول أى لانظن يعنى زمونږ د حج نه بغير هيڅ اراده نه وه

فدخل علينا يوم النحر بلحم بقر يعنى د قربانئى په ورځ زمونږ د غوا غوښه راوړلې شوه [5]

قال يحيى: فذكرت.....: يعنى يحيى بن سعيد انصارى د كوم ذكر چه د حديث په سند كښې شوې دې هغه قاسم بن محمد بن ابى بكر صديق رضي الله عنه ته دا حديث واورولو نو هغوى

---

[1] ) فتح البارى:٦/١١٥.
[2] ) فتح البارى: ٦/١١٤.
[3] ) مر تخريج فى كتاب الحيض باب الامر بالنفساء إذا أنفس. رقم: ٢٩٤.
[4] ) إرشاد السارى:٥/١٧.
[5] ) عمدة القارى:١٤/٢١٨.

اوونيل چه په خدائى چه عمره بنت عبدالرحمن تاته بالكل صحيح حديث خودلې دې[1] والله اعلم
**ترجمة الباب سره مطابقت** -مطابقت په دې جمله كښې دننه دې خرجنا مع رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم لخمس ليال بقين من ذي القعدة پنځه ويشتم تاريخ د مياشت آخر دې او په دې تاريخ باندې حضورپاك ﷺ د حج د سفرد پاره اووتلو[2]

## باب ١٠٥: الخروج في رمضان

**د ترجمة الباب مقصد** - امام بخارى رحمه الله دلته د رمضان په مياشت كښې د سفرجواز بيانوى اودې سره په هغه خلقو باندې رد كول هم مقصد دې چه د رمضان په مياشت كښې سفرمكروه گڼړى[3] په اصل كښې دا شبه كيدې شوه چه د رمضان مياشت خود عبادت مياشت ده په دې كښې په عبادت كښې مشغول كيدل ډير مناسب دى چرته په دې كښې به سفركول خو ناخوښه نه وى نو امام بخارى رحمه الله اوخودل چه حضورپاك په رمضان كښې پخپله سفركړې دې او د مكې د فتح واقعه هم په رمضان كښې راغلې ده په دې وجه به په رمضان سفركول ناخوښه نه شى گڼړلى

[حديث نمبر ٢٧٩٤][4] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي رَمَضَانَ، فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ الْكَدِيدَ أَفْطَرَ. قَالَ سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ. وَسَاقَ الْحَدِيثَ. [ر ١٨٤٢]

الكديد:- په وزن د رغيف چه د يوچينې نوم دې چه د مكې نه د دوو فرلانگو په فاصله باندې د قديد او عسفان په مينځ كښې واقع ده.[5]

**قوله**: قال سفيان: قال الزهري....:- د دې تعليق دلته ذكركولو مقصد دادې چه د مذكوره حديث په سندكښې سفيان بن عيينه رحمه الله فرمائى حدثنى الزهرى عن عبيدالله يعنى سفيان دا روايت د امام زهرى رحمه الله نه په تحديث سره نقل كړې دې او امام زهرى رحمه الله د حضرت عبيدالله نه عنعنة سره نقل كړې دې اوس دلته سفيان فرمائى قال الزهرى أخبرنى عبيدالله يعنى دلته تحديث دې نه چه عنعنه او امام زهرى رحمه الله دغه مذكوره روايت د عبيدالله نه عنعنه سره نقل كولو اودلته ئى په اخبار سره نقل كوى.[6]

د مستملى په روايت كښې دلته دا اضافه هم ده: قال أبوعبدالله: هذا قول الزهرى: وإنما يؤخذ بالآخر

---

[1] ) عمدة القارى: ٢١٩/١٤.
[2] ) عمدة القارى: ٢١٨/١٤.
[3] ) عمدة القارى: ٢١٩/١٤ وفتح البارى: ٢١٥/٦
[4] ) انظر صحيح البخارى: ٢٦١/١ كتاب الصيام باب إذا عام أياما من رمضان ثم سافر. رقم: ١٩٤٤.
[5] ) ارشادالسارى: ١١٨/٥.
[6] ) عمدة القارى: ٢١٩/١٤.

من فعل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم (١)

**ددې عبارت ذکرکولومقصد** - داتعلیق دلته د ذکرکولوضرورت خکه پیښ شو چه د دې حدیث راوی سفیان بن عیینه ته داتامل پیښ شوې وو چه دادچاقول دې؟

چنانچه د صحیح مسلم په روایت کښې دی قال سفیان: لاأدری من قول من هو؟ یعنی: وانما یؤخذ بالاخرمن قول رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم. چه د چامقوله دد نو امام بخاری اوخودل چه داد امام زهری رحمه الله قول دې هم دغه روایت وړاندې په کتاب المغازی کښې راخی امام بخاری رحمه الله هلته هم تصریح کړې ده. قال الزهری: وانما یؤخذ من امر رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم الاخرفالاخر. (٢)

**یووهم اودهغې ازاله**:- علامه کرمانی رحمه الله ته په دغه عبارت باندې پوهیدوکښې وهم شوې دې هغه دا فرمائی چه د ابن شهاب زهری رحمه الله مذهب دادې چه که په رمضان کښې سفرشروع شی نو افطار مباح نه دې خکه چه دا سړې شاهدشهررمضان دې اوکوم سړې چه شاهد شهررمضان شی دهغه دپاره ﴿ فَمَنْ شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ﴾(٣) د قاعدې لاندې رژوه ساتل ضروری کیږی امام بخاری رحمه الله د امام زهری رحمه الله په دې نقطه نظرباندې رد کوی چه وانما یؤخذ.....الخ. یعنی د رسول الله ﷺ آخری عمل د ماقبل د احکامودپاره ناسخ کیږی نو په سفرکښې به افطار مباح شی لکه څنګه چه نبی کریم ﷺ په دې سفرکښې روژه افطارکړې وه. (٤)

خو چه علامه کرمانی رحمه الله چه کوم مطلب ددې عبارت بیان کړې دې هغه غلط دې عجیبه خبره داده چه علامه عینی رحمه الله علامه قسطلانی رحمه الله او شیخ الاسلام زکریا انصاری رحمه الله هم دهغه اتباع کړې ده. (٥)

ددې عبارت صحیح مطلب هم هغه دې کوم چه اول لیکلې شوې دې چه د سفیان شك وو چه . وانما یؤخذ بالاخرمن فعل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم. د چاقول دې نوامام بخاری رحمه الله اوخودل چه دا د زهری رحمه الله قول دې. (٦) لکه چه حافظ ابن حجر رحمه الله په خپل کتاب الصوم کښې د دې تصریح کړې ده. (٧)

## باب ۱۰۶: التودیع

**د ترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله دلته داخودل غواړی چه دسفرپه وخت میلمانه یا هم

---

(١) ارشادلسارى:٥/٢١٨.
(٢) صحيح بخارى: ٢/٦١٣ كتاب المغازى باب غزوة الفتح فى رمضان رقم:٤٢٨٦.
(٣) سورة البقره: ١٨٥.
(٤) شرح الكرمانى:١٢/١٩٥- ١٩٦.
(٥) عمدة القارى للعينى: ١٤/٢١٩ وإرشاد السارى للقسطلانى: ٥/١١٨.
(٦) حاشيه لامع الدارى: ٧/٢٥٣.
(٧) فتح البارى: ٤/١٨١.

خپل یو سرې رخصت کولو دپاره چه کوم اهتمام کولې شی دا صحیح دی او په سنت کښې د دې اصل موجود دې (۱)

احدیث نمبر ۲۷۹۵ (۲) وَقَالَ ابْنُ وَهْبٍ أَخْبَرَنِي عَمْرٌو عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّهُ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْثٍ، وَقَالَ لَنَا «إِنْ لَقِيتُمْ فُلاَنًا وَفُلاَنًا» . - لِرَجُلَيْنِ مِنْ قُرَيْشٍ سَمَّاهُمَا - فَحَرِّقُوهُمَا بِالنَّارِ . قَالَ ثُمَّ أَتَيْنَاهُ نُوَدِّعُهُ حِينَ أَرَدْنَا الْخُرُوجَ فَقَالَ «إِنِّي كُنْتُ أَمَرْتُكُمْ أَنْ تُحَرِّقُوا فُلاَنًا وَفُلاَنًا بِالنَّارِ، وَإِنَّ النَّارَ لاَ يُعَذِّبُ بِهَا إِلاَّ اللَّهُ، فَإِنْ أَخَذْتُمُوهُمَا فَاقْتُلُوهُمَا» . [۲۸۵۳]

دلته دا روایت معلق دې خوړاندې امام بخاری رحمه الله یو باب قایم کړې دې باب لايعذب بعذاب الله ولې هلته نی په دویم طریق سره هم دا روایت موصولاً ذکر کړې دی (۳) البته اسماعیلی په مستخرج کښې او امام نسائی په کتاب السیر کښې هم د ابن وهب په طریق سره روایت موصولاً ذکر کړې دې. (۴)

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ یو لښکر سره روان کړو حکم نی ورکړو چه که فلانکې او فلانکې قریشی تاسو ته ملاؤشی (او دوارو نومونه نی هم واخستل) نو هغه دواړه په اور کښې اوسوزوئی. بیا فرمائی چه مونږ کله د سفر دپاره اراده اوکړه نو د رخصت اخستلو دپاره د حضورپاك په خدمت کښې حاضرشو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ما تاسو ته د فلانکی او فلانکی په اور کښې د سوزولو حکم درکړې وو اوس داسې مه کوئی ځکه چه په اور سره عذاب ورکول سوا د الله تعالی نه بل چاله ښه نه ښائی او که هغه دواړو ستاسو په قبضه کښې راغلل نو قتل ئی کړئی.

**د واقعه تفصیلات**:- ابوالعاص بن الربیع چه د حضرت خدیجه رضی الله عنها خورئی وو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ام المؤمنین په درخواست باندې د خپلې لوربی بی حضرت زینب رضی الله عنها نکاح ابوالعاص رضی الله عنه سره کړې وه روستوچه کله الله تعالی سرورکائنات صلی الله علیه وسلم الله تعالی د نبوت په منصب باندې فائزکړو نو قریشو په حضورپاك باندې د دباؤ اچولو دپاره د حضورپاك لونړوته طلاق ورکړو ابوالعاص د قریشو په سخت اصرارباندې د حضرت زینب رضی الله عنها نه خان ډډې ته کړو او د سعیدبن العاص لور سره نی نکاح اوکړه (۵)

ابوالعاص په جنگ بدر کښې گرفتارشو نو حضرت زینب رضی الله عنها تر دغه وخته پورې په مکه کښې وه هغې د فدیه په توګه د قیدی د خلاصولو دپاره خپل کالی اولیګل هم په دغه کالوکښې

---

(۱) عمدة القاری: ۲۱۹/۱۴.

(۲) اخرجه البخاری: ۴۲۳/۱ کتاب الجهاد والسیر. باب لا یعذب بعذاب الله. رقم: ۳۰۱۶. والترمذی: ۲۸۶/۱ کتاب السیر باب الاخراق بالنار. رقم: ۱۵۷۱. والدارمی: ۲۹۳/۲. وأحمد: ۲۰/۳۰۷،۳۳۸،۴۵۳.

(۳) فتح الباری: ۱۱۵/۶. وصحیح البخاری رقم: ۳۰۱۶.

(۴) هدی الساری: ص: ۴۷ وتغلیق التعلیق: ۵۵۰/۳.

(۵) سیرة ابن هشام: ۲۵۴/۲. دارالکتاب العربی بیروت.

یوهارهم وو چه حضرت ام المؤمنین حضرت خدیجه رضي الله عنها خپلې لور ته د ابوالعاص سره د نکاح په وخت ورکړې وو دې منظر کتلو سره د نبي کریم ﷺ زړه راډك شو

نبي کریم ﷺ صحابه کرامو رضي الله عنهم ته اوفرمائیل که چرې تاسو غواړئ نو خپل قیدي پرېږدئ خلاص ئې کړئ او دا مال هم واپس کړئ ، دا درخواست وو حکم نه وو ، نو صحابه کرامو عرض اوکړو چه په سر سترګو مونږ خو ستاسو غلامان یو نو ابوالعاص ئې خلاص کړو او مال ئې هم واپس کړو

د ابوالعاس ګرفتار کونکې او بغیر فدیه خلاصونکې صحابي نوم خراش بن الصمه رضي الله عنه دې (۱) او بعض حضرات وائي چه هغه عبدالله بن جبیر رضي الله عنه وو (۲) نبي کریم ﷺ ته ابوالعاص دا باور ورکړې وو چه هغه به حضرت زینب رضي الله عنها مدینې ته رالیګي رسول الله ﷺ د حضرت زینب رضي الله عنها په حفاظت سره د راوستلو دپاره حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه او یو انصاري صحابي مکې ته لیګلي وو

ابوالعاص مکې ته په رسیدو سره د خپل رور کنانه بن ربیع په ذریعه د حضرت زینب رضي الله عنها مدینې ته د رسولو بندوبست کړې وو قریش خبر شو نو هغوی وریسې شو او په وادي ذي طوی کښې ئې د حضرت زینب او ښه را احصاره کړه هبار بن الاسود او نافع بن عبد قیس په کجاوه کښې ناسته حضرت زینب رضي الله عنها او ویرولـه هبار په خپله نیزه باندې کجاوې ته دیکه ورکړه نو حضرت زینب رضي الله عنها په یو کانړي باندې راپریوتله په کوم سره چه د هغې حمل ساقط شو (۳)

نبي کریم ﷺ ته چه کله د دې دردناك واقعه خبر اوشو نو حضور پاك هغه لښکر اولیګلو د کوم ذکر چه په روایت کښې دې د لښکر مشر حضرت حمزه بن عمرو اسلمي رضي الله عنه وو خو هبار بن الاسود او نافع بن عبد قیس دواړه بچ اووتل هبار بن الاسود روستو بیا مسلمان شوې وو کله چه هغه مسلمان شو او مدینې ته راغلو نو صحابه کرامو به په هغه باندې طنز کولو خو نبي کریم ﷺ صحابه کرام د داسې سلوك کولو نه منع کړل (۴) هبار رضي الله عنه د حضرت امیر معاویه رضي الله عنه د دور خلافت پورې ژوندې وو (۵)

**نافع بن عبد قیس** :- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ماته په صحابه کرامو کښې د دوی ذکر چرته ملاؤ نه شو کیدې شي ده هغه اسلام نه وی قبول کړې (۶) په مسند بزار کښې د دوی نوم خالد بن عبد قیس راغلې دې دا تصحیف دې (۷)

**د ابوالعاص بن ربیع رضي الله عنه د اسلام واقعه** :- حضرت ابوالعاص رضي الله عنه به تجارت کولو د فتح مکه نه

---

۱) سیرة ابن هشام: ۲/۶۵۱.
۲) سیرة ابن هشام: ۲/۶۵۱.
۳) د نور تفصیل دپاره اوګورئ سیرة ابن هشام: ۲/۶۵۱ - ۶۵۹.
۴) عمدة القاري: ۱۴/۲۲۰.
۵) فتح الباري: ۶/۱۵۰.
۶) فتح الباري: ۶/۱۵۰.
۷) فتح الباري: ۶/۱۵۰.

یو څو میاشتې وړاندې هغه د شام نه د تجارت مال راخستې واپس راروان وو چه مسلمانانو هغه ګرفتار کړو. د هغه نه ئې مال اوسامان هم واخستو ابوالعاص رضي الله عنه د شپې په تیاره کښې د حضرت زینب رضي الله عنها په کور کښې داخل شو هغه د حضرت زینب نه امان اوغوښتلو نو حضرت زینب رضي الله عنها امان ورکړو

سحر چه کله نبی کریم ﷺ د سحر مونځ ورکولو نو د حضرت زینب رضي الله عنها آواز راغلو چه ا ابوالعاص ته امان ورکړې دې د سلام ګرځولو نه پس نبی پاك ﷺ د دغه آواز متعلق تپوس اوکړو نو صحابه کرامو تصدیق اوکړو چه مونږ هم دغه آواز اوریدلې دې نبی اکرم ﷺ اوفرمائیل چه په مسلمانانو کښې د یوادنی سړی پناه هم معتبره ده بیا حضورپاك خپلې لور کره تشریف راوړو اوونی فرمائیل لورې د ده اکرام اوکړه خو یاد ساته دې ستا د پاره حلال نه دې

دې نه پس نبی کریم ﷺ هغه لښکرته پیغام اولیګلو چه د ابوالعاص مال او اسباب ئې خپله قبضه کښې اخستې وو چه د دې سړی ماسره کومه رشته ده تاسو ټولوته معلومه ده کوم مال چه تاسو د ده نه اخستې دې که تاسو هغه واپس کړئې نوزما داخوښه ده اوکه غواړئې نو تاسو ئې خپل ځان سره ساتلې هم شئې ځکه چه دا مال الله تعالى تاسو ته درکړې دې تاسو د دې ډیرحقدار یئې.

ځانونه قربانی کونکو صحابه کرامو عرض اوکړو چه مونږ دا مال واپس کوو هغوی د ستن برابر څیز هم ځان سره پرینخودو. حضرت ابوالعاص رضي الله عنه دې مال سره مکې ته واپس لاړو او هغه حقدارانو ته خپل حقونه ورکړل او امانتونه ئې مالکانوته حواله کړل بیا هغه قریشوته مخاطب شو وئې ویل اې قریشو ستاسو څه څیزخوماسره پاتې نه دې؟ هغوی اووئیل نه. الله تعالى دې تاته بهترینه بدله درکړی ته یووفادار اوایماندار سړې ئې.

دې اوریدوسره ابوالعاص رضي الله عنه د شهادت کلمه اووئیله اومسلمان شو بیا هغه اووئیل چه هم په مدینه کښې به مسلمان شوې ووم خو ماسره داویره وه چه هسې نه تاسو دا اووایئې چه ابوالعاص رضي الله عنه زمونږ مال قبضه کړو. اوس زه ستاسود امانتونونه فارغ شوم. د دې نه پس هغه مدینې ته لاړو. دلته د هغوی د ژوند ملګرې حضرت زینب رضي الله عنها هغه ته په نوې نکاح سره واپس کړې شوه.

**د روایاتو په الفاظو کښې تعارض او د هغې حل:** - د ابوداؤد په روایت کښې فلانا فلانا دوو ځلو په ځائې یو ځل فلانا راغلې دې د روایت الفاظ دادی إن وجدتم فلانا فاحرقوه بالنار، فوليت فناداني، فرجعت إليه فقال: إن وجدتم فلانا فاقتلوه ولاتحرقوه، فإنه لايعذب بالنار إلا رب النار. (۱)

که چرې فلانکې (مشرك) ملاؤ شی نو هغه په اورکښې اوسوزوئی (راوی وائی) کله چه ما شاکره لاړم نو رسول الله ﷺ آواز راکړو زه واپس شوم حضورپاك اوفرمائیل که ته فلانکې سړې اووینې نو هغه قتل کړه البته په اورکښې مه سیزه ځکه چه د اورعذاب هم هغه ذات ورکوی څوك چه د دې خالق دې.

---

۱) سنن أبي داؤد: ۲/۶ کتاب الجهاد باب كراهية تحريق العدوابالنار. رقم: ۲۶۷۳.

علامه عینی رحمہ اللہ تطبیق ورکولوسره فرمائی چه د فلانکی یوخل ذکرکولو مقصد صرف هبار بن اسود ذکرکول دی ځکه چه اصل خو هم هم هغه وو باقی نافع عبدقیس خود هغوی تابع وو (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې ثم أتيناه نودعه دلته په حدیث کښې د مقیم نه د مسافر رخصت اخستلو ذکر دې. نو د مقیم مسافر رخصت کول خو په طریقه اولی ثابتیږی بلکه دغه دویم صورت ډیر وقوع پذیر دې (۲)

**فائده:-** په دې حدیث سره داهم ثابتیږی چه مسافرله په سفرباندې تللوپه وخت د خپل ښار مشران صلحاء او علماء سره ملاقات کول پکاردی. بل د اکابرد پاره هم مناسب دی چه هغوی خپل متعلقینوته په سفر د تللو وخت کښې رخصت کړی (۳)

## باب ۱۰۷: السمع والطعة للامام

**د ترجمة الباب مقصد:-** امام بخاری رحمہ اللہ د دې باب قایم کولوسره د امیر د اطاعت وجوب بیانول غواړی. د هغه وخته پورې د امیر اطاعت واجب دې ترکومې چه هغه د ګناه او غیرشرعی امورو حکم ورنه کړی (۴)

[حدیث نمبر ۲۷۹۶] (۵) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -. وَحَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّاءَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ حَقٌّ، مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِالْمَعْصِيَةِ، فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلاَ سَمْعَ وَلاَ طَاعَةَ». [۶۷۲۵]

داحدیث په دوو طرق سره دلته نقل کړې شوې دې. البته الفاظ په دې باب کښې دویم طریق دی. وړاندې کتاب الاحکام کښې اول یعنی د مسدد د طریق الفاظ داسې دی: السمع والطاعة على المرء المسلم فيما أحب وكره ما لم يؤمر بمعصية، فإذا أمر بمعصية فلا سمع ولا طاعة. (۶)

---

۱) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۰.

۲) عمدة القاری ۱۴/۱۱۹، فتح الباری: ۶/۱۱۵.

۳) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۱.

۴) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۱.

۵) اخرجه البخاری: ۲/۱۰۵۷ فی کتاب الاحکام باب السمع والطاعة للامام مالم تکن معصیة. رقم: ۷۱۴۴. ومسلم: ۲/۴۷۶۳ کتاب الامارة باب وجوب طاعة الامراء فی غیرمعصیة وتحریمها فی المعصیة وأبوداؤد: ۱/۳۵۹. کتاب الجهاد باب فی الطاعة رقم: ۲۶۲۶. والترمذی: ۱/۳۰۰. أبواب الجهاد باب ماجاء فی لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق رقم: ۱۷۰۷. والنسائی: ۲/۱۸۴. کتاب البیعة، باب جزاء من أمر بمعصیة فاطاع رقم: ۴۲۱۱. ابن ماجه. کتاب الجهاد باب لاطاعة فی معصیة الله رقم: ۲۷۶۴.

۶) اخرجه البخاری: ۲/۱۰۵۷ فی کتاب الاحکام باب السمع والطاعة للامام مالم تکن معصیة. رقم: ۷۱۴۴.

**قوله السمع والطاعة حق** یعنی د امیر خبره اوریدل او د هغه د احکامو تعمیل کول د په ما مورینو او ما تحتانو باندې واجب دی په دې شرط چه هغه د ګناه حکم ورنه کړی او که هغه د ناجائز امورو حکم ورکړی نو لاطاعة لمخلوق فی معصیة الخالق مطابق د داسې امیر اطاعت جائز نه دی نو هر یو داسې کار په کوم کښې چه د مخلوق په تابعدارئ سره د خالق نافرمانی لازم راځي په شریعت کښې د هغې ګنجائش نشته (۱)

د حضرت علی رضی الله عنه روایت په کتاب المغازی کښې راروان دې چه نبی کریم ﷺ د یو انصاری صحابی عبدالله بن حذافه سهمی رضی الله عنه د یو لښکر مشر جوړ ولو سره اولیګلو په یو موقع هغه غصه شو او هغه لرګی راجمع کولو سره د اور لګولو حکم ورکړو چه کله اور سور شو نو هغه اووئیل تاسو ته نبی کریم ﷺ زما د اطاعت حکم نه وو درکړی؟ ورداننګنی دې اور ته صحابه کرامو د اطاعت د جذبه نه مغلوب کیدو سره په اور کښې ورداننګل خو یو بل نې راښیولو سره نې وئیل چه مونږ خو هم د اور نه د بچ کیدو د پاره هم د نبی کریم ﷺ اطاعت کړې دې او اسلام مو قبول کړې دې هم په دې کشمکش کښې کښې د اور او امیر صاحب غصه سړه شوه کله چه دا خبره نبی کریم ﷺ ته معلومه شوه نو هغوی اوفرمائیل که هغوی اور ته ورداننګلي وې نو تر قیامته پورې به نه ووراوتلی اطاعت خو د نیکئ په کارونو کښې وی (۲)

علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه خوارج د دې حدیث نه استدلال کولو سره وائی چه د ظالم حکمرانانو خلاف بغاوت کول واجب دی د جمهور امت موقف دا دې چه صرف د ظلم په وجه د بغاوت اجازت نه شي ورکولې او که چرې هغه د شرعی احکامو نفاذ هم کوی او د هغه حکومت هم مستحکم وی نو د داسې حکمرانانو وجود خو کم نه کم د خان مال او عزت د تحفظ ضامن خو دی که د هغوی خلاف خلق راپاسی نو هر طرف ته به بدامنی خوره شی او ګړبړ به پیداشی نو د داسې حکمرانانو خلاف بغاوت کول جائز نه دی چه ظلم خو هم کوی ولې د دینی امورو لکه مونځ وغیره هم اهتمام کوی او دین پورې تو قې مسخرې نه کوی نو په داسې حالت کښې د هغوی خلاف بغاوت کونکو سره ملګرتیا کول جائز نه دی

د صحیح مسلم روایت دې چه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې ستاسو بهترین حکمرانان هغه دی چاسره چه تاسو محبت کوئی او هغوی تاسو سره محبت کوی تاسو د هغوی د پاره دعا کوئی او هغوی ستاسو د پاره دعا کوئی او ستاسو بدترین حکمرانان هغه دی چانه چه تاسو نفرت کوئی او هغوی تاسو نه نفرت کوی تاسو په هغوی باندې لعنت کوئی او هغوی په تاسو باندې لعنت کوی

تپوس اوکړې شی ایا مونږ هغوی سره جنګ اونه کړو؟ نبی کریم ﷺ دوه ځل اوفرمائیل نه ترکومې چه هغوی په تاسو کښې مونځونه قایم کوی نه ترکومې چه هغوی په تاسو کښې

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۱.

(۲) صحیح البخاری: ۲/۶۲۲ کتاب المغازی باب سریة عبدالله بن حذافة السهمی رضی الله عنه. وعلقمة بن مجزز المدلجی ویقال: ویقال: إنها سریة الانصاری رقم: ۴۳۴۰.

مونځونه قایم کوی دهغوی د ګناهونونه تاسو ضرور نفرت کوئی خودهغوی اطاعت مه پریږدئی (۱)

لیکن که چرې حکمرانان د ظلم سره سره مونځ هم نه قائموی او د شریعت په ښکاره توهین هم کوی اویا حاکم مرتد شوې وی نو په داسې صورتونوکښې د حکمرانانو خلاف بغاوت کول اوهغوی معزول کول واجب دی اودا د مسلمانانو ذمه واری ده (۲)

**ایا په ملکی قانون کښې دامام اطاعت واجب دې؟**:- د شریعت دا قاعده ده چه طاعة الامام فیما لیس بمعصیة واجبة یعنی د امام اطاعت په هغه کارونوکښې واجب دې چه ګناه نه وی البته چه کوم ملکی قوانین د شریعت سره متصادم وی په هغې کښې د امام اطاعت جائزنه دې که امام عادل وی که ظالم (۳)

چنانچه د ټریفك قوانین او نور انتظامی امورو کښې په ملکی قوانینوباندې عمل کول ضروری دی ځکه چه د دغه قوانینوتعلق ادارت اوانتظام سره وی په دې وجه دې حکام د شریعت په دائره کښې اوسیدوسره د نظم وغیره دخلاف ورزئی په نتیجه کښې کومې جرمانې چالانانونه او سزاګانې مقررکوی په هغې کښې د حکام تابعداری کول واجب دی (۴)

واضحه دې وی چه د جدید دور شایدیوه مسئله داسې وی د کوم بنیادی قواعد او اصول چه فقهاؤ نه واضحه کړې. شرعی اصول مخې ته کولوسره د اسلامی ملك قوانین داسې جوړول پکاردی چه مسلمانانوته دخپل خالق په جوړ کړې شوی قانون باندې عمل کولو موقع ملاؤشی په دویم صورت کښې داسې حکمرانان چه د خدائی قانون په مقابله کښې د خپلو جوړوشوو قوانینو اوچتوالې غواړی دهغوی اطاعت جائزنه دې بلکه هغوی دې معزول او برطرف کړې شی اود حکمرانئی واګې دې ددٰاسې کسانو په لاس کښې ورکړی چه د قرآن اوسنت قانون په ملك کښې رائج کړی. دالله تعالی ارشاد دې ﴿ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴾ (۵) بل ځائی ارشاد دې ﴿ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴾ (۶) او بیائی د یوآیت نه پس اوفرمائیل ﴿ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴾ (۷)

د دې آیات کریمه نه معلومیږی چه دالله تعالی د احکامو مطابق آئین سازی کول ضروری دی اوچه کوم حاکم قاضی یا امیرد وخت د الله تعالی نازل کړې شوی شریعت مطابق د عناد او سرکشئی د وجې نه فیصله نه کوی د قرآن په رڼرا کښې درجه په درجه کافر ظالم او فاسق دې.

---

(۱) صحیح مسلم: ۱۲۹/۲ کتاب الامامت باب خیار الائمة وشرارهم. ۴۸۰۴ – ۴۸۰۶.

(۲) شرح ابن بطال: ۱۲۷. ۵/۱۲۶. د نورتفصیل دپاره اوګورئی الدرالمختار مع شرحه ردالمختار:۳/۳۴۰.

(۳) الدرالمختار مع شرحه ردالمختار:۳/۳۴۰.

(۴) د ټریفك د قوانینودپاره اوګورئی بحوث فی قضایا فقهیة معاصرة ص:۲۷۶ – ۳۱۰ للاستاذ تقی العثمانی.

(۵) المائدة: ۴۴.

(۶) ایضاً: ۴۵.

(۷) ایضاً:۴۷.

([1]) چنانچه كافرانو ظالمانو او فاسقانو ته د زمانې اقتدار په خوشحالئى سره څنګه حواله كولې شى او دَهغوى دَاطاعت جواز به څنګه ثابتيدې شى؟

**ترجمة الباب سره مطابق** - دَ حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضح دې يعنى باب قايم كړې شوې دې باب السمع والطاعة للامام او دَ حديث الفاظ دى السمع والطاعة حق ([2])

## باب ۱۰۸: يقاتل من وراء الامام ويتقى به

**دَ ترجمة الباب مقصد**. امام المسلمين دَ يوډال حيثيت لرى هغه دَ خپلې رعايا دَ دښمن نه حفاظت كوې او دَ دين ساتنه كوى او دَ نظرياتى سرحدونو ساتنه كوى. دَهغه په دفاع كښې به جنګ كولې شى او دَ دښمن دَ شرفساد او ظلم نه دَ بچ كيدو دَ پارد به دَ امام پناه اخستلې شى څكه چه كه دَامام عادل په تائيداو حمايت كښې جنګ نه شى كولې نو فتنې به راخوريږى اوهرطرف ته به بدامنى خوريږى اوهرطرف ته به فساد وى. دَ فتنونه دبچ كيدو دپاره دَامام په حمايت كښې جنګيدل ضرورى دى. ([3])

<u>ورائة</u>- لفظ وراء دَ اضدادنه دې دَدې معنى وړاندې او روستو دواړه راځى. په قرآن كريم كښې دى ﴿وَكَانَ وَرَآءَهُم مَّلِكٌ﴾ ([4]) أى أمامهم. كه داد وړاندې په معنى كښې واخستې شى نو دا معنى به وى چه دَ جهاد په وخت امام نه دى وړاندې كول پكار بلكه مجاهدينوله وړاندې جنګ پكاردې. ([5]) اوكه دَ دې معنى روستو واخستې شى نومطلب به داوى چه دَامام په ماتحتئى كښې جنګ كول پكاردې. يعنى چه څنګه امام منصوبه او ترتيب جوړكړى اوچه څنګه هغه حكم وركړى هغه طريقه دَ جنګ په ډيره مناسب بهتر بلكه ضرورى وى. ([6])

[حديث نمبر ۲۷۹۷] ([7]) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ أَنَّ الأَعْرَجَ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ « نَحْنُ الآخِرُونَ السَّابِقُونَ » . وَبِهَذَا الإِسْنَادِ « مَنْ أَطَاعَنِى فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ ، وَمَنْ عَصَانِى فَقَدْ عَصَى اللَّهَ ، وَمَنْ يُطِعِ الأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِى ، وَمَنْ يَعْصِ الأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِى ، وَإِنَّمَا الإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِنْ وَرَائِهِ وَيُتَّقَى بِهِ ، فَإِنْ أَمَرَ بِتَقْوَى اللَّهِ وَعَدَلَ ، فَإِنَّ لَهُ بِذَلِكَ أَجْرًا ، وَإِنْ قَالَ بِغَيْرِهِ ، فَإِنَّ عَلَيْهِ مِنْهُ » . [۲۷۱۸ ، وانظر ۲۳۲]

---

[1]) معارف القرآن ج ۲ ص ۴۴۳ – ۴۵۲ و ج ۳ ص ۱۵۴ – ۱۶۵.

[2]) عمدة القارى: ۲۲۱/۱۴.

[3]) عمدة القارى: ۲۲۱/۱۴.

[4]) سورة الكهف: ۷۹.

[5]) ارشادالسارى: ۱۱۹/۵.

[6]) فيض البارى: ۴۴۰/۳ وحاشية السندى على البخارى: ۴۴۲/۱.

[7]) قدمر فى كتاب الوضوء باب البول فى الماء الدائم رقم: ۲۳۸.

**قوله** نحن الآخرون السابقون:- دَدې حدیث شریف سره متعلق مباحث کتاب الوضوء باب البول فی الماء الدائم لاندې تیرشوی دی

من أطاعني فقد أطاع الله، ومن عصاني فقد عصى الله، ومن يطع الأمير فقد أطاعني (۱)
په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي چاچه زما اطاعت اوکړو هغه دَالله تعالی اطاعت اوکړو چاچه زما نافرماني اوکړه هغه دَالله تعالی نافرماني اوکړه اوڅوك چه دَ امیر اطاعت کوی هغه لکه چه هم زما اطاعت کوی اوڅوك چه دَ امیرنافرماني کوي لکه چه زما نافرماني کوی امیرخود یوډال په شان وی دَهغوی دَ دفاع دَ پاره جنګیږی اوهم دَامیرپه ذریعه دَ دښمن دَ شرنه بچ کیږی. که هغه دَ پرهیزګارئی حکم اوکړی او انصاف اوکړی نوهغه ته به دَ دې په بدله کښې نیکی ملاویږی اوکه دَانصاف اوتقوی په ځائی دَ نورو خبروحکم ورکوی نو په هغه باندې به دَهغې نقصان وی.
علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه دَعربودَ قبائلوسرداران دَ امارت دَ نظام نه خبرنه وو هغوی دَخپلو قبیلودَ سردرانونه علاوه دَ چاخبره نه منله. بیادَ اسلام راتلونه پس چه کله په هغوی باندې امیران مقررکړې شو نودَهغوی زړه دَ دوی نه مورشو اوبعض خلقو دَ امیرانو تابعداری او دَهغوی دَخبرې منلونه انکاراوکړو. رسول الله ﷺ دَهغوی دَ پوهه کولودپاره هغوی ته اوفرمائیل چه دَامیراطاعت زما اطاعت دې اودَ هغوی نافرمانی هم زما نافرمانی ده. مقصد داوو چه دَ عربوقبائل دَ نبی کریم ﷺ دَمقررکړې شوو حاکمانو اطاعت او حکم منل اوکړی اوبغاوت اوسرکشی اونه کړی.
دې نه معلومه شوه چه دَ امراء اطاعت په دې وجه کولې شی چه هغوی دَ رسول الله ﷺ اطاعت کوی نو په دوی کښې چه څوك دَ رسول الله ﷺ دَ شریعت مطابق حکم نه ورکوی اودَ حضورپاك اطاعت نه کوی نودَهغوی اطاعت واجب نه دې. (۲)

**قوله** من أطاعني فقد أطاع الله:- داجمله دَالله تعالی دَ ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ (۳) تفسیر دې. رسول الله ﷺ خپل اطاعت دَ الله تعالی اطاعت ګرځوی ځکه چه حضورپاك خو مبلغ دې حکم خوهم دَالله تعالی دې. (۴)

**قوله** إنما الإمام جنة:- جُنَّةٌ: (په ضمه دَجیم او تشدیددَ نون) ډال ته وئیلې شی (۵) یعنی امام دَ مسلمانانودپاره ډال حیثیت لری لکه څنګه چه په ډال سره جنګ کونکی خپل حفاظت

---

(۱) الحدیث اخرجه البخاری ایضاً: ۱۰۵۷/۱ فی کتاب الاحکام باب قول الله تعالی: ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ﴾ رقم: ۷۱۳۷.
(۲) أعلام الحدیث للخطابی: ۲/۱۴۲۰ – ۱۴۲۱.
(۳) سورة النساء: ۸۰.
(۴) إرشاد الساری: ۱۱۹/۵.
(۵) ایضاً.

کوی هم داسې مسلمان هم دامام په ذریعه د دښمنانو اوبدخواهانود شرونو اوسازشونو نه خپل حفاظت کوی اودهغه په لمن کښې پناه اخلی (۱)
حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی دال سره تشبیه امام سره په یوخانی جنګیدلو کښې ده که وړاندې وی اوکه روستو لکه څنګه چه جنګ کونکې د ډال نه شاته وی دغه شان مجاهدهم د امام شاته وی (۲)
**د یوفقهی قاعدې استنباط** داحنافومذهب دې چه که چادحاکم حکم اومنلواویوکارئې اوکړو بیا هغه ته معلومه شوه چه داکارخود شریعت خلاف وو نومرتکب به معذورګڼلې شی اوګناه به د حکم ورکونکې کیږی. علامه خطابی رحمه الله فرمائی إنما الامام جنة د احنافود قاعدې دپاره د دلیل په توګه پیش کولې شی. (۳) یعنی د امام د ډال کیدو د وجې به هغه د دغه ګناه د شرنه محفوظ شی ځکه چه حکم خو هم امام ورکړې وو او دویم خو په اطاعت کولوباندې مجبوروو
**ویتقی به** - دا د مجهول صیغه ده دَدې تکرې یوه معنی خوداده کومه چه علامه کرمانی رحمه الله ذکرکړې ده چه دامام په ذریعه د دښمن د شرفساد اوظلم نه بچ کیدې شی ځکه چه هم هغه د مسلمانانو د دین ساتنه کوی. (۴) یوه بله معنی علامه ابن بطال رحمه الله بیان کړې فرمائی **قوله یتقی به أی: یرجع إلیه فی الرأی والفعل وغیرذلك مما لایجب أن یقضی فیه إلا برأی الامام وحکمه، ویتقی به الخطائی الدین والعمل من الشبهات وغیرها.** (۵) یعنی چه کوم کارد امیر د رائې اوحکم نه بغیرنه دی کیدل پکار په هغې کښې دې دامیرد رائې طرف ته رجوع اوکړې شی بل د دین په معاملاتوکښې د غلطئی او شك شبه نه د بچ کیدو دپاره هم د امیرپناه اخستلې شی
**فان قال بغیره** - یعنی که چرې حاکم د دې (تقوی) نه علاوه د بل څه خبرې حکم ورکړی. د قال أمر معنی کښې استعمالیږی بعض حضرات **قال** ته بمعنی**فعل** هم وائی خو بهتردادی چه **قال** دلته په معنی **أمر** وی ځکه چه دَدې نه وړاندې **أمر** لفظ استعمال شوې دې لکه چه د روایت الفاظ دی. **فان أمربتقوی الله وعدل......** (۶) علام خطابی رحمه الله فرمائی د قال معنی دلته د فیصله کولوده لکه چه وئیلې شي چه دا د القیل نه مشتق دې د قبیله حمیرپه لغتی ژبه کښې قیل داسې بادشاه ته وئیلې شی دکوم حکم چه منلې شی (۷)

---

۱) عمدة القاری: ۲۲۲/۱٤.
۲) لامع الدراری:۷/۲٥٤.
۳) أعلام الحدیث للخطابی:۲/۱٤۲۰ – ۱٤۲۱.
٤) شرح الکرمانی: ۱۹۷/۱۲.
٥) شرح ابن بطال: ۱۲۸/٥.
٦) فتح الباری:۱۱٦/٦. وعمدة القاری: ۲۲۲/۱٤.
۷) أعلام الحدیث للخطابی: ۲/۱٤۲۱والنهایة فی غریب الحدیث:۱۲۲/٤ وقال أو عبیدة: الاقبال ملوك بالیمن دو الملك الاعظم وأحدهم قیل انظرلسان العرب: ق/و/ل.

**فان علیه منه** : دلته وزر / محذوف دی مکمل عبارت داسې دی فان علیه منه وزرا څنګه چه د سنن په روایت کښې دی (۱) اوس د عبارت مطلب داشو د چرې حاکم د غیر شرعی امورو حکم ورکړی نو دهغې ګناه او نقصان به هم په هغه وی لیکن ظاهره ده چه د حکم تعمیل کونکی به هم د وبال نه نه شی بچ کیدې (۲).

**یو سبق ورکونکې واقعه** : کله چه عمربن هبیره، دیزیدبن عبدالملک د طرف نه د عراق عامل مقرر کړو نوهغه د بصره او کوفه فقهاؤ خپل خانی ته د راتللو دعوت ورکړو په دې فقهاؤ کښې امام شعبی رحمه الله اوحضرت حسن بصری رحمه الله هم وو عمربن هبیره اووئیل امیرالمؤمنین یزیدبن عبدالملک ماته د بعض غیرشرعی کارونوحکم راکوی آیا زما د پره دهغې پوره کول جائز دی؟ امام شعبی رحمه الله اوفرمائیل ته خو مامور ئی ته هم هغه شان کوه څنګه چه تاته حکم کولې شی ګناه خو د حکم ورکونکی باندې ده کله چه امام شعبی رحمه الله خپله خبره مکمل کړه نو حضرت حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل: **أتق الله یاعمر! فكانت بملك قد أتاك فاستنزلك، فاخرجك من سعة قصرك إلى ضيق قبرك إن الله ينجيك من يزيد وإن يزيد لا ينجيك من الله، فاياك أن تعرض لله بالمعاصي، فانه لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق.** (۳) یعنی ای عمر! د الله تعالی اوویریږه لکه چه د مرګ فرښته راغلې ده هغه به تاستا د محل د وسعت نه راؤباسی اود قبرتنګ خانی ته به دې اورسوی یقیناً الله تعالی تا د یزیدنه بچ کولې شی خو یزید تا د الله رب العزت نه نشی بچ کولې خبردار! په ګناهونو سره د الله تعالی مقابله مه کوه ځکه چه د مخلقو اطاعت کول سره د خالق نافرمانی کول جائزنه دی

**ترجمة الباب سره مطابقت** :-حدیث شریف سره د ترجمة الباب مطابقت وانما الامام جنة يقاتل من ورائه ويتقى به کښې دی (۴)

**د علامه بن منیر رحمه الله رائې اود حافظ ابن حجر رحمه الله رد** :- ابن منیر رحمه الله فرمائی د ترجمة الباب نحن الآخرون السابقون سره مطابقت داسې دی چه **يقاتل من ورائه** معنی **من أمامه** ده یعنی وراء، د **أمام** په معنی کښې مستعمل دی ځکه چه فوج په ظاهره د امام نه وړاندې جنګیږی په حقیقت کښې هغوی د امام شاته وی هم دغه شان نبی آخرزمان ﷺ د زمانې په اعتبار سره د تېرولونه په آخره کښې تشریف راوړې دې خود انبیاء متقدمین علیهم السلام نه دا عهد اخستې شوې وو که چرې دوی ته د نبی کریم ﷺ زمانه ملاؤشی نوهغوی به پرې ایمان راوړی اود هغوی امداد به کوی نوچه کله حضرت عیسی علیه السلام دوباره تشریف راوړی نو د هغه حیثیت به د یوامتی وی لکه چه انبیاء سابقین علیهم السلام چه په ظاهره د نبی پاک ﷺ نه وړاندې

---

(۱) النسائی:۲/۱۸٤ کتاب البیعة باب مایجب للامام وما یجب علیه.

(۲) عمدة القاري: ۲۲۲/۱٤.

(۳) أعلام الحدیث للخطابی: ۲/ ۱٤۱۷ - ۱٤۱۶.

(۴) عمدة القاري: ۲۲۲/۱٤.

مبعوث شوی دی خو په حقیقت کښې هغه تول د نبی کریم ﷺ تابع دی سره ددې چه حضورپاک ﷺ په ظاهره آخری نبی دې ولې د وړاندینو امام دې (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا تکلف دې ځکه چه نحن الآخرون السابقون د حدیث باب ټکړه نه ده بلکه دا جمله د دې سند شعب عن أبی ازناد عن الاعرج عن أبی هریرة د پاره د علامت راوړلې شوې دې او بهذا الاسناد وئیلوسره حدیث بیانولې شی اوددې التزام وجه داده چه راوی داسې حدیث نقل کړې دې داامام بخاری رحمه الله دا عادت دې لکه څنګه چه داامام مسلم رحمه الله عادت دادې چه هغه معمرعن همام بن منبه عن أبی هریرة والا سندسره نقل کیدونکې هرحدیث په شروع کښې فرمائی. فذکر أحادیث منها وقال رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم کیت وکیت......(۲) والله اعلم بالصواب.

## باب ۱۰۹: البیعة فی الحرب أن لایفروا، وقال بعضهم علی الموت

لقول الله تعالی: ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾.

**د ترجمة الباب مقصد**: علامه ابن المنیر رحمه الله فرمائی چه په دې باب سره امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه په جهاد کښې کوم بیعت وی هغه بیعت علی عدم الفرار یعنی د تختیدو ثابت قدم اوسیدو وی. لکه چه امام صاحب دلته آیت ذکر کړې دې ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ وړاندې دی ﴿فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنْزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ﴾ او سکینه په حالت د جنګ کښې سکون او اطمینان ته وئیلې شی. نودا آیت په دې خبره باندې دلالت کوی چه بیعت کولووخت کښې به د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زړونوکښې د عدم فرار نیت او ثابت قدمی وو نه چه مرګ. (۳)

دحافظ ابن حجر رحمه الله وینا ده چه دا بیعت علی الموت دې. ددې دلیل دادې چه امام صاحب د آیت کومه ټکړه نقل کړې ده په دې کښې د مطلق بیعت ذکرشوې دې په وړاندینی روایت کښې په دې باندې تفصیل راځی. حضرت سلمه بن الاکوع رضی الله عنه چه د بیعت رضوان د شرکاؤ نه دې، پخپله فرمائی چه دابیعت علی الموت دې (۴) خوواضحه دې وی چه دا یولفظ اختلاف دې په معنوی اعتبارسره بیعت علی عدم الفرار او بیعت علی الموت کښې هیڅ فرق نشته ځکه چه کوم سړې په دې خبره باندې بیعت کوی چه هغه به په جنګ کښې نه تختی نوهغه مخې ته هم دغه وی چه هغه به ترمرګه پورې جنګیږی اود وینې د آخری څاڅکی پورې به هغه خپله وعده پوره کوی. اوداخبره خو بالکل واضحه ده چه د بیعت علی الموت مطلب هیڅ کله دانه دې چه هغه دې خامخا په دغه جنګ کښې مړشی بلکه دې نه مقصد هم هغه

---

(۱) المتواری ص: ۱۵۷ – ۱۵۹.
(۲) فتح الباری: ۱۱۶/۶.
(۳) المتواری ص: ۱۶۱.
(۴) فتح الباری: ۱۱۸/۶.

ثابت قدمی ده (۱) هم د دې وجه حضرت نافع فرمائی بل بایعهم علی الصبر ځکه چه د صبر معنی ده کلك اوسبدل او دا مطلب مرګ او نه تختیدو دواړو ته جامع دې (۲).

الشجرة دا د څه ځیز ونه وه؟ یوقول خودادې چه دا د کیکر ونه وه دویم قول دادې چه د بیرې ونه وه (۳)

احدیث نمبر ۲۷۹۸ (۴) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ قَالَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ-رضی الله عنهما-رَجَعْنَا مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَمَا اجْتَمَعَ مِنَّا اثْنَانِ عَلَى الشَّجَرَةِ الَّتِي بَايَعْنَا تَحْتَهَا، كَانَتْ رَحْمَةً مِنَ اللَّهِ. فَسَأَلْتُ نَافِعًا عَلَى أَيِّ شَيْءٍ بَايَعَهُمْ عَلَى الْمَوْتِ قَالَ لَا، بَايَعَهُمْ عَلَى الصَّبْرِ.

حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه مونږه بل کال د بیعت رضوان ځائی ته راغلو نو دا سې دوه کسان ملاؤنه شو چه هغه ونې نی پیژندلې وه د کومې لاندې چه مونږ بیعت کړې وو او دا د ونې پتیدل د الله تعالی رحمت ثابت شو ګنې خلق به په دغه شرکنبې راګیرویږ راوی یعنی جویریه وائی چه ما د نافع نه تپوس اوکړو چه په کوم ځیزباندې حضوریاك د هغوی نه بیعت اخستې وو آیا هغه په مرګ باندې بیعت وو؟ نو نافع وئیل نه بلکه حضوریاك د هغوی نه په استقامت او ثابت قدمئی باندې بیعت اخستې وو

**قوله**: فما اجتمع منا اثنان علی الشجرة- یعنی داسې دوه کسان به نه ملاویدل چه هغه ونه نی متعین کړې وه. اوس دلته دا سوال پیداکیږی چه هغه ونه چرته لاړه؟ علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه یوقول خودادې چه ونه هم هلته وه خود صحابه کرامو رضی الله عنهم د پاره د هغه ونې پیژندګلوکول ګران شوې وو دویم قول دادې چه هغه سیلاب بهیولې وه

**قوله**: کانت رحمة من الله- د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د دې جمله دوه مطلبونه بیان کړې شوې دی ① د هغه ونې پتیدل د الله تعالی یورحمت وو علامه نووی رحمه الله فرمائی چه د دغه ونې په وجه د خلقو په فتنه کنبې د اخته کیدو اندینښه وه ځکه چه د دغه ونې لاندې خیر. دالله رضا او سکینه په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې نازل شوې که دغه ونه متعین کیدله نو کلی وال او جاهلان خلق به د دې په تعظیم کنبې اخته کیدل او ددې نه ئم نور زیات به نی د نفع اونقصان مالك ګنړلوسره به د دغه ونې عبادت کولې شو نو دا د الله تعالی رحمت دې چه دا ونه نی پټه کړه (۵)

② دویم مطلب د دغه جمله دادې چه دا ونه د الله تعالی د رحمت د نزول مقام او د الله تعالی د

---

(۱) فتح الباری: ۱۱۸/۶، وعمدة القاری: ۲۲۳/۱۴.

(۲) فتح الباری: ۱۱۸/۶ وشرح ابن بطال: ۱۳۰/۵.

(۳) إرشاد الساری: ۱۲۰/۵ وعمدة القاری: ۲۲۳/۱۴.

(۴) تفرد به البخاری.

(۵) حاشیة صحیح مسلم: ۱۲۹/۲ کتاب الجهاد باب استحباب مایعة اللجیش عندإرادة القتال الخ. ص ۱۳۰.

رضا د حاصلولو خاني وو (۱)

**فسألت** -ما تپوس اوکړو د پښتنې والاجويريه بن اسماء ده چه دا روايت د نافع نه نقل کوی **على الموت؟** - آيا بيعت په مرګ شوې وو؟ په اصل کښې دلته همزه د استفهام مقدره ده عبارت داسې دې أعلى الموت؟ يا داسې أبايعهم على الموت؟ (۲)

**د يواشكال جواب** - دلته اسماعيلى دااشكال کړې دې چه لا، بل بايعهم على الصبر مسند نه دې يعنى دا دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما قول نه دې بلکه دحضرت نافع رحمه الله قول دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا قول هم مسند دې ځکه چه حضرت نافع رحمه الله داخبره يقينا دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه اوريدلې وى. نوځکه خوهغه جواب ورکولوسره دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما حواله ورکولوضرورت نه دې محسوس کړې. (۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** - ددې حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت بل بايعهم على الصبر نه مستنبط دې ځکه چه بيعت على الصبر مطلب هم دغه دې چه بيعت د جنګ نه نه تختيدل او کلک پاتې کيدو باندې اخستې شوې دې (۴)

[حديث نمبر ۲۷۹۹] (۵) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيَى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ-رضى الله عنه- قَالَ لَمَّا كَانَ زَمَنَ الْحَرَّةِ أَتَاهُ آتٍ فَقَالَ لَهُ إِنَّ ابْنَ حَنْظَلَةَ يُبَايِعُ النَّاسَ عَلَى الْمَوْتِ. فَقَالَ لاَ أُبَايِعُ عَلَى هَذَا أَحَدًا بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-. [۳۹۳۴]

حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه فرمائى چه د واقعه حره په زمانه کښې يو سړې هغوى له راغلو ونې وئيل عبدالله بن حنظله د خلقو نه په مرګ باندې بيعت اخلى. نوعبدالله بن زيد اوفرمائيل د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پس به زه د چا په لاس په مرګ باندې بيعت اونه کړم

**قوله لما كان زمن الحرة:** - حرة: بفتح الحاء المهملة وتشديد الراء داسې کانړيزې زمکې ته وائى د کومې کانړى چه په ليدوسره سوزيدلې معلوميږى. د حرة جمع حرات، أحرون حرار او حرون ده. داسې زمکې د عربو په ملك کښې ډير زياتې دى. د مدينې د اطرافو نه ترشام پورې د حرار يواوږده سلسله ده. علامه ياقوت حموى ددې تفصيل په خپل کتاب کښې ذکر کړې دې. (۶)

---

(۱) شرح الكرمانى: ۱۲ يا ۱۹۸/۲، وفتح البارى: ۱۱۸/۶.

(۲) عمدة القارى: ۲۲۳/۱٤ والقسطلانى: ۱۲۰/۵.

(۳) فتح البارى: ۱۱۸/۶.

(۴) عمدة القارى: ۲۲۳/۱٤.

(۵) أخرجه البخارى فى كتاب المغازى باب غزوة الهدسة رقم: ۴۱۶۷ ومسلم فى كتاب الامارة، باب استحباب مبايعة الامام لجيش عند إرادة القتال وبيان بيعة الوضو تحت الشجرة. رقم: ۴۸۲۴.

(۶) معجم البلدان: ۲ ز ۲۴۵ – ۲۵۰.

دلته چه د کوم حره ذکر کيږی هغې ته حرة واقم ونيلې شي (١)

**د واقعه حرة تفصيلات** . دلته چه په روايت کښې د کومې واقعې طرف ته اشاره کولې شي دهغې تعلق ۶۳ هجری سره دې کله چه دحضرت معاويه رضی الله عنه انتقال اوشو اود يزيدبن معاويه د پاره بيعت اخستې شو نودمدينې والا يووفد د يزيدد ملاقات دپاره لاړو هغوی په يزيدکښې بعض نامناسب خبرې اوليدلې اومدينې ته په واپس راتلوباندې نی ديزيدد اطاعت نه انکار اوکړو اودحضرت عبدالله بن زبير رضی الله عنهما په لاس باندې اهل مدينه بيعت اوکړو د دې خبرې چه کله يزيدته خبر اوشو نوهغه د مسلم بن عقبه په مشرنی کښې دمدينې طرف ته روان کړو مسلم د حد نه د ډير ظلم د وجه نه به خلقو مسرف بن عقبه په نوم باندې يادولو هغه په حرد واقم کښې ډيره واچوله چه د مدينې مشرقی طرف ته واقع دې بل طرف ته حضرت عبدالله بن حنظله رضی الله عنهما ميدان ته راغلوخود رياست اوحکومت په وړاندې هغوی کلك نه شو اوهغه دخپلو اوود خامنوسره شهيدشو

دمسلم بن عقبه لښکريانو ښه د قتل او تباهئ بازار ګرم کړو او ډيره بربادی نی اوکړه تقريباً اوولس سوه انصار اوديار لس سوه قريش اوعام خلق او ماشومانو اوښخونه علاوه لس زره کسان قتل کړل مدينه منوره ئی تباه اوبرباد کړه مال اواسباب ئی لوټ کړو د پاکو اوآزادو ښخو بې عزتی ئی اوکړه اته سوو ښخويه دې زياتی سره حمل شو هغه ماشومان چه کوم دد دې حمل نه پيداشو په اولادالحرة سره به يادېدل (٢)

**حضرت عبدالله بن حنظله رضی الله عنهما** - دادحضرت حنظله غسيل الملائکه خوئی دې د خپل پلارد شهادت نه نهه مياشتې پس هغه پيداشو دهغه دمور نوم جميله بنت عبدالله بن ابی بن سلول وو. حضرت عبدالله رضی الله عنه حضورپاك په اوښه باندې طواف کولوسره ليدلې دې د رسول الله ﷺ د وفات په وخت دهغه عمر اوود کاله وو. هغه د حضورپاك ﷺ نه صرف يوروايت نقل کړې دې. د کوم الفاظ چه دادی. إن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم أمربالوضوء لكل صلوة طاهرا أو غيرطاهر. (٣) مطلب دا چه رسول الله ﷺ ته دهرمونځ د پاره د اودس حکم ورکړې شوې ووکه هغه وخت به حضورپاك په اودس کښې وواوکه بې اودس به وو.

بل هغوی دحضرت عبدالله بن سلام، حضرت عمر او کعب احبار رضی الله عنهم نه احاديث روايت کړی دی. دهغوی نه روايت کونکوکښې صالح بن حسان مدنی، ضمضم بن جوش هفانی عباس بن سهل بن سعدساعدی. عبدالله بن أبی مليکه. عبدالله بن يزيدخطمی انصاری و قيس بن سعد بن عبادة انصاري او اسماء بنت زيد بن الخطاب رحمهم الله په خاص توګه د ذکرقابل دی.

حضرت عبدالله به دحره په واقعه کښې د انصارقائدوو اوقريشو عبدالله بن مطيع بن اسود په لاس باندې بيعت کړې وو. حضرت عبدالله د حره په ورځ ډير په بهادرئی او خوانمردئی سره جنګ کړې وو او تراخره پورې جنګيدلو اوخپل خامن به ئی وړاندې ليګل تردې چه اوود واړه

(١) معجم البلدان: ٢/٢٤٩.

(٢) رجع للتفصيل: معجم البلدان: ٢/٢٤٩وعمدة القاري: ١٤/٢٢٤.

(٣) سنن أبى داؤد: ١/٨ كتاب الطهارة باب السواک رقم:٤٨.

خامن نی په دغه معرکه کښې شهیدان شو دهغوی اکثر ملګری شهیدان شوې وو کله چه د
مسلم بن عقبه فوج په مدینه کښې داخل شو هغوی هم هغه شان جهنډا نیولې وه هغه وخت
دهغوی نه چاپیره پنځه کسان هم نه وو هغوی چه کله دا ددردنه ډکه نظاره اولیدله نو خپله
زغره نې کوزه کړه میدان ته نې وراودانګل او تردې چه شهید شو
مروان د هغوی رضی الله عنه په نعش باندې تیریدو دهغوی د شهادت ګوته هغه وخت هم پورته اوچته
وه په دې کتو سره مروان اووئیل په خدائې چه تادا ګوته دمرګ نه پس هم اوچته کړې وی نو د
حیرانتیاخبره نه ده تاخو په ژوندکښې هم مونږ ته دغه ګوته اوچته کړې ده یعنی په مونږ دې
تنقید کړې دې
په طبقات کښې ابن سعدرحمه الله نقل کړی دی چه هغوی په خوب کښې اولیدلې شو هغوی
دیرزیات ښکلې اوښائسته لیدلې شو دهغوی علم یعنی جهنډا هغوی سره وه خوب لیدونکی
سړی معلومه کړه اې عبدالرحمن! آیا ته وژلې شوې نه وې؟ هغوی اوفرمائیل ولې نه زما خپل
رب سره ملاقات شوې زما رب زه جنت ته داخل کړم اوس زه چه د جنت په باغونو کښې څه
غواړم اوچرته تلل غواړم کولې شم ما تپوس اوکړو چه ستادهغه ملګرو څه اوشو؟ هغوی
اوفرمائیل هغه هم ماسره دی زما جهنډې سره چاره چه دهغوی غوټې هم تراوسه پورې نه دی
کولاؤ شوې (۱)

**دابن حنظله په تعیین کښې دکرمانی رحمه الله وهم:** علامه کرمانی رحمه الله ته د ابن حنظله په تعیین
کښې دوه وهمونه مخې ته شوی دی ① یوخودا چه هغوی اوفرمائیل چه ابن حنظله هغه سړې
دې چه د یزیدبن معاویه د طرف نه بیعت اخستلو باندې ماموروو
② یادابن حنظله نه مراد هم پخپله یزید دې لکه چه دا نسبت د یزیدنیکه حضرت ابوسفیان
رضی الله عنه طرف ته دې ځکه چه دهغوی کنیت ابوحنظله هم وو نوتقدیری عبارت به داسې شی ابن
أبی حنظلة یعنی أبی د تخفیف په توګه حذف شوې دې یادا نسبت د یزید تره حنظله بن ابی سفیان
طرف ته دې چونکه دحنظل معنی د اندرائن چه ډیر سخت تره وه میوه ده په دې وجه د
یزیدد پاره دابن حنظله نسبت دهغه د تریخوالی اود ډیرظلم د وجه نه استعمالیدلو (۲)
حافظ ابن حجررحمه الله فرمائی دا دواړه احتمالات غلط دی ړومبې احتمال خوځکه چه ټولو
مورخینو د یزیدپه بیعت اخستلو باندې ماموړسړی نوم مسلم بن عقبه لیکلې دې ځوک چه به
خلقو د خپل ظلم اوستم د وجې نه مسرف یادولو اوحضرت عبدالله بن حنظله رضی الله عنه دانصارو
امیروو لکه چه عبدالله بن مطیع د قریشو اومهاجرینو امیروو اودا دواړه په دغه معرکه کښې
شهیدان شوی وو اوس راځو دویم احتمال ته چه دې م پخپله هم یزید مراد دی
دا احتمال ځکه غلط دې چه هم په بخاری کتاب المغازی کښې هم دغه روایت راځی د کوم
الفاظ چه دادی لما کان یوم الحرة والناس یبایعون لعبدالله بن حنظلة، فقال ابن یزید علی ما یبایع ابن

---

(۱) د دې تفصیلی حالاتو د پاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۴۳۶/۱۴ وسیر أعلام النبلاء: ۳۲۱/۳ و طبقات
ابن سعد: ۶۵/۵ والتاریخ الکبیر للبخاری: ۶۷/۵ رقم الترجمة: ۱۶۸.
(۲) شرح الکرمانی: ۱۹۹/۱۲.

حنظلة الناس[۱]

د دې تفصيل نه معلومه شو چه د ابن حنظله نه مراد د حضرت حنظله رضی الله عنه خوئي هم عبدالله وو چه په واقعه حره كښې د انصارو مشرى كولو سره د شهادت مرتبه ته رسيدلې وو [۲]

**قوله** لاأبايع على هذا أحدا بعد رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم - د حضرت عبدالله بن زيد د دې قول نه معلوميږى چه هغوى د رسول الله صلى الله عليه وسلم په لاس مبارك باندې د مرګ بيعت كړې وو خو د دې خبرې صراحت هغوى نه دې كړې په دې وجه امام بخارى رحمه الله د روايت نه پس زر د حضرت سلمه رضی الله عنه روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه د بيعت على الموت تصريح ده [۳]

**بيعت على الموت نه د انكار وجوهات** - علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه د عبدالله بن زيد د بيعت نه كولو وجه داوه چه هغه به د فتنو په وخت كښې په كور كښې ناست وو او د يوې دلې تائيد او حمايت نه كول ئې مناسب ګڼړل لكه چه په حديث كښې راخى ستكون فتن القاعد فيها خير من القائم [۴] يعنى ډير زر فتنې شروع شوې په كوم كښې چه ناست سړې به د ولاړ نه بهتروى او د بعض سلف هم دغه مذهب دې [۵]

علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى چه په هر مسلمان باندې لازم وه چه خپل ځان قربان كړى او د نبى كريم صلى الله عليه وسلم حفاظت اوكړى او د صحابه كرامو رضی الله عنهم د پاره داضرورى وه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم پريخودو سره د ميدان نه اونه تختى. بلكه تر آخرى وخته پورې دې جنګيږى نو دا د حضورپاك خصوصيت وو د بل چا احكم نه وو چه خپل ځان وركړنى او د هغوى حفاظت اوكړنى په دې وجه حضرت عبدالله بن زيد په مرګ باندې د بيعت كولو نه انكار اوكړو [۶]

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** د دې حديث شريف مطابقت ترجمة الباب سره د دويم جز وقال بعضهم على الموت سره دې ځكه چه د حضرت عبدالله بن زيد رضی الله عنه قول چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پس د بل چا په لاس باندې د مرګ بيعت نه كوم نه داخبره معلوميږى چه هغوى د سرور كائنات صلى الله عليه وسلم په لاس باندې د مرګ بيعت كړې وو [۷]

---

[۱] ) صحيح بخارى: ۵۹۹/۲ كتاب المغازى باب غزوة الحديبية رقم: ۴۱۶۷.
[۲] ) فتح البارى: ۱۱۸/۶ وعمدة القارى: ۲۲۴/۱۴.
[۳] ) فتح البارى: ۱۱۸/۶ وعمدة القارى: ۲۲۴/۱۴.
[۴] ) صحيح البخارى: ۱۰۴۸/۷ كتاب الفتن باب تكون فتنة القاعد فيها خير من القائم: رقم: ۷۰۸۱ – ۷۰۸۲.
[۵] ) شرح ابن بطال: ۱۳۲/۵.
[۶] ) فتح البارى: ۱۱۹/۶.
[۷] ) عمدة القارى: ۲۲۴/۱۴.

احدیث نمبر ۲۸۰۰ [۱] حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ - رضی الله عنه - قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ عَدَلْتُ إِلَى ظِلِّ الشَّجَرَةِ، فَلَمَّا خَفَّ النَّاسُ قَالَ «يَا ابْنَ الأَكْوَعِ، أَلاَ تُبَايِعُ». قَالَ قُلْتُ قَدْ بَايَعْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «وَأَيْضًا». فَبَايَعْتُهُ الثَّانِيَةَ. فَقُلْتُ لَهُ يَا أَبَا مُسْلِمٍ، عَلَى أَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تُبَايِعُونَ يَوْمَئِذٍ قَالَ عَلَى الْمَوْتِ. [۴۱۶۹، ۷۲۰۶، ۷۲۰۸]

حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس مبارک باندې بیعت اوکړو بیا زه د یوې ونې لاندې لاړم کیناستم کله چه د خلقو کنړه خوره شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل اې د اکوع خویه آیا ته بیعت نه کوې؟ ما اووئیل چه حضرت ما خو اوکړو حضور پاک اوفرمائیل یوځل بیا نو ما دوباره بیعت اوکړو. راوی یزید بن ابی عبید وائی چه ما اووئیل اې ابومسلم (دحضرت سلمه رضی الله عنه کنیت دې) تاسو حضراتو به د څه څیز بیعت کولو؟ حضرت سلمه رضی الله عنه اوفرمائیل مونږ خلقو به د مرګ بیعت کولو.

**یولسم ثلاثي حدیث:-** ثلاثي حدیث مطلب داوی چه د راوی او نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مینځ کښې صرف درې واسطې وی[۲] لکه چه د سند نه واضح دی.

**دحضرت سلمه رضی الله عنه نه د دوو ځلو بیعت اخستلو وجه:-** علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه د بیعت د تکرار مقصد د بیعت تاکید او پوخوالې دې ځکه چه حضرت سلمه رضی الله عنه په بهادرئی مال دارئی او ثابت قدمئی کښې یو امتیازی حیثیت لرلو په دې وجه دهغه نه په دویم ځل بیعت واخستلې شو[۳] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه حضرت سلمه رضی الله عنه یولوئی جانباز او مجاهد وو. سور به هم جنګیدو او پیاده به هم جنګیدو لکه چه هغه د مجاهدینو قائم مقام وو نو حضور پاک صلی الله علیه وسلم دهغه نه په دویم ځل بیعت واخستلو[۴]

مولانا رشید احمد ګنګوهی فرمائی د حضرت سلمه رضی الله عنه نه دوه ځل بیعت اخستلو کښې حکمت دادې چه د بهادرانو او جانبازانو بیعت کښې شدت اهتمام د دښمنانو د پاره د ویرې او دهمکئی سبب وی ځکه چه بهادر سړې کله د دې خبرې عهد اوکړی چه هغه به ترمرګه پورې جنګیږی نو هغه د ازمیښتونو پرواه نه کوی بلکه په میدان کښې ګلک ولاړ وی او خپل ځان په داؤ لګوی ښکاره خبره ده چه د داسې بهادر سړی د ثابت قدمئی او نه ویرېدو سره به د دښمن کافی نقصان کیږی.[۵]

---

[۱] ) أخرجه البخاری ایضًا فی صحیحه :۵۹۹/۲ فی کتاب المغازی باب غزوة الحدیبیه: رقم:۴۱۶۹ وفی الاحکام ۱۰۶۹/۷ - ۱۰۷۰ وفی کتاب الامارة باب استحباب مبایعة الامام الجیش عند إرادة القتال رقم: ۱۸۶. والترمذی فی جامعه: ۲۸۸/۱ فی السیر باب ماجاء فی بیعة النبی صلی الله علیه وسلم: رقم: ۱۹۵۲.

[۲] ) راجع للتفصیل. کشف الباری :۲۵/۱.

[۳] ) شرح ابن بطال: ۱۳۰/۵.

[۴] ) فتح الباری:۱۱۹/۶.

[۵] ) لامع الدراری: ۲۵۶/۷.

شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله مختلف اقوال نقل كولونه پس فرمائى چه د حضرت گنگوهى رحمه الله دا توجيه ډيره بهتره ده (۱)

احديث نمبر ۲۸۰۱](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا - رضى الله عنه - يَقُولُ كَانَتِ الأَنْصَارُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ تَقُولُ:

نَحْنُ الَّذِينَ بَايَعُوا مُحَمَّدَا عَلَى الْجِهَادِ مَا حَيِينَا أَبَدَا

فَأَجَابَهُمُ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ:

اللَّهُمَّ لاَ عَيْشَ إِلاَّ عَيْشُ الآخِرَهْ فَأَكْرِمِ الأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَهْ

كتاب الجهاد باب حضر الخندق لاندې دا حديث اول تيرشوې دې

**دحديث ترجمة البابسره مطابقت** - ددې حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت د صحابه كرامو رضى الله عنهم قول على الجهاد ما حيينا ابدا نه ماخوذ دې. ځكه چه ترڅوندې پورې د جهاد كولو هم دغه معنى ده چه هغه به د جنگ نه هيڅ كله نه تختى (۳)

احديث نمبر ۲۸۰۲](۴) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ فُضَيْلٍ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِى عُثْمَانَ عَنْ مُجَاشِعٍ - رضى الله عنه - قَالَ أَتَيْتُ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - أَنَا وَأَخِى فَقُلْتُ بَايِعْنَا عَلَى الْهِجْرَةِ. فَقَالَ «مَضَتِ الْهِجْرَةُ لأَهْلِهَا». فَقُلْتُ عَلاَمَ تُبَايِعُنَا قَالَ «عَلَى الإِسْلاَمِ وَالْجِهَادِ». [۲۹۱۳، ۴۰۵۴، ۴۰۵۵]

**مجاشع بن مسعود رضى الله عنه** :- دا مجاشع بن مسعود بن ثعلبه بن وهب اسلمى رضى الله عنه دې د دوى نسب د مضربن نزار په واسطه جناب رسول كريم صلى الله عليه وسلم سره ملاويږى. د هغه د رور نوم مجالد بن مسعود رضى الله عنه دې د دوى د مور بى بى نوم مليكة بنت سفيان دې هغه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم نه دوه احاديث نقل كړى دى. امام بخارى مسلم ابوداؤد اوترمذى رحمهم الله د ده روايات نقل كړى دى. د دوى نه روايت كونكى ابوساسان حصين بن منذر رقاضى، عبدالملك بن عمير، كليب بن شهاب جزمى، رافع بن خديج رضى الله عنه وراره يحيى بن اسحاق او ابوعثمان نهدى رحمهم الله وغيره دى (۵)

---

(۱) حاشية اللامع: ۲۵۶/۷.

(۲) قدمر تخريجه فى كتاب الجهاد باب التحريض على القتال وقول الله عزوجل: ﴿حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ﴾ (الانفال:۶۵) رقم: ۲۸۳۴.

(۳) عمدة القارى: ۲۲۵/۱۴.

(۴) أخرجه البخارى فى كتاب الجهاد باب لا هجرة بعد الفتح، رقم: ۳۰۷۸ وفى كتاب المغازى باب بلاترجمة بعد باب مقام النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بمكة زمن الفتح رقم:۴۳۰۵ – ۴۳۰۸ ومسلم فى كتاب الامارة باب المبايعة بعد فتح مكة على الاسلام والجهاد والخير وبيان معنى لاهجرة بعدالفتح رقم: ۱۸۶۳ ومسنداحمد ۴۶۸/۳ – ۴۶۹.

(۵) تهذيب الكمال فى اسماء الرجال: ۲۱۴/۲۷.

**د حضرت مجاشع رضي الله عنه اسلام** - علامه کرماني رحمه الله ليکي دي چه حضرت مجاشع رضي الله عنه به د اسونو په مقابله کښې شرکت کولو يوځل د هغه اس پنځوس زره دينار په انعام کښې حاصل کړل [۱] حضرت مجاشع رضي الله عنه په واقعه جمل کښې شهيد شوې [۲]

**د حديث تشريح** - حضرت مجاشع رضي الله عنه فرمائي چه زه د خپل رور سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم دربار ته حاضرشوم اوعرض مې اوکړو يارسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ نه په هجرت کولوباندې بيعت واخله نوحضورپاك اوفرمائيل هجرت خو مهاجرينو سره ختم شو نوماعرض اوکړو نوبيابه تاسو زمونږ نه د څه څيز بيعت اخلئ؟ نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل په اسلام او جهاد باندې بيعت.

**وأخي** - دحضرت مجاشع رضي الله عنه د رور نوم مجالد رضي الله عنه او ابومعبد کنيت دي [۳] د فتح مکه نه پس مسلمان شوې [۴] هغوی د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه صرف يو روايت نقل کړې دې چه ابوعثمان نهدی رحمه الله د هغوی نه نقل کوی.[۵]

عمرو بن علی فرمائي چه ماته د هغه د يومستقل روايت علم نشته البته کوم روايت چه د هغوی نه مروی دې هغه په اصل کښې د خپل رور مجاشع رضي الله عنه د روايت تصديق دی [۶] دابوعثمان نهدی رحمه الله مطابق حضرت مجالد رضي الله عنه د حضرت مجاشع رضي الله عنه نه په عمرکښې زيات وويعنی مشرورو [۷]

**د قصو وئيلومذمت** - حافظ ابن حجر رحمه الله دحضرت حسن بصری رحمه الله په حواله سره د هغوی يوه واقعه نقل کوی چه کله بصره کښې اسود بن ذريع د قصوکولو شروع اوکړه نو يوه هنګامه راوچته شوه حضرت مجالد بن مسعود يوځل د قصوکولومجلس ته تشريف راوړو نوخلقو د احترام د وجه نه هغوی ته ځائی ورکړو بيا حضرت مجالد رضي الله عنه دغه خلقو ته مخاطب شو ونې فرمائيل په خدائی زه دلته تاسو له تاسو سره کيناستودپاره نه يم راغلې ليکن زه ګورم چه تاسو خلقو يوداسې کارشروع کړې دې کوم چه مسلمانان ناخوښه کوی زه تاسو ته تنبيه درکوم د داسې کارونو نه بچ شئ کوم چه مسلمانان ناخوښه کوی اونفرت ترې کوی [۸] ابن حبان رحمه الله فرمائی چه هغوی ۳۶ هجری واقعه جمل کښې شهيدشوې [۹] خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی په واقعه جمل کښې شهيد کيدونکې د هغه رور حضرت مجاشع رضي الله عنه دې او

---

[۱] ) شرح الکرمانيک۱۷/ ۲۰۰.
[۲] ) تقريب التهذيب ص: ۵۲۰.
[۳] ) تهذيب الکمال: ۲۷/ ۲۲۷.
[۴] ) عمدة القاري: ۱٤/ ۲۲۵.
[۵] ) خلاصه خزرجي ص: ۳۶۹.
[۶] ) تهذيب التهذيب: ۱۰ ٤۱-٤۰.
[۷] ) تهذيب التهذيب: ۱۰/ ٤۱.
[۸] ) الاصابة: ۳/ ۳۶۳.
[۹] ) الثقات لابن حبان: ۵/ ٤٤۸.

مجذد ﷺ تر ۴۰ هجرى پورې ژوندې وو (۱)

عَلاَم. دا په اصل کښې على ما؟ وو ما استفهاميه اوما خبريه، موصوله تامه وغيره کښې فرق واضح کولو دپاره دلته تخفيف کولو سره علام فيم الامر ونيلي شي، اوقاعده داده چه کله ما استفهاميه مجرور وى نو په هغې کښې تخفيف ضرورى دې لکه ﴿ عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ ۝ ﴾ (۲).

**ترجمة الباب سره مطابقت** - د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت د حضورپاك ﷺ قول والجهاد کښې دې په دې وجه دصحابه کرامو ﷺ د جهاد بيعت هم د دې مقصد دپاره شوې وو چه هغوى به د ميدان نه تيخته نه کوى بلکه ترمرګه به جنګيږى (۳) والله اعلم وعلمه اتم واحکم

## باب ۱۱۰: عزم الامام على الناس فيما يطيقون

**د ترجمة الباب مقصد** - امام بخارى ﷫ په دې باب بيانولو سره دابيانول غواړى چه دامام اطاعت په اندازه د طاقت واجب دې. امام له پکاردى چه هغه خپلو ماتحتانوته د حکم ورکولوپه وخت د دې خبرې خيال اوساتى چه دخلقو دپاره هغه حکم قابل عمل هم وى اوډهغوى د طاقت نه بهرهم نه وى. (۴)

[حديث نمبر ۲۸۰۳] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ - رضى الله عنه - لَقَدْ أَتَانِي الْيَوْمَ رَجُلٌ فَسَأَلَنِي عَنْ أَمْرٍ مَا دَرَيْتُ مَا أَرُدُّ عَلَيْهِ، فَقَالَ أَرَأَيْتَ رَجُلاً مُؤْدِيًا نَشِيطًا، يَخْرُجُ مَعَ أُمَرَائِنَا فِي الْمَغَازِي، فَيَعْزِمُ عَلَيْنَا فِي أَشْيَاءَ لاَ نُحْصِيهَا. فَقُلْتُ لَهُ وَاللَّهِ مَا أَدْرِي مَا أَقُولُ لَكَ إِلاَّ أَنَّا كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَعَسَى أَنْ لاَ يَعْزِمَ عَلَيْنَا فِي أَمْرٍ إِلاَّ مَرَّةً حَتَّى نَفْعَلَهُ، وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَنْ يَزَالَ بِخَيْرٍ مَا اتَّقَى اللَّهَ، وَإِذَا شَكَّ فِي نَفْسِهِ شَيْءٌ سَأَلَ رَجُلاً فَشَفَاهُ مِنْهُ، وَأَوْشَكَ أَنْ لاَ تَجِدُوهُ، وَالَّذِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ مَا أَذْكُرُ مَا غَبَرَ مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ كَالثَّغْبِ شُرِبَ صَفْوُهُ وَبَقِيَ كَدَرُهُ.

## رجال الحديث

① **عثمان بن ابى شيبه** - داعثمان بن محمدبن قاضى ابوشيبة ابراهيم بن عثمان عبسى کوفى ﷫ دې

② **جرير** - داجرير بن عبدالحميد بن قرط ضبى رازى ﷫ دې.

③ **منصور** - دامنصور بن معتمر ابوعتاب سلمى کوفى ﷫ دې د دې درېواړو حضراتو

---

(۱) تهذيب التهذيب: ۱۰/۴۱ وتقريب التهذيب ص: ۵۲۰.

(۲) عمدة القارى: ۱۴/۲۲۵.

(۳) عمدة القارى: ۱۴/۲۲۵.

(۴) عمدة القارى: ۱۴/۲۲۵.

حالات کتاب العلم باب من جعل لاهل العلم ایاما معلومة لاندې تیرشوی دی (۱)

④ ابووائل - دا ابووائل شقیق بن سلمه اسدی کوفی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الایمان باب خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهولایشعر لاندې تیرشوی دی. (۲)

⑤ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه - دامشهورصحابی حضرت عبدالله بن مسعود هذلی دې د دوی تذکره کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم لاندې تیره شوې ده (۳)

**د حدیث مفهوم** - حضرت عبدالله رضی الله عنه فرمائی چه نن ماله یوسړې راغلو هغه زمانه د یوخبرې تپوس اوکړو ماته نه ده معلومه چه زه هغه ته څه جواب ورکړم؟ هغه اوونیل چه که یوتکړه او مسلح سړې دغه امراؤ سره په جنګونو کښې اوځی اوهغوی ده ته د داسې کارونوحکم ورکوی چه هغه نی نه شی کولې نوتاسو ماته اووایئ چه په دغه سړی باندې د داسې احکامو پوره کول ضروری دی؟ نوماهغه ته اوونیل په الله قسم چه ماته نه ده معلومه چه زه تاته څه جواب درکړم. مونږ خو به نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره وو ډیرکم به حضورپاك مونږ ته د یوڅیز حکم راکولو چرته کله به نی فرمائیل نوهغه به نی هم یوځل فرمائیل اومونږ به زر هغه پوره کړو یادساتئ په تاسو خلقو کښې به ترهغه وخته پورې خیر وی ترکوم وخته پورې چه تاسو د الله تعالی نه ویرېږئ. اوکله چه ستاسو په زړه کښې د یوڅیزباره کښې شك پیداشی (چه کول پکاردی که نه) نوچرته د داسې سړی نه تپوس اوکړئ چه ستاسو تسلی اوشی. اوهغه وخت هم راتلونکې دې چه څوك داسې سړې هم (چه صحیح صحیح مسئلې اوبنائی) به تاسو ته نه ملاویږی. د هغه ذات قسم د چانه بغیرچه بل معبود نشته څومره دنیاچه باقی پاتې ده هغه د وادئ د هغه اوبوپه شان ده د کومې ښه اوصفا حصه خو څکلې شوې ده اوخیرنې اوبه پاتې دی.

علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه داحدیث د امام او هغه مقررکړې شوی کسانو په اطاعت باندې دلالت کوی اود هغې اهمیت بیانوی. دلته د سائل داپښتنه کول چه آیا چرته څه داسې صورت راوتلې شی په کوم کښې چه ګنجائش وی چه هغه دې امیر اطاعت نه کوی اود امراء داحالت وی چه هغوی دې خپل ماتحتان تکلیف مالایطاق باندې مجبور کړی. اود حضرت ابن مسعود رضی الله عنه په فتوی ورکولوکښې احتیاط کول د دې خبرې دلیل دې چه د امام اطاعت ډیراهم دې

**په ناجائزکارونوکښې د امام د اطاعت حکم** - په داسې حالاتوکښې چه کله مامور د حکم په خائی راوړلوباندې قادرنه وی نود دې څه حکم دې؟ دا رسول الله صلی الله علیه وسلم بیان کړې دې په کتاب المغازی کښې حدیث راروان دې په کوم کښې چه عبدالله بن حذافه انصاری رضی الله عنه خپلو مامورینوته په اور کښې د وردانګلو حکم ورکړې وو (۴)

کله چه داحضرات واپس حضورپاك له راغلل اوهغوی واقعه واؤریده نو په دې باندې نی نکیر

---

(۱) کشف الباری: ۳/۲۲۹ — ۲۳٤.

(۲) کشف الباری: ۲/ ٥٥۹.

(۳) کشف الباری: ۲/ ۲٥۷.

(٤) صحیح البخاری ۲/ ۲۷۲ کتاب المغازی باب سریة عبدالله بن حذافة السهمی رقم الحدیث: ٤۳٤۰.

فرمائیلو سره اوفرمائیل لودخلتموها ماخرجتم منها أبدا أنما الطاعة في المعروف یعنی که چرې تاسو ورته وردانګلي وې نوکله به هم د دې نه راوتلي نه وئي اطاعت خو صرف په نیکو کارونوکښې دې بل دالله تعالی ارشاد ﴿ لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ﴾ [۱] ، هم په دې باره کښې واضح دې انسان خو صرف د هغه خبرو مکلف دې د کوموچه هغه طاقت لرى [۲]

**د حضرت عبدالله د توقف وجه** :حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ په جواب ورکولوکښې د اشارې نه کار اخستې دې لکه څنګه چه هغوی فرمائی مونږ ته خو به رسول الله ﷺ کله کله د حکم راکولوضرورت محسوس کولو نومونږ به زر د حکم تعمیل کولواو سستی به مونه کوله ددې خبرې نه اشاره ملاویږی چه دامیراطاعت کول پکاردی خو په صورت مسؤله کښې څه کول پکاردی؟ ددې صراحت نه ملاویږی آخر ابن مسعود ﷛ په صراحت سره ولې جواب ورنه کړو؟

حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی کله چه امیر یولښکر د جهاد یا بل څه اهم مهم دپاره تشکیل کوی نوهغه لښکروالا د دې مهم دپاره متعین کیږی اوهغه ذمه واری د هغوی دپاره د فرض عین په شان درجه اختیاره وی. اوس که په سپاهیانو کښې یوسړې داګیله کوی چه امیر مونږ هسې بې ځایه د احکاماتو پوره کولوباندې مجبوره وی نود مفتې دپاره یود لار اختیارول مشکل کیږی که مفتی د وجوب طاعت فتوی ورکوی نود زمانې د فساد د وجه نه مسئله جوړیږی څکه چه اکثرحکمرانان هم ظالمان وی اوکه د عدم وجوب طاعت فتوی نې ورکړه نوداهم د فتنه سبب دې د چا زړه چه نه غواړی د مشکل مهماتونه پاتې کیدو دپاره به زر بهانه کوی چه زه دا نه شم برداشت کولې اودا زمادطاقت نه بهردې او په تکلیف مالایطاق کښې دامیراطاعت واجب نه دې دغه شان به ډیرزیات معاملات دخواهشاتوتابع کیدو سره هم دغه شان پاتې شي په دې وجه حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ په جواب ورکولوکښې توقف نه کار واخستلو اود خاص صورت مسؤله د جواب ورکولوپه ځائی عمومی جواب ورکړو که د امیرحکم دتقوی موافق وو نواطاعت ضروری دې [۳]

**یو فقهی قاعده**:- دې حدیث شریف نه یو فقیهی قاعده هم مستنبط کیږی هغه دا چه که د یوې مسئلې مختلف اړخونو او د یواړخ ترجیح ورکول مشکل وی نومفتی له پکاردی چه هغه په دغه مسئله کښې توقف اختیارکړی لکه څنګه چه دلته عبدالله ابن مسعود ﷛ توقف نه کاراخستې دې [۴]

**دحدیث دبعض اړخونوتشریح** **أتاني اليوم رجل** داسړې څوك وو؟ ددې تعین اونه کړې شو.

**مادريت ماأرادعليه** - زما په خیال کښې نه راځی چه زه ده ته څه جواب ورکړم؟

---

[۱] ) سورة البقرة:۲۸۶.

[۲] ) شرح ابن بطال:۵/ ۱۳۲ – ۱۳۳.

[۳] ) فتح الباري: ۵/ ۱۲۰ ملخصًا وأرشاد الساري: ۵/ ۱۲۲.

[۴] ) فتح الباري: ۵/ ۱۲۰ ملخصًا وأرشاد الساري: ۵/ ۱۲۲.

دری: درایة ودریة پیژندل پوهیدل دَ باب رَی ونیل شی لاأدری زه نه پوهیږم ماأرد علیه:- داموصوله دې پوره جمله محل نصب کښې مفعول به واقع کیږی دریت دَ فعل دپاره دې (۱)

رجلامؤدیا أی ذا أداة للحرب یعنی مسلح وو علامه کرمانی رحمه الله قویا متمکنا یعنی طاقت ور او په دښمن باندې قابوبیاموندونکې بیان کړې دې (۲) ږومبې مطلب زیات واضحه دې اودویم تفسیر باللازم دې څوك چه په وسله باندې پوره وی هغه به طاقتور او قابو بیاموندونکې هم وی (۳) دا مهموز دې دَ دې همزه حذف کول ناجائزدی ځکه چه بیا به مودیا نه التباس لازم راځی دَ کوم معنی چه هلاك کیدونکې ده (۴)

یخرج مع أمرائنا - یعنی هغه په جنګونوکښې زمونږ حاکمانو سره اوځی علامه کرمانی رحمه الله فرمانی دَ قیاس تقاضا خودادہ چه یخرج مع أمرائه وی ځکه چه دې نه وړاندې فعل رجلا ذکردې نو أمرائه ضمیر رجلا طرف ته به راجع وی خو دلته دَالتفات نه کاراخستې شوې دې دَ رجلا معنی أحدنا دې یا رجلا صفت محذوف دې تقدیرعبارت داسې دې رجلا منا یخرج منا أمرائنا (۵) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمانی چه بعض روایاتوکښې یخرج مع أمرئنا وارد شوې دې په دې صورت کښې التفات عن الغائب الی المتکلم به وی (۶)

دَالتفات مطلب - درې صیغې دی متکلم مخاطب او غائب اوس خبرې کونکې دَ دریواړو صیغونه یوه تعبیرکولو سره دَ دویمې صیغې طرف ته خلاف ظاهر دَخپلې خبرې رخ تاؤکړی نودې ته به التفات وئیلې شی لکه دَالله تعالی ارشاد ﴿وَمَا لِيَ لَآ أَعْبُدُ الَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾ (۷) نودلته دَ ماقبل په مناسبت سره وإلیه أرجع کیدل پکاردی خو خلاف ظاهر صیغه متکلم نه صیغه دَ خطاب طرف ته التفات کړې شوې دې التفات دَعلم بدیع یوقسم دې دَ کوم مقصد چه اوریدونکې بیدارول دی او په هغه کښې نشاط پیداکول وی ځکه چه هم په یوه طریقه سره خبره کولوسره اوریدونکې ستړې کیږی (۸)

لاتحصیها - دَ دې جملې دوه مطلبونه بیان کړې شوی دی: ① لاتطیقها یعنی مونږ دَدې طاقت

---

۱) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۶ وفتح الباری: ۶/۱۱۹.
۲) شرح الکرمانی ۱۲/۲۰۰.
۳) فتح الباری: ۶/۱۱۹.
۴) فتح الباری: ۶/۱۱۹.
۵) شرح الکرمانی ۱۲/۲۲۰.
۶) فتح الباری: ۶/۱۱۹.
۷) سورة یس: ۲۲.
۸) مختصر المعانی بحث الالتفات ص: ۱۵۴ قدیمی.

اوقدرت نه لرو ددې معنی تائید فرمان الهی ﴿ عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ ﴾ [1] سره هم کیږی

② دویمه معنی دابیان کړې شوې ده چه مونږ داتعین نه شوکولې چه په داسې کارونوکښې دحکمرانانو خبره منل نیکی ده که بدی په دې کښې ثواب دې که ګناه؟

**د دواړو مطلبونو توجیه** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دومبې مطلب د امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب سره مطابق دې د کوم الفاظ چه دادی **فیمایطیقون** چنانچه لاتحصیها معنی لانطیقها شوه او دویم مطلب دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه قول **إذا شك فی نفسه شئ سال رجلا فشفاه منه** موافق دې یعنی دا دتقوی تنبه ده چه کومه خبره زړه ته نه لګی او شك پیداکوی نو په هغه خبره باندې ترهغه وخته پورې عمل مه کوه ترکومې چه د یوعالم نه په تپوس کولوسره تسلی اونه کړی [2]

**إذا شك فی نفسه شئ** - د شك په معنی کښې دلته دوه احتماله دی ① **شك** په معنی د حق دلزم اینختل لیکیدل د یوڅیز بل څیز سره کیدل [3]

②**شك** یعنی شبه پیداکیدل ددې احتمال په صورت کښې په عبارت کښې قلب یعنی تقدیم اوتاخیرشوې دې اصل عبارت داسې دې **إذا شك نفسه فی شئ** یعنی که دهغه زړه په څه خبره کښې شك شبه محسوس کړی..... [4]

**فشفاه منه** -دا جزاء شرط دې یعنی که په زړه کښې د یوې خبرې باره کښې شك پیداشی چه داکارکول پکاردی که نه؟ نوهغه له پکاردی چه د یوعالم نه تپوس اوکړی چه دده شك او تردد لرې کولوسره دې مطمئن کړی [5]

داد اضدادنه دې الزمان الغابر یعنی هغه زمانه چه تیره شوې یا هغه زمانه کومه چه باقی ده په دواړو معنوکښې استعمالیږی [6] په دې عبارت کښې د دواړو معنواحتمال دې یعنی ابن مسعود رضی الله عنه د زمانه ماضی تشبیه ثغب سره ورکوی یا د باقی زمانې تشبیه بیانوی علامه ابن جوزی رحمه الله د ماضی معنی راجح ګرځولې ده ځکه چه دې نه وړاندې **ماأذکر** راغلې دې د کوم معنې چه ماته نه یادیږی کومه زمانه چه تیره شوې ده مګر د دې مثال داسې دې لکه هغه اوبه چه د کومې صفا حصه څکلې شوې ده او خیرنه حصه ئې پاتې ده [7] لکه چه د تیرې شوې زمانې تشبیه ئې صفا اوبوسره ورکړې ده اودموجوده زمانې تشبیه ئې ګنده اوخیرنواوبوسره ورکړې ده.

---

[1] ) سورة المزملک ۲۰.

[2] ) فتح الباری:۱۱۹/۶.

[3] ) لسان العرب ۴۵۲/۱۰ فصل الشین المعجمة.

[4] ) عمدة القاری:۲۲۶/۱۴

[5] ) عمدة القاری:۲۲۶/۱۴

[6] ) شرح الکرمانی ۲۰۱/۱۲.

[7] ) عمدة القاری:۲۲۷/۱۴

کالثغب:- بفتح الثاء المثلثة وسکون الغین المعجمة ویجوز فتحها یعنی غین فتح سره لوستل هم جائزدی دَدي جمع ثِغاب په وزن دَ کتاب او اَثغاب په وزن دَ اَصحاب راځي اوچه غین مفتوح وی نودَدي جمع ثغبان وثُغبان بکسرالثاء وضمها دواړه شان راځي ثَغب هغه تالاب ته وائي چه دَ غرپه لمن یعنی سوری کښې وی اونمر هلته نه لګی او په دغه وجه باندې دَهغې اوبه صفا یخې او ښکلې وی (۱)

**قوله** :ذهب صفوه وبقی کدره.- یعنی حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دَ باقی پاتې دنیاژوندله دغه تالاب سره تشبیه ورکړې دهٔ دَ کوم صفا اوبه چه ختمې شوی دی اوګنده اوبه ئې باقی پاتې شوی دی

**دَ غورقابل خبره**.- اوس دلته داخبره دَ غور قابله ده که دَحضرت عبدالله اندازه دخپل وخت باره کښې داسې وه چه دَهغه انتقال دَحضرت عثمان رضی الله عنه دَ شهادت او عظیم فتنو واقع کیدو نه وړاندې شوې دی نوزمونږ دَدې زمانو اوحالاتو باره کښې به دَهغوی څه اندازه وه اودهغوی به څه رائې وه ؟ (۲) بل ابن مسعود رضی الله عنه په دې حدیث کښې دَعلماء حق قلت اودَخلقو دَ طریقې نه په کوم چه هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم پریخودې وودانحراف شکوه کوی (۳) الله تعالی دې مونږ سره دخپل عافیت اودَخپل خصوصی فضل اوکرم معامله اوکړی آمین

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه دَدې اثر ترجمة الباب سره مطابقت دَدې جملې نه ماخوذ دې **فیعزم علینا فی أشیاء لانحصیها** (۴) اوشاته مونږ بیان کړې دې چه دَلاتحصیها مطلب دلته لانطیقها دې لکه څنګه چه په ترجمة الباب کښې هم **فیما لایطیقون** استعمال شوې دې والله اعلم بالصواب.

## باب ۱۱۱: کان النبی صلی الله علیه وسلم إذا لم یقاتل أول النهار أخر القتال حتی تزول الشمس

**دَ ترجمة الباب مقصد**.- امام بخاری رحمه الله دلته دابیان کول غواړی چه که حضوراکرم صلی الله علیه وسلم به دَ ورځ په شروع کښې دَ جنګ نه شروع کولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به جنګ روستوکولو. بیا دَ آفتاب دَ زوال نه پس به حضورپاک جنګ کولو دې نه معلومه شوه چه دواړه اوقات ټیک دی دَ موقع مناسبت سره چه څنګه هم وی. که اول نهاروی، بیا په اول نهارکښې دَ صبح صادق دَ طلوع کیدو وخت ډیر اولی او غوره دې ځکه چه دادَ دښمن دَغفلت وخت وی اودغه وخت دَ یخو یخو هواګانووی. اوکه دَڅه عارض دَ وجې نه دَ سحروخت دَ جنګ شروع اونه کړې شی نودَ

(۱) مصباح اللغات ص:۹۳وعمدة القاری: ۱٤/۲۲۷.
(۲) عمدة القاری: ۱٤/۲۲۷ وفتح الباری:۶/۱۲۰.
(۳) شرح ابن بطال: ۵/۱۳۳.
(۴) عمدة القاری ۱٤/۲۲۶.

زوال نه پس شروع كيدل پكاردى بهرحال په دې معامله كښې وسعت دې په دواړو وختونو كښې چه كوم مناسب وى په هغې كښې جنګ شروع كولې شى

**د افتاب د زوال پورې د جنګ روسته كولوحكمتونه** ① چونكه اكثرهواګانې د زوال د نمر نه پس چليږى نوجنګ كونكى د پرسترېوالې نه محسوس كوى اونه هغوى له زيات مشقت كول وى خكه چه هغه وخت د وسلې اودميدان د ګرموالى نه هغوى بچ وى اوبدنى چست او سپك وى اوداقسم صورت حال په جنګ كښې ډيره فائده وركوى (١)

② علامه مهلب رحمه الله فرمائى په اصل كښې د رسول الله ﷺ داعمل دحضورپاك د قول تفسيردې په كوم كښې چه حضورپاك خپل امتيازى صفات بيان كړى دى ارشاد نبوى ﷺ دې نصرت بالصباء وأهلك عاد بالدبور (٢) يعنى د بادصبا په ذريعه زما امدادفرمانيلې دې اود عاد قوم دبورد وجه نه تباه شو

نبى كريم ﷺ د نيك فالئى په توګه په دې اوقاتوكښې جنګ شروع كول خوښول دې د پاره چه د حديث مطابق دهواګانو په ذريعه د هغوى امدادوى او دښمن ته ماتې وى (٣) ددې خبرې تائيد دحضرت نعمان بن مقرن مزنى رضى الله عنه روايت سره هم كيږى د كوم الفاظ چه دادى فقال النعمان: ربما أشهدك مثلها مع النبى صلى الله عليه وسلم فلم يندمك ولم يخزك، ولكنى شهدت القتال مع رسول الله صلى الله عليه وسلم، كان إذا لم يقاتل فى أول النهار انتظرحتى تهب الارواح وتحضر الصلوات (٤)

يعنى نعمان اوونيل الله تعالى تاسو له په داسې جنګونوكښې د رسول الله ﷺ سره د شركت توفيق دركړې دې كوم چه نه تاسو شرمنده كړنى اونه ذليل زه رسول الله ﷺ سره په جنګ كښې شريك ووم (طريقه داود) كه حضورپاك به سحر وختى د جنګ شروع اونه كړه نو (دنمر دزوال پورې) انتظاركولو تردې چه هواګانې چليږى او مونځونو (ماسپښين اومازيګر) وخت به راؤرسيدو.

ددې حديث نه معلوميږى چه نبى كريم ﷺ به د مونځونودوختونو هم انتظاركولو اوښكاره خبره ده چه دمونځونو وختونه غوره وختونه دى په كوموكښې چه دعاګانې قبليږى چه خلق مونځونه كوى نود لښكرد فتح د پاره به دعاګانې هم كوى.

[حديث نمبر ٢٨٠۴] (٥) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ وَكَانَ كَاتِبًا لَهُ

---

(١) عمدة القارى ١۴/٢٢۶.

(٢) صحيح البخارى:١/١۴١ أبواب الاستسقاء باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم: نصرت بالصبا رقم الحديث: ١٠٣٥.

(٣) شرح ابن بطال: ٥/١٣۴.

(٤) صحيح البخارى: ١/۴۴۶ كتاب الجزية والموادعة باب الجزية والموادعة أهل الذمة والحرب رقم:٣١۶.

(٥) قد مر تخريجه فى كتاب الجهاد باب الجنة تحت بارقة السيوف رقم:٢٨١٨.

قَالَ كَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنُ أَبِي أَوْفَى - رضي الله عنهما - فَقَرَأْتُهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْضِ أَيَّامِهِ الَّتِي لَقِيَ فِيهَا انْتَظَرَ حَتَّى مَالَتِ الشَّمْسُ . ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ قَالَ « أَيُّهَا النَّاسُ ، لاَ تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ ، وَسَلُوا اللَّهَ الْعَافِيَةَ ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا ، وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلاَلِ السُّيُوفِ ، ثُمَّ قَالَ اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ وَمُجْرِيَ السَّحَابِ وَهَازِمَ الأَحْزَابِ ، اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ » . [ر: ۲۶۶۳]

## رجال الحدیث

① عبدالله بن محمد - دا ابوجعفربن محمدبن عبدالله بن جعفربن یمان بن اخنس جُعفی بخاری مسندی دې. دَدوی حالات کتاب الایمان باب امور الایمان کښې تیرشوی دی (۱)

② معاویه بن عمرو - داابوعمرو معاویه بن عمرو بن مهلب ازدی کوفی رحمه الله دې دَدهٔ تذکره تیره شوې ده (۲)

③ ابواسحاق - دا ابواسحاق ابراهیم بن محمدبن حارث بن اسماء بن خارجه فزاری رحمه الله دې دَ ده تذکره تیره شوې ده (۳)

④ موسی بن عقبه - داموسی بن عقبه اسدی مدنی رحمه الله دې دَ ده تذکره تیره شوې ده (۴)

⑤ سالم - دا ابوالنصرسالم مدنی تیمی رحمه الله دې دَ ده تذکره تیره شوې ده (۵)

⑥ عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه - دا صحابی رسول حضرت عبدالله بن ابی اوفی علقمه اسلمي رضي الله عنه دې د دوی حالات وړاندې تیرشوی دی. (۶)

ددې روایت سره متعلق تفصیلی بحثونه باب الجنة تحت بارقة السیوف او باب الدعاء علی المشرکین بالهزیمة والزلزلة لاندې تیرشوی دی

**دَ حدیث ترجمة الباب سره مطابقت:** ددې حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې انتظرحتی مالت الشمس یعنی حضورپاک ﷺ به دزوال شمس انتظار فرمائیلو (۷) واضحه دې وی چه دلته په حدیث کښې إذالم یقاتل أول النهار تصریح نه ده خکه چه دا دَ ترجمة الباب یوه حصه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله په دې جمله

---

(۱) کشف الباری: ۶۵۷/۱.
(۲) صحیح بخاری کتاب الاذان باب إقبال الامام علی الناس عند تسویة الصفوف رقم: ۷۱۹.
(۳) صحیح البخاری کتاب الجمعة باب القائلة بعد الجمعة رقم: ۹٤.
(۴) صحیح البخاری کتاب الوضو باب إسباغ الوضوء رقم: ۱۳۹.
(۵) صحیح البخاری کتاب الوضوء.
(۶) کتاب الوضوء باب من لم برالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر.
(۷) عمدة القاری: ۲۲۷/۱٤.

سره دَ کتاب الجزیه والاروایت طرف ته اشاره کوی کوم چه دَحضرت نعمان بن مقرن نه مروی دي دَ کوم الفاظ چه دادی. کان اذالم یقاتل اول النهار انتظرحتی تهب الازواج وتحضر الصلوات[1]

## باب-۱۱۲ باب استئذان الرجل الامام

**دَ ترجمة الباب مقصد** . امام بخاری رحمه الله دَدې باب قایمولوسره داخودل غواړی که یوسړی دَ ضرورت دَ لاندې یادَځه مجبورئي په وجه دَامام نه اجازت واخلي او په جنګ کښې شریك نه شي یا دَ شرکت کولونه پس زر دَخپل کوروالاته واپس کیدل غواړی نو په دې کښې څه حرج نشته.[2]

لِقَوْلِهِ (إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ عَلَى أَمْرٍ جَامِعٍ لَمْ يَذْهَبُوا حَتَّى يَسْتَأْذِنُوهُ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ) إِلَى آخِرِ الْآيَةِ. النور ۶۲/.

وړاندې دی ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ [3]

**دَ ایت مطلب**:- ایمان والاخوهغه دی چه په الله تعالی باندې یقین دې اودَهغه په رسول باندې واجب کیږی هغوی سره خو په یواجتماعی کارکښې څې خونه ترکومې چه دَهغوی نه اجازت وانخلی. کوم خلق چه تاسونه اجازت اخلي هم دغه خودی چه منونکی دی الله تعالی اودَهغه رسول بیا چه کله اجازت اوغواړی تاسونه دَخپل څه کارنوورکړه اجازت په هغوی کښې چاته چه غواړې. اودَهغوی دَپاره معافی غواړه دَالله تعالی نه الله تعالی بخښونکي اومېربان دې

**دَ نزول سبب**:-امام مقاتل رحمه الله فرمائی چه دا آیت دَحضرت عمر رضی الله عنه باره کښې نازل شوې دې کوم وخت چه دَ غزوه تبوك نه دَ واپسئ دَپاره هغوی اجازت اغوښتلو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته اجازت ورکولو سره اوفرمائیل انطلق. فوالله ماانت بمنافق یعنی زه په خدائی ته منافق نه یئی مقصد منافقانوته اورول وو.

اوحضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه حضرت عمر رضی الله عنه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ عمرې اجازت غوښتلې وو اجازت ورکولو سره نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل یااباحفص، لاتنسنا فی صالح دعائك یعنی اې ابوحفص په خپلو نیکو دعاګانو کښې مونږ مه هیره وه.[4]

**دَ امرجامع مطلب**:-دَامرجامع نه مراد هغه کاردې په کوم کښې چه حاکم ته دَ خلقوراجمع کولوضرورت وي که هغه چرته دَ عمومي فائدې معامله وي یا بل څه دینی مسئله وي یا دَ دښمن دَ مقابله دَپاره یا ویرولودَپاره دَخلقو راجمع کول وی داټول صورتونه دَامرجامع معنی

---

[1] ) فتح البارى:۱۲۰/۶ والرواية فى صحيح البخارى فى كتاب الجزية. باب الجزيه والموادعة مع اهل الذمة والحرب. رقم:۳۱۶۰.

[2] ) عمدة القارى:۲۲۸/۱۴.

[3] ) سورة النور:۶۲.

[4] ) تفسير القرطبى:۳۲۱/۱۲.

کښې شامل دی او ددې اجتماع ضرورت ولې دې؟ څکه چه دالله تعالی په فرمان کښې رسول الله ﷺ ته خطاب دې ﴿ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ﴾ [1] یعنی په معاملاتو کښې خلقوسره مشوره کوه نوچه څۀ داسې معامله به پیښه شود د کومې نفع اونقصان چه ټولو خلقو سره متعلق وی نو ټول خلق د مشورې دپاره راجمع کول پکاردی اود چا دمشورې دمجلس نه بغیرد څه عذر نه پاسیدل مناسب نه دی بل په اجازت غوښتلوسره تتلوکښې څه بدګمانی هم نه پیداکیږی. امام مکحول رحمه الله او علامه زهری رحمه الله فرمائی جمعه د امرجامع نه ده. [2] نور جنګ هم امرجامع دې اوهرهغه کارچه د خلقو په شریکه دکولووی. [3]

علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه دا آیت په دې باره کښې د قاعدې اوقانون حیثیت لری چه کله حاکم خلق د مسلمانانو دمعاملاتو د مشورې او د دښمن د دفاع دپاره جمع کړی نو یوکس دې هم د حاکم د اجازت نه بغیرنه ځی څکه چه دالله تعالی فرمان دې ﴿ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَنْ لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ ﴾ [4]

ددې آیت نه معلومه شود چه حاکم اجازت ورکولویا منع کولواختیارلری. هغه د اجازت غوښتونکی په معامله کښې سوچ کولوسره خوبه یا اجازت ورکوی یابه ئې منع کوی هغه ته د دواړو صورتونو اختیاردې. څکه چه که خلق داسې په خپله مرضئی پریخودې شی نوخلقو به حضورپاك پریخودې وې اوتللې به وو دکوم په وجه به چه په امت کښې کمزوری پیداکید؛ مجمع به خوریده او دښمن ته به موقع ملاویدله نوهغوی به په مسلمانانوباندې حمله کوله او مسلمانانوته به ئې زیات نقصان رسولو. [5]

[حدیث ۲۸۰۵] [6] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنِ الْمُغِيرَةِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ فَتَلاَحَقَ بِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَنَا عَلَى نَاضِحٍ لَنَا قَدْ أَعْيَا فَلاَ يَكَادُ يَسِيرُ فَقَالَ لِي «مَا لِبَعِيرِكَ». قَالَ قُلْتُ عَيِيَ. قَالَ فَتَخَلَّفَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَزَجَرَهُ وَدَعَا لَهُ، فَمَا زَالَ بَيْنَ يَدَيِ الإِبِلِ قُدَّامَهَا يَسِيرُ. فَقَالَ لِي «كَيْفَ تَرَى بَعِيرَكَ». قَالَ قُلْتُ بِخَيْرٍ قَدْ أَصَابَتْهُ بَرَكَتُكَ. قَالَ «أَفَتَبِيعُنِيهِ». قَالَ فَاسْتَحْيَيْتُ، وَلَمْ يَكُنْ لَنَا نَاضِحٌ غَيْرُهُ، قَالَ فَقُلْتُ نَعَمْ. قَالَ «فَبِعْنِيهِ». فَبِعْتُهُ إِيَّاهُ عَلَى أَنَّ لِي فَقَارَ ظَهْرِهِ حَتَّى أَبْلُغَ الْمَدِينَةَ. قَالَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي عَرُوسٌ، فَاسْتَأْذَنْتُهُ فَأَذِنَ لِي، فَتَقَدَّمْتُ النَّاسَ إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى

---

[1] ) سورة آل عمران: ۱۵۹.
[2] ) تفسیرالقرطبی:۳۲۱/۱۲.
[3] ) تفسیرالطبری: ۱۹/۱۳۳.
[4] ) سورة النور:۶۲.
[5] ) شرح ابن بطال:۱۳۵/۵.
[6] ) قوله: عن جابر.... قدمر تخرجه فی کتاب الصلوة باب الصلوة اذا قام من سفر، رقم:۱۸۰۱.

أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ، فَلَقِيَنِي خَالِي فَسَأَلَنِي عَنِ الْبَعِيرِ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا صَنَعْتُ فِيهِ فَلَامَنِي، قَالَ وَقَدْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ لِي حِينَ اسْتَأْذَنْتُهُ «هَلْ تَزَوَّجْتَ بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا». فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا. فَقَالَ «هَلَّا تَزَوَّجْتَ بِكْرًا تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ». قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ تُوُفِّيَ وَالِدِي - أَوِ اسْتُشْهِدَ - وَلِي أَخَوَاتٌ صِغَارٌ، فَكَرِهْتُ أَنْ أَتَزَوَّجَ مِثْلَهُنَّ، فَلَا تُؤَدِّبُهُنَّ، وَلَا تَقُومُ عَلَيْهِنَّ، فَتَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا لِتَقُومَ عَلَيْهِنَّ وَتُؤَدِّبَهُنَّ. قَالَ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْمَدِينَةَ غَدَوْتُ عَلَيْهِ بِالْبَعِيرِ، فَأَعْطَانِي ثَمَنَهُ، وَرَدَّهُ عَلَيَّ. قَالَ الْمُغِيرَةُ هَذَا فِي قَضَائِنَا حَسَنٌ لَا نَرَى بِهِ بَأْسًا. [ر: ۴۳۲]

## رجال الحديث

① **اسحاق بن ابراهيم:-** دا اسحاق بن ابراهيم بن مخلد حنظلي مروزي رحمه الله دي دابن راهويه په نوم سره مشهور دي. دَ دوى تذكره دكتاب العلم لاندې تيره شوې ده. [1]

② **جرير:-** داجرير بن عبدالحميد قرط ضبي رازي رحمه الله دي. دَ دوى حالات هم كتاب العلم لاندې تيرشوي دي. [2]

③ **مغيره:-** دامغيره بن مقسم ابوهشام ضبي كوفي رحمه الله دي دَدوى تذكره كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده. [3]

⑤ **جابر بن عبدالله:-** داجليل القدر صحابي حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه دي دَ دوى تفصيلي حالات شاته تيرشوي دي. [4]

**دَحديث دَالفاظو تشريح:-** ناضح:- هغه اوښ چه دَاوبو راوړلو او وړلو دَپاره استعماليږي. [5]

فَقَارُظَهره:- دَ فاء زيرسره شاته دَملا مهرو ته وئيلې شي. مطلب دادې چه حضرت جابر رضي الله عنه دَ رسول الله ﷺ نه په دغه خرڅ كړې شوي اوښ باندې دَمدينې پورې دَ سفركولو اجازت اوغوښتلو. [6]

عَيِيَ:- دَ ابوذر او كشميهني په نسخه كښې اعيي دې [7] دَ دواړه معنى ستړيوالې ناچاقي او عاجزي ده مطلب دادې چه هغه اوښ دَ تګ نه عاجزوو اوستړې شوې وو. [8]

---

[1] كشف الباري: كتاب العلم: ٣٧/٣.
[2] كشف الباري كتاب العلم باب من جعل العلم ايامامعلومة: ٢٣/٣.
[3] كشف الباري: ٦٧٩/١.
[4] كتاب الوضوء باب صب النبي صلى الله عليه وسلم الوضوء على المغمى عليه.
[5] مختار الصحاح مادة: نضح.
[6] عمدة القاري: ٢٢٩/١٤.
[7] ارشاد الساري: ١٢٤/٥.
[8] عمدة القاري: ٢٢٩/١٤.

**عروس**-واده كړې دا لفظ د ښځې اوسړى دواړو دپاره استعماليږى لكه رجل عروس وامراة عروس، البته د مذكر جمع عرس ده او د مؤنث جمع عرائس ده (۱)

**فلامني** - يعنى زما ماما زه په اوښ خرڅولو باندې ملامته كړم. خكه حضرت جابر رضي الله عنه سره هم دغه يو اوښ وو. د دې توجيه تاويل د حضرت جابر رضي الله عنه د قول نه هم كيږى. فاستحبت. ولم تكن لنا ناضح غيره (۲) د حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه دوه ماماګان وو ① ثعلبه بن عنمه بن عدى ② عمرو بن عنمه رضي الله عنهما ملامت كونكې ثعلبه وو (۳)

**د حديث نه مستنبط شوې فائدې**:-علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه د دې حديث نه معلوميږى كه د يوسړى نوې نوې واده شوې وى اويا د دغه زړه په كوراوبچو پورې اينختې وى نو د دغه دپاره زر واپس كيدو دپاره اجازت اخستلو كنبې څه حرج نشته. (۴)

**يوه نحوى مسئله**:-علامه ابن مالك رحمه الله فرمائى لكه چه د همزه استفهام نه پس ام متصلة راوړل جائزدى هم دغه شان د هل نه پس هم ام متصله راوړل جائزدى. هغه د الفاظ حديث هل تزوجت بكرا ام ثيبا نه استدلال او استشهادكوى. خكه چه د واده باره كنبې خو دغوى ته معلومه وه ليكن حضورپاك صلى الله عليه وسلم د باكره يا ثيبه د تعين باره كنبې معلومات كول. او هم دغه مقصد د همزه استفهام نه پس د ام راوړلوى كوم ته چه ام متصله وئيلې شى.

چنانچه د هل نه پس هم ام متصله راوړل ټيك دى خكه چه د حديث رسول صلى الله عليه وسلم نه هم په كلام عرب كنبې استشهاد كولې شى. خودادابن مالك رحمه الله تفرددې جمهوريه دې رانې كنبې د دغوى مخالف دى. د دغوى موقف د ادې چه دا ام منقطعة هم كيدې شى متصلة كيدل څه ضرورى نه دى اوكله چه په يوه مسئله كنبې د تاويل ګنجائش وى نو د جمهورو مذهب پريخودوسره تفرداختيارول مناسب نه دى. اوس به تقدير عبارت داسې شى **هل تزوجت بكرا ام اتزوجت ثيبا** لكه چه دلته د ام نه پس دوباره استفهام دې نوثيبا فعل محذوف تزوجت مفعول به دې. نو اوس به هره جمله مستقل وى او ام منقطعه به وى. (۵)

**قوله**: قال المغيرة: هذا في قضائنا حسن، لانرى به باسا:-داعبارت مذكوره سندسره موصول دې. دامغيره بن مقسم كوفى دې. د كوفې اهم فقهاؤ كنبې د دغوى شمير كيدلې شو. (۶)

**د عبارت مقصد**:- د دې عبارت نه د حضرت مغيره رحمه الله مراد دادې چه په بيع كنبې داسې معلوم

---

۱) مختار الصحاح مادة ع ر س.
۲) ارشاد السارى: ۵/ ۱۲۴.
۳) راجع للتفصيل ارشاد السارى: ۵/ ۱۲۴.
۴) شرح ابن بطال: ۵/ ۱۳۵.
۵) عمدة القارى: ۱۴/ ۲۲۹ وفتح البارى: ۶/ ۱۲۲.
۶) فتح البارى: ۶/ ۱۲۲.

شرط لګول چه د جګړې سبب نه وی او په هغې کښې دهوکه نه وی نو صحيح دې او په دې کښې هيڅ بدی نشته لکه چه حضرت جابر رضی الله عنه چه اوښ خرڅولو دپاره دمدينې پورې د سفر کولو شرط لګولې وو او رسول الله صلی الله علیه وسلم دا قبول کړې هم وو (۱)

ددې حديث تفصيلی تشريح او مسئله اشتراط في البيع تحقيق کتاب الشروط کښې تيره شوې ده (۲)

## باب-۱۱۳ من غزا وهو حديث عهد بعرسه

فيه جابر، عن النبی صلی الله علیه وسلم. [ر ۲۸۰۵]

**دترجمة الباب مقصد** امام بخاری رحمه الله يو حکم بيانولو غواړی د کوم چه دوه صورتونه کيدې شی

① يو صورت خو دادې چه د يوسړی رخصتی کيدونکې ده او هغه جهاد ته تلل غواړی که هغه د دغه رخصتنی دپاره حصار شی او څلور ورځې خپلې بی بی سره پاتې شی او بيا جهاد ته لاړ شی نو د هغه په نفس کښې به يو ه تسلی وی او که هغه رخصتی پريږدی لاړ شی نو طبيعت به نی ګډوډ او خفه وی په دې وجه د رخصتنی نه پس چه واده نيزدې وی جهاد ته نه دی تلل پکار مناسب هم دغه دی خو که لاړ شی نو بيا هم څه بديت نشته

② دويم صورت دادې چه د يوسړی نوې نوې واده شوې دې او هغه خپلې بی بی سره يو څو ورځې تيرې کړی دی او د نور اوسيدو خواهش نی دې خو د جهاد د اهميت په وړاندې هغه خپله نوې ناوې ښخه پريږدی او جهاد ته لاړ شی نو دا ډيرښه دی (۳) د حضرت جابر رضی الله عنه هم نوې واده شوې وو او هغه لږ وخت په کور کښې تيرولو نه پس نبی کريم صلی الله علیه وسلم سره جهاد ته تللې وو

**بعرسه**:- دا په دوه قسمه لوستلې شوې دې ① په ضمه د عين يعنی چه د واده زمانه نيزدې وی او رخصتی کيدونکې وی ② په کسره د عين سره يعنی چه ښځې سره نی څه وخت تير کړې وی. د کشميهنی په نسخه کښې بعرس بغير د اضافت نه راغلې دې دې نه وړاندې د احتمال تائيد کيږی يعنی چه د رخصتنی زمانه نيزدې وی (۴)

**قوله**: فيه جابر عن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم:- دې نه مراد د حضرت جابر مذکوره روايت دې چه اوس په وړانديني خبره کښې تير شو په روايت کښې دی يارسول الله، انی عروس (۵)

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت باب سابق روايت په دې جمله کښې دې. يارسول الله انی عروس نوره توضيح کتاب النکاح په روايت (۶) سره

---

(۱) عمدة القاری: ۲۲۹/۱٤ وفتح الباری: ۱۲۲/۶.
(۲) صحيح البخاری کتاب الشروط. باب اذا اشترط البائع ظهر الدابة الی مکان مسمی جاز رقم: ۲۷۱۸.
(۳) فتح الباری: ۱۲۲/۶ وعمدة القاری: ۲۲۹/۱٤.
(٤) حواله بالا.
(۵) تغليق التعليق: ٤۵۰/۳ وفتح الباری: ۱۲۲/۶.
(۶) صحيح البخاری کتاب النکاح باب تزويج الشباب رقم: ۵۰۷۹.

کیږی دکوم الفاظ چه دادی فقال مایعجلك؟ قلت: کنت حدیث عهد بعرس (۱) یعنی رسول اکرم ﷺ فرمائیلی جابر په تا دومره تادی ولې ده؟ ما وئیل زما نوې واده شوې دې

## باب-۱۱۴ من اختار الغزو بعد البناء.

دَ ترجمة الباب مقصد - ددې باب مقصد داخودل دی که یوسړې جهاد ته تلل غواړی نوهغه له پکاردی چه خپل زړه پوره دَ جهاددپاره فارغ کړی بیا پوره تندئی او تازګئی سره دې دَخپل کارطرف ته توجه اوکړی اوهم په هغې کښې دې اخته شی که دَ چا نوې نوې واده شوې وی نوهغه دې یوڅو ورځې خپلې ښځې سره تیرې کړی اوبیادې دَ جهاد سفراوکړی ځکه چه کله دَ چانکاح کیږی نودهغه زړه خپلې بی بی سره لګیدلې وی خو که بی بی سره څه وخت تیر کړی او لاړشی نو ذهنی ګډوډوالې به هم نه وی او غم به ئی هم سپك شی ددې مثال داسې دې لکه چه دَ مانځه وخت کښې خوراك مخې ته وی اواولګه هم ښه لګیدلې وی نواول خوراك کول مناسب دی ګڼی که مونځ کول دې شروع کړه نو ټول مونځ کښې به دې دَخوراك په خیالونو کښې تیرشی او خشوع به حاصله نه وی. (۲)

فِيهِ أَبُوهُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - ﷺ [ر: ۲۹۵۶]

په دې عبارت سره امام بخاری رحمه الله کتاب الخمس کښې راتلونکی روایت طرف ته اشاره فرمائی دَ کوم الفاظ چه دادی: غزا نبی من الانبیاء، فقال لقومه لایتبعنی رجل ملك بضع امرأة، وهو یرید أن یبنی بها ولما یبن بها. (۳) یعنی یونبی علیه السلام چه کله جنګ له تللو نوهغوی دااعلان کړې وو چه دَ چانوې واده شوې وی اوهغه دَ واده شپه نه وی نیره کړې اودَهغه زړه غواړی چه هغه دې یوڅو ورځې خپلې بی بی سره تیرې کړی نوداسې سړې دې مونږ سره نه ځی

**ترجمة الباب سره دحدیث مناسبت باندې اشکال اودهغې جواب - رومبې خبره:** علامه داؤدی رحمه الله ته دلته یواشکال مخې ته شوې دې هغه فرمائی په حدیث کښې خواختیار بناء بالزوجة قبل الغزو ذکردې او ترجمة قایم کړې شوه دَ اختار الغزو وقبل البناء نو په حدیث او ترجمة الباب کښې انطباق نشته دې

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې اعتراض دوه جوابونه ورکړی دی: ① یوجواب دادې چه دَ دې اعتراض منشاء په ترجمة الباب کښې تحریف دې کوم چه دَعلامه داؤدی په نسخه کښې موجوددې ځکه چه ترجمة الباب من اختار الغزو بعد البناء اودَ علامه داؤدی په نسخه کښې باب من اختار الغزو وقبل البناء چه محرف دې ② دویم جواب تسلیمی دې یعنی که چرته دَعلامه

(۱) فتح الباری:۶/۱۲۲.

(۲) فتح الباری:۶/۱۲۲.

(۳) صحیح البخاری کتاب فرض الخمس باب قول النبی صلی الله علیه وسلم أحلت لکم الغنائم. رقم:۳۱۲٤ وکذا فی کتاب النکاح. باب من أجب البناء بعدالغزو رقم:۵۱۵۷.

داؤدی اعتراض صحیح اوګڼلې شي نودا به وئیلې شي چه دلته استفهام مقدردې نوتقدیر د عبارت به داسې شي. ماحکم من اختار الغزو وقبل البناء؟ آیا دَمذکوره حدیث شریف مطابق دَ نکاح نه پس دَ رخصتئ نه وړاندې جهادته تلل جائزدی که ناجائز؟

اوس په وړاندینی باب کښې تیرشو چه په دې کښې هیڅ مضائقه نشته په دواړو صورتونو کښې جائزدی البته مناسب دادی چه رخصتئ کولوسره یوڅو ورځې تیرې کړی دې دپاره چه په جهادکښې دَ زړه په شوق او تسلسل سره جهاد او شی دَ حدیث باب هم دغه محمل او مطلب دې چه افضل اواولی صورت هم دغه دې چه رخصتئ دې اوکړی بیادې ځی (۱)

**دَ روایت نه ذکرکولووجه** - علامه کرمانی رحمه الله فرمائی چه دلته امام بخاری رحمه الله **فیه أبوهریرة** فرمائیلوسره دَ روایت طرف ته اشاره خواوکړه لیکن روایت ئې ذکرنه کړو ځکه چه کیدې شی دا روایت دَهغه په شرائطوپوره نه وی (۲)

واضحه دې وی چه دَعلامه کرمانی رحمه الله داخبره ټیک نه ده ځکه چه دا روایت موصولاً وړاندې کتاب الخمس کښې راځی اودخبره فیصله شوې ده که چرې داروایت دَهغه دَ شرط برابرنه دې نوهغه به دا روایت په خپل صحیح کښې نه نقل کولو ځکه چه دَ شرائطورعایت په پوره کتاب کښې ضروری وی. صحیح جواب دادې چه دَ امام صاحب غالب عادت هم دغه دې که چرته دَ یوحدیث سند په دواړو ځایونوکښې مشترك وی نواکثردَتکرارنه دَ بچ کیدلوکوشش کوی اودَ اختصاریا اشاره نه کاراخلی چرته یوځائی کښې ئې ذکرکوی. (۳)

دلته دَدې خبرې وضاحت مناسب معلومیږی چه دَا سوال اوجواب په تیرباب کښې هم کیدل پکاروو ځکه چه روایت خو هلته هم نه دې ذکرشوې. دَدې جواب دادې چه په دواړو ابوابو کښې یوواضح فرق دې هغه دا چه په تیرشوی باب کښې دَروایت طرف ته اشاره کیدله اوپه دې باب کښې دَراتلونکی روایت طرف ته اشاره کیږی. والله اعلم بالصواب

**دَ حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت** - دَحدیث ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضحه دې په روایت کښې دی لایتبعنی رجل ملك بضع امرأة، وهويريدأن يبني بها ولما يبن بها دَدې مقصد داخودل دی چه په غزوه کښې بناء نه پس تلل پکاردی

**تنبیه**:- دَ دې حدیث شریف نوروضاحت وړاندې کتاب الخمس باب قول النبی صلی الله علیه تعالی علیه وسلم: أحلت لکم الغنائم لاندې راځی

## باب - ۱۱۵ مبادرة الامام عند الفزع

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- دَدې ترجمة الباب مقصد دابیانول دی چه دویرې په حالت کښې ډیر په تیزئی سره تلل اودَ حالاتوجائزه اخستل به دَامام دپاره مناسب وی اودحالاتونه ځان خبرول به

---

۱) فتح الباری: ۶/۱۲۲ وعمدة القاری: ۱۴/۲۲۹.

۲) شرح الکرمانی: ۱۲/۲۰۴.

۳) فتح الباری: ۶/۱۲۳.

ډیر ضروری وی دې دپاره چه د خطراتو دمقابلې دپاره دوخت نه وړاندې منصوبه بندی اوکړې شی.(۱)

[حدیث ۲۸۰۶] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنِي قَتَادَةُ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ- رضی الله عنه- قَالَ كَانَ بِالْمَدِينَةِ فَزَعٌ، فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ- صلی الله علیه وسلم- فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ، فَقَالَ «مَا رَأَيْنَا مِنْ شَيْءٍ، وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا». [ر: ۲۴۸۴]

## رجال الحدیث

① **مسدد**: دا مسدد بن مسرهد اسدی دې. د ده تذکره تیره شوې ده.(۳)

② **یحیی**:- دا یحیی بن سعید القطان دې. د دوی حالات وړاندې تیره شوې دی.(۴)

③ **شعبه**:- دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن حجاج عتکی ازدی دې. د دوی حالات وړاندې تیره شوې دی.(۵)

④ **قتاده**: دا قتاده بن دعامه قتاده سدوسی بصری دې. د دوی حالات وړاندې تیره شوې دی.(۶)

⑤ **انس** رضی الله عنه:- دا حضرت انس بن مالك خزرجی انصاری رضی الله عنه دې. د دوی حالات باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه. لاندې تیرشوی دی.(۷)

داحدیث ډیرځلې تیرشوې دې دلته به د بعض امورو ذکروی فزع:- د فزع اصل معنی ویره ده: اودلته لازم معنی مراد ده یعنی امداد اونصرت کله چه څوك اوویریږی اود دهشت حادثه اوشی.(۸)

فرس لابی طلحة: دهغه اس نوم مندوب وو لکه چه په روایت کښې د دې تصریح راغلې ده یقال له: المدوب (۹) او ابوطلحه د حضرت انس رضی الله عنه میرنې پلار دې د ده نوم زید بن سهل انصاری دې.(۱۰)

وإن وجدناه لبحرا: دا أن مخففه دې او بحر کښې لام د تاکید دپاره دې.(۱۱)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/۲۲۹.
(۲) قدمر تخرجه فی کتاب الهبة باب استعار من الناس الفرس.
(۳) کشف الباری: ۲/۲.
(۴) کشف الباری: ۲/۲.
(۵) کشف الباری: ۱/۶۷۸.
(۶) کشف الباری: ۲/۳.
(۷) پورتنی حواله ص: ٤.
(۸) النهایة لابن الاثیر: ۳/٤٤٣.
(۹) صحیح البخاری کتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرق: رقم: ۲۶۲۷.
(۱۰) عمدة القاری: ۱٤/۲۳۰.
(۱۱) عمدة القاری: ۱٤/۲۳۰.

**ترجمة الباب سره مطابقت:** - دحدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت د حدیث دمعنی نه ماخوذ دې چه کوم وخت ویره او دهشت محسوس شی نوامام الانبیاء حضرت محمد مصطفی ﷺ به زر د حالاتوجائزه اخستلودپاره بهرراوتلو او حضورپاک ﷺ د مبادرت او سبقت نه کار اخستلو (۱)

## باب-۱۱۶ السرعة والركض فى الفزع

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې ترجمة الباب مقصد د وړاندینی سره یوشان دې البته په دې ترجمه کښې ددې خبرې وضاحت کیږی چه امام له د سورلئی بندوبست کولوسره زر نه زر اس له پونده ورکول یا ګاډې تیزولو سره د حادثه ځائی رسیدل او د حالاتوتجزیه کولوسره مناسب اقدامات کول پکاردی (۲)

[حديث ۲۸۰۷] (۳) حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ سَهْلٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ فَزِعَ النَّاسُ فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَرَسًا لأَبِى طَلْحَةَ بَطِيئًا، ثُمَّ خَرَجَ يَرْكُضُ وَحْدَهُ، فَرَكِبَ النَّاسُ يَرْكُضُونَ خَلْفَهُ، فَقَالَ «لَمْ تُرَاعُوا، إِنَّهُ لَبَحْرٌ». فَمَا سُبِقَ بَعْدَ ذَلِكَ الْيَوْمِ. [ر: ۲۴۸۴]

## رجال الحديث

① **فضل بن سهل:** داحافظ فضل بن سهل الاعرج ابوالعباس بغدادی رحمه الله دې. د دوی حالات وړاندې تیرشوی دی. (۴)

② **حسین بن محمدالمعلم:** - داحسین بن محمدبهرام تمیمی دې. د دوی تذکره هم په کتاب الجهاد کښې شاته تیره شوې ده. (۵)

③ **جریربن حازم:** - دا ابوالنضر جریر بن حازم بن زید بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۶)

④ **محمد بن سیرین:** - دامشهورتابعی تعبیررؤیا امام شیخ الاسلام ابوبکرمحمدبن سیرین انصاری بصری دې. د دوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب اتباع الجنائزمن الایمان لاندې تیرشوی دی. (۷)

---

۱) عمدة القارى: ۱۴/۲۳۰.

۲) عمدة القارى: ۱۴/۲۳۰.

۳) قدمرتخرجه فى كتاب الهبة باب من استعار من الناس الفرس رقم: ۲۶۲۷.

۴) كتاب الاذان باب إذا لم يتم الامام وأتم من خلفه رقم: ۶۹۴.

۵) كتاب الجهاد والسيرباب من أتاه سهم غرب فقتله. رقم: ۲۸۰۹.

۶) كتاب الصلوة باب الخوخة والممر فى المسجد. رقم: ۴۶۶.

۷) كشف البارى: ۲/۵۲۴.

⑤انس بن مالک - حضرت انس خادم رسول انصارى رضي الله عنه حالات کتاب الایمان کښې تیرشوى دى [1]

یرکض وحده - يعنى رسول الله ﷺ مبارك به ځان له په ځان له په اس باندې سوريدو سره پونده وركوله او تللوبه دَ ركض ركضا معنى ده منده وهل په خپه وهل [2] لکه چه په قرآن کریم کښې دى ﴿ارْكُضْ بِرِجْلِكَ﴾ [3] ركض الفرس: اس له پونده وركول

لم تراعو - لم دلته دَ ناهية په معنى کښې دې يعنى ته مه ويريږه.

ترجمة الباب سره مطابقت :- ترجمة الباب سره دَ حديث مطابقت ثم خرج يركض وحده کښې دى چه حضوراکرم زر اس له پونده وركړه اويه تيزئى سره دَ ويرې ځائى ته لاړو اودَتنذئى داحال وو چه تن تنها روان شو. صحابه کرام رضي الله عنهم روستو رسول الله ﷺ پسې لاړل

## باب الخروج فى الفزع وحده

ترجمة الباب مقصد :- په دې باب کښې دابيانولې شى چه ضرورت پيښ شى نو امام اوحاکم به ځان له په ځان له هم دَ دهشت اوويرې په حالاتوکښې بهرراځى اودَحالاتواوواقعاتو تپوس پښتنه به کوى لکه چه امام الانبياء ﷺ فرمائيلى

دَ باب لاندې حديث نه ذكركولووجه :- امام بخارى رحمه الله دَدې باب لاندې يوروايت يا اثرنه دى نقل کړې. دَدې علامه کرمانى رحمه الله مختلف توجيهات بيان کړى دى ① كيدې شى چه هغه ته دَخپل شرط مطابق څه روايت نه وى ملاؤشوې. ② ياكيدې شى چه ترجمه ئى قايم كولوسره يوحديث ذكركول غوښتل ليكن موقع نه وى ملاؤشوى ③ يائى دَ ماقبل حديث كافى گڼړلې وى ځکه چه دَهغې الفاظ ثم خرج يركض وحده نه دَ ترجمة الباب اثبات واضح دى [4]

حافظ ابن حجر رحمه الله دويمه توجيه راجح گرځولې ده. [5] بل علامه قسطلانى رحمه الله دَ حافظ صاحب متابعت كولوسره فرمائى چه كيدې شى امام بخارى رحمه الله دَ حضرت انس رضي الله عنه څه بل طرق دلته ذكركول غوښتل خو موقع نه وى ملاؤشوې. [6]

دَ حديث نه مستنبط فوائد :- علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى چه دَدې احاديثو حاصل دادې چه امام دې بغيردَ څه وجې هسې خپل ځان په خطراتوکښې نه اچوى بلکه خپل ځان دې قيمتى اوگڼړى ځکه چه هم دهغه په وجه خود حکومت نظام موجود دې اومسلمانان دَ يوې جهنډې لاندې راجمع دى اودا ده چه حاكم ډير طاقتور او دَ بې پرواه طبيعت مالك وى لكه چه نبى

[1]) كشف البارى:۲/۴.

[2]) النهاية: ۲/۲۵۹.

[3]) سورة ص:۴۲.

[4]) شرح الكرمانى:۱۲/۲۰۵.

[5]) فتح البارى:۶/۱۲۳.

[6]) إرشاد السارى:۵/۱۲۶.

کریم ﷺ په یقین پوهیدلو چه الله تعالی به دهغوی حفاظت او تائید فرمائی اوډ خپل نصرت او امداد نه به نی نه محروم کوی (۱) نوډ داسي بهادر نه ویریدونکی او مردمیدان دپاره په داسي خطراتو کښې خ ن له په خان له وردانګلو کښې هیڅ حرج نشته دې دپاره چه نور خلق هم د امام په اتباع کښې د خپلو خنونو بازی اولګوی (۲) خو هرسړې د نبی کریم ﷺ په شان دمردانه صفتو څښتن نه حامل کیدې شی په دې وجه امیرله پکاردی چه هغه دې خپل خان په خطراتو کښې نه اچوی خکه چه په دې سره امیرته نقصان کیدې شی دکوم په وجه چه دامت د ګډوډ کیدو خدشه او اندیښنه ده

## ۱۱۷: باب- الجعائل والحملان فی السبیل

وَقَالَ مُجَاهِدٌ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ الْغَزْوُ. قَالَ إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أُعِينَكَ بِطَائِفَةٍ مِنْ مَالِي. قُلْتُ أَوْسَعَ اللَّهُ عَلَيَّ. قَالَ إِنَّ غِنَاكَ لَكَ، وَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ يَكُونَ مِنْ مَالِي فِي هَذَا الْوَجْهِ. [ر: ۴۰۵۶]

**د جعائل اوحملان معنی** - جعائل دا جعیلة یا جعالة (بالحرکات الثلث) جمع ده جعل په فتح د جیم مصدر او په ضمه سره اسم دې ونیلي شی وذلك جَعلا وجُعلا یعنی ماستاد څه خبرې یا کار دا امزدوی درکړې ده (۳) اوشرعًا هغه مال ته ونیلې شی چه مجاهدته د الله تعالی په لارکښې د لارې د توښې په توګه ورکولي شی دې دپاره چه هغه خپل کار په ښه طریقه سره سرته اورسولې شی. (۳) حملان دامصدردې د حمل په شان لکه چه د یحمل دوه مصادر دی الحمل والحملان (۴) السبیل دې نه مراد جهاددې

**د ترجمة الباب مقصد**:- علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی د امام بخاری رحمه الله مقصد دلته دا بیانول دی که یوسړې خپل مال د الله تعالی په لارکښې تطوعًا د ثواب په نیت خرچ کول غواړی لکه چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما کړی چاسره چه مال نه وی اوهغه د نورو آلاتو او اسبابو جهاد په ذریعه دمجاهد امداد کول غواړی لکه چه حضرت عمر رضی الله عنه اس ورکولوسره مجاهدله سورلی ورکړه نودا یوډیرښه عمل دې اوقابل تقلید نمونه ده. اوداهغه جعل نه دې کوم چه مختلف فیه دې (۵)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله د ترجمة الباب یوبل مقصد بیانوی دهغوی خیال دې چه امام صاحب دلته په اصل کښې د یواختلاف طرف ته اشاره کول غواړی ددې تفصیل دادې چه غازی کوم د لارې توښه او خرچ اخلی آیا هغه د دې سفر د خرچ جهاد د وجه نه مستحق دې تردې چه هغه د

(۱) کما فی قوله تعالی: ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ (سورة المائدة:۶۷).

(۲) شرح ابن بطال:۵/۱۳۶.

(۳) المغرب:۱/۱۴۸ (جعل) وعمدة القاری: ۱۴/۲۳۰.

(۴) النهایه: ۱/۴۴۲ (رحمن).

(۵) شرح ابن بطال: ۵/۱۳۷.

جهاد نه بغيربل چرته دغه مال نه شي خرچ كولې ياهغه د دغه مال مالك كيږي چرته چه نې زړه غواړي خرچ كولې شي. [1]

په نورو لفظونوكښې مونږ داسې وئيلې شو چه مجاهدته كومې پيسې دَ لارې دَتوښې دَپاره وركولې شي دا په صورت دَ اباحت دي يا په صورت دَ تمليك؟ دَ دې مسئلې تفصيل وړاندې

باب إذاحمل على فرس فرآهاتباع لاندې راځي.

**دَ مسئله جعل تفصيل:-** دَ جعل دوه صورتونه دي. ① چه يوسړې پخپله جهادته نه ځي خودَتلونكي مجاهدسره تعاون كوي هغه ته دَ سفرخرچه وركوي او سورلي ورته وركوي نوداعمل اوصورت ښكلې كاردې. ② په تشكيل كښې خوئې نوم راغلې دې خوهغه خپل ځان پټوي اوبل څوك دَخپل ځان په ځائې ليږي اودَخپل طرف نه مزدوري او سورلي هم وركوي نو په دې مسئله كښې اختلاف دې.

**دَمالكيه مذهب:-** دَ مالكيه په نيزكه چرته رضاكاروي نوهغه جهاد دَ بل چا په بدله كښې جعل يعني مزدوري اخستلو سره كوي نودامكروه دي اوكه چرې تنخواه دار وي اوهغه دَخپل ځان په ځائې بل چاته جعل وركړي وئې ليږي نو په دې هيڅ قباحت نشته. ځكه چه مقصد خودَ سرحداتو ساتنه او حفاظت كول دي اوهغه په دغه صورت كښې هم پوره كيږي. دَامام مالك رحمه الله دليل تعامل اهل مدينه دې. [2]

**دَ احنافو مذهب:-** كه په بيت المال كښې دَ مجاهدينودَپاره دَ لارې دَتوښې گنجائش وي نودَ خلقونه جعل اخستل مكروه دي په دې وجه دَبيت المال مقصد ناڅاپي آفات او په مسلمانانو باندې پريوتونكي مشكلاتو بندوبست كول دي او مجاهدين دا عظيم مقصد په ډير ښه شان سره پوره كوي په دې وجه هغوي دَدې ډير حقداردي. خوكه چرې په بيت المال كښې گنجائش نه وي نومسلمانانوله پكاردي چه هغوي دې مجاهدينوته دَ لارې توښه او سورلي وركړي واضحه دې وي چه دا تعاون يوشكل دې نه چه دَ بدلې دې. [3]

**دَ شافعيه مذهب:-** امام شافعي رحمه الله دَ جهاددَپاره جعل اخستل بالكل ناجائزگرځولي دي البته دَحاكم وخت نه كه مجاهدجعل اخلي نودَدې گنجائش شته په دې وجه چه هغه حاكم سره تعاون كوي. دَامام شافعي رحمه الله دليل دادې چه جهاد فرض كفايه دې څوك چه كوي هغه خپله ذمه واري پوره كوي نودَبل چانه به هغه ددې مزدوري اومعاوضه اخستلو مستحق نه وي. بل دَحضرت ابن عمر رضي الله عنهما روايت دې **كان القاعد يمنحالغازى، فاما أن يبيع الرجل غزوه، فلا أدرى ماهو؟** [4] قاعدبه غازي ته هديه وركوله خوبياهم كه يوسړې خپله غزوه،دَ نه شريك كيدو په وجه،خرڅوي نودَدې حكم ماته معلومات نشته

---

[1] ) فتح البارى:٦/ ١٢٤.

[2] ) شرح صحيح البخارى لابن بطال:١٣٧/٥ والمدونة الكبرى:٤٢/٢.

[3] ) ردالمختار:٢٤٣/٣.

[4] ) شرح ابن بطال:١٣٧/٥.

**قوله وقال مجاهد: قلت لابن عمر: الغزو** - الغزو دلته منصوبه ده تقدیر عبارت دادې أرید الغزو حافظ ابن حجر رحمه الله یو بل احتمال هم ذکرکړې دې یعنی دا **منصوب علی الاغراء** دې.[1] او تقدیر عبارت دادې علیك الغزو.[2]

علامه عینی رحمه الله فرمائي چه دا احتمال غلط دې په دې سره په معنی کښې فساد راخی ځکه چه مجاهد رحمه الله پخپله د خپل خان باره کښې اطلاع ورکوی چه زه جهاد کول غواړم نه چه هغه ابن عمر رضی الله عنهما ته ترغیب ورکوی چه هغه دې جهاد ته لاړشی د دې تائید د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په دې قول سره کیږی إنی أحب أن أعینك بطائفة من مالی. یعنی ستاسو امداد کول غواړم د خپل مال په ذریعه سره[3] او اغراء خو بل ته ترغیب ورکولو ته وائی د کشمیهنی په نسخه کښې انغزو بالنون استفهام سره راغلې دې.[4]

**قوله إن غناك لك، وإنی أحب أن یکون من مالی فی هذا الوجه** - مطلب دا چه که مالدار دې خو د خپل خان دپاره دې. زما دا خواهش دې چه زما څه مال په جهاد کښې خرچ شی. د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دا قول په دې خبره باندې دلالت کوی که یو سړې د ثواب په نیت سره یو مجاهد سره مالی امداد کوی یا سورلی ورکوی نو په دې کښې هیڅ حرج نشته[5] او دا په هغه جعل او مزدورنی کښې نه راخی کوم چه مختلف فیه ده.

**د مذکوره تعلیق تخریج:** - دا اثر دلته تعلیقاً نقل شوې دې او امام بخاری رحمه الله د دې اثر معنی کتاب المغازی باب غزوة الفتح کښې موصولاً نقل کړې دې.[6]

**وَقَالَ عُمَرُ إِنَّ نَاسًا يَأْخُذُونَ مِنْ هَذَا الْمَالِ لِيُجَاهِدُوا، ثُمَّ لَا يُجَاهِدُونَ، فَمَنْ فَعَلَهُ فَنَحْنُ أَحَقُّ بِمَالِهِ، حَتَّى نَأْخُذَ مِنْهُ مَا أَخَذَ.**

دا تعلیق ابن ابی شیبه رحمه الله په مصنف[7] او امام بخاری رحمه الله التاریخ الکبیر کښې موصولاً ذکرکړې دې.[8] حافظ رحمه الله فرمائی وهو اسناد صحیح[9]

**د حضرت عمر رضی الله عنه د اثر نه مستنبط فوائد:** - ① ړومبئی فائده خو دا ده که یو سړې د بیت المال نه

---

[1] الاغراء: هو تنبیه المخاطب علی أمر محبوب لیفعله. مثل: الزکاة الزکاة وانظر للبسط موسوعة النحو والصرف: مادة: الاغراء، ص:۱۲۱ وجمع الجوامع للسیوطی، ص:۱۷۰.
[2] فتح الباری:۶/۱۲۴.
[3] عمدة القاری: ۱۴/۲۳۱.
[4] عمدة القاری: ۱۴/۲۳۱.
[5] عمدة القاری: ۱۴/۲۳۱.
[6] فتح الباری: ۶/۱۵۴ قدیمی.
[7] المصنف۶/۴۵۱ کتاب السیر باب ماقالو فی الرجل یاخذ المال للجهاد ولایخرج رقم:۳۲۸۱۶.
[8] التاریخ الکبیر:۶/۳۶۴ ترجمة رقم:۲۶۵۱ وتغلیق التعلیق: ۳/۳۵۲.
[9] فتح الباری:۶/۱۱۴.

دَځه كار دپاره پيسې واخستې اوهغه دغه كار نه پوره كوى نوپه هغه باندې لازم دى چه د بيت المال پيسې واپس كړى
② دويمه فائده داده چه يوسړې دَبيت المال نه دَځه ذمه دارئى تنخواه اخلى اوهغه دَ دغه ذمه دارئى دَ اداكولو هډو قابل نه دې نودَده نه به هغه تنخواه اخستې شى اوهغه به دَ دغه مال مستحق نه وى (١)

**يوه بله شبه اودهغې ازاله**:- علامه ابن المنير رحمه الله فرمائى په دې خبره سره داشك نه دى كيدل پكار چه دَ بيت المال دَمال اصل حكم خو دَمسلمانانودپاره اباحت دې نودا په مذكوره دواړو صورتونوكښې اخستې شوې مال دَواپس كولوڅه مطلب؟ دَدې جواب دادې چه دَ بيت المال نه دَ مال دَحصول دوه صورتونه دى: ① يوخوداد چه هغه مسلمان دې اوهم په دې حيثيت سره مطالبه كوى. نودَ ضابطه مطابق به هغه ته خپله حصه خامخا ملاويږى. ② دويم صورت دادې چه هغه دَ يوكاردكولواجرت اخلى نو په دې صورت كښې هغه كار يا ذمه وارى پوره كول ضرورى دى كنى هغه به دَ بيت المال دَ مال مستحق نه وى (٢)

**وَقَالَ طَاوُسٌ وَمُجَاهِدٌ إِذَا دُفِعَ إِلَيْكَ شَيْءٌ تَخْرُجُ بِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَاصْنَعْ بِهِ مَا شِئْتَ، وَضَعْهُ عِنْدَ أَهْلِكَ.**

يعنى حضرت طاؤس رحمه الله او مجاهد رحمه الله فرمائى كه تاسو ته دَ جهاد دپاره څه څيزدركړې شى نوهغې سره چه څه غواړئى كوئى (تردې چه) خپل كوروالاسره ئى هم كيخودې شې.

حضرت طاؤس رحمه الله اوحضرت مجاهد رحمه الله قول په دې باندې دلالت كوى چه هغوى دَجهاددپاره څه اخستل نه ناخوښه كوى. نوكه يومجاهدته مال وركړې شى نوهغه په ضروريااو متعلقات جهاد كښې څنګه چه غواړى خرچ كولې شى كه دَ كور والا په خرڅ خوراك باندې خرچ كوى ځكه چه دهغوى دَ ضرورتونوخيال ساتل هم دَ مجاهد دَ جهاد سره متعلق دى دې دپاره چه دَخپل بال بچ دَ طرف نه مطمئن وى. (٣)

حضرت سعيدبن مسيب، امام ليث اوامام ابوسفيان ثورى رحمهم الله هم دغه مذهب دې (٤)

دَحضرت ابن عمر رضى الله عنهما يواثر موطا امام مالك كښې نقل كړې شوى دى إذا بلغت وادى القرى، فشانك به يعنى چه كله وادى قرى ته اورسئى (كه جنګ وى اوكه نه وى) په دغه مال كښې چه څنګه تصرف كول غواړئى اوكړئى. (٥) دې نه معلومه شوه چه كوم مال مجاهد ته وركولې شى كه هغه دَ جنګ ميدان پورې لاړشى نوكه جنګ شوې وى اوكه نه وى شوې په دواړو صورتونوكښې هغه مال دَمجاهددې هغه په دې كښې هرقسم تصرف كولې شى.

(١) عمدة القارى: ٢٣١/١٤ نقلا عن ابن المنير.
(٢) المتوارى لابن المنير. ص: ١۶٢.
(٣) عمدة القارى: ١٣١/١٤.
(٤) فتح البارى: ١٢٥/٤.
(٥) الموطاللامام مالك.

خو د حضرت ابن عباس او حضرت زبیر رضی الله عنهما قول د حضرت طاؤس رحمه الله او حضرت مجاهد رحمه الله
خلاف نقل دي. حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي أنفقها في الكراع والسلاح یعني مال د سورلنی او
وسلې په مد کښې خرچ کړئی او د حضرت ابن زبیر رضی الله عنهما قول دې أنفقها في سبيل الله بل امام
ابرهیم نخعی رحمه الله فرمائیل چه خلقو به جهاد کښې د مال اخستلو په خائې ورکول ډیر خوښول (۱)
د دې مسئلې په اعتبار د مذاهبو تفصيل او جزئيات باب إذا حمل على فرس، فرآها تباع لاندې راخي.

احدیث ۲۸۰۸ (۲) حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكَ بْنَ أَنَسٍ سَأَلَ زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ، فَقَالَ زَيْدٌ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ -رضی الله عنه- حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَرَأَيْتُهُ يُبَاعُ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَشْتَرِيهِ فَقَالَ «لاَ تَشْتَرِهِ، وَلاَ تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ». [ر: ۱۴۱۹]

## رجال الحدیث

① **الحمیدي**: دا ابوبکر عبدالله بن زبیر حمیدي رحمه الله دي. د دوی حالات رومستو تیر شوي دي (۳)
② **سفیان**: دا سفیان بن عیینه بن میمون ابو محمد کوفي رحمه الله دي. د دوی تذکره تیره شوې ده (۴)
③ **مالک**: دا مشهور امام مالک بن انس بن مالک مدني رحمه الله دي. د دوی تذکره هم تیره شوې ده. (۵)
④ **زید بن اسلم**: - دا ابو اسامه زید بن اسلم قرشي مدني رحمه الله دي د دوی تذکره په کتاب الایمان کښې تیره شوې ده (۶)
⑤ **اسلم** رضی الله عنه: - دا د حضرت عمر رضی الله عنه خادم خاص او مولی اسلم عدوي مخضرمي رضی الله عنه دي. (۷)
⑥ **عمر بن خطاب** رضی الله عنه: - دا حضرت امیر المؤمنین عمر بن الخطاب رضی الله عنه دي د دوی حالات بدء الوحي کښې راغلي دي. (۸)

**د حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت**: - د دې حدیث ترجمة الباب سره مطابقت دا سې دې
چه حضرت عمر رضی الله عنه کوم اس هغه مجاهد ته ورکړې وو هغه د حملان قبیل نه وو او هغه وقف نه
وو خکه که هغه اس د وقف وې نو هغه خرخول به جائز نه وو د دې خبرې تائید د رسول الله صلی الله علیه وسلم
د دې فرمان نه کیږي: لاتعد في صدقتك. دا قول په دې خبره دلالت کوي چه هغه اس حملان یعني د

(۱) شرح ابن بطال: ۱۳۸/۵.
(۲) تقدم تخریجه في کتاب الزکوة باب هل یشتری صدقته؟ رقم: ۱۴۹۰.
(۳) کشف الباري: ۲۳۷/۱.
(۴) کشف الباري: ۱/۲۳۸.
(۵) کشف الباري: ۲۹۰/۱.
(۶) کشف الباري: ۲۰۳/۲.
(۷) تقدم تخریجه في کتاب الزکوة باب هل یشتری صدقته؟ رقم: ۱۴۹۰.
(۸) کشف الباري: ۲۳۹/۱.

صدقه په تو که ورکړې شوې وو هغه وقف یا سرکاري اس نه وو (۱)

[حديث ۲۸۰۹] (۲) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَمَلَ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، فَوَجَدَهُ يُبَاعُ، فَأَرَادَ أَنْ يَبْتَاعَهُ، فَسَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ « لاَ تَبْتَعْهُ ، وَلاَ تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ». [ر: ۱۴۱۸]

## رجال الحديث

① **اسماعيل**:- دا ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اویس مدنی دې. دَ امام مالك رحمه الله خورني دې دَدوی حالات كتاب الايمان كښې تيرشوی دی. (۳)

② **مالک**:- دا امام دارالهجرة حضرت مالك بن انس رحمه الله دې. (۴)

③ **نافع**:-دا ابوسهيل حضرت نافع بن مالك مدنی رحمه الله دې په كتاب الايمان كښې دَدوی تذكره تيره شوې ده. (۵)

④ **عبدالله بن عمر**:- دادَحضرت عمر رضي الله عنه خوئی عبدالله رضي الله عنه دې. دَدوی حالات شاته تيرشوی دی. (۶)

⑤ **عمربن الخطاب**:- دا اميرالمؤمنين حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه دې. (۷)

په رومبی روايت او دې روايت كښې صرف دَ رواة معمولی شان فرق دې. **يباع**:- دا په تركيب كښې وجد دَپاره مفعول ثانی واقع كيږی. **أن يبتاعه، لاتبتعه**: دَ باب افتعال نه دَدې معنی دَ لفظ شراء راخی. (۸)

[حديث ۲۸۱۰] (۹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ الأَنْصَارِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو صَالِحٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَوْلاَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ، وَلَكِنْ لاَ أَجِدُ حَمُولَةً، وَلاَ أَجِدُ مَا

(۱) شرح ابن بطال: ۱۳۸/۵ وعمدة القاری: ۲۳۲/۱۴.
(۲) تقدم تخريجه فی كتاب الزكوة باب هل يشتری صدقته؟ رقم: ۱۴۹۰.
(۳) كشف الباری: ۱۱۳/۲.
(۴) كشف الباری: ۲۹۰/۱.
(۵) كشف الباری: ۲۷۱/۲.
(۶) كشف الباری: ۶۳۷/۱.
(۷) كشف الباری: ۲۳۹/۱.
(۸) عمدة القاری: ۲۳۲/۱۴.
(۹) تقدم تخريجه فی كشف الباری: ۳۰۵/۲.

أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ، وَيَشُقُّ عَلَى أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنِّي، وَلَوَدِدْتُ أَنِّي قَاتَلْتُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقُتِلْتُ، ثُمَّ أُحْيِيتُ ثُمَّ قُتِلْتُ، ثُمَّ أُحْيِيتُ». [ر: ۲۶۴۴]

**قوله**: ولكن لاأجد حمولة ولا أجد مـا أحملهم عليه- علامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله فرمانى چه ددې دواړو جملو جدا جدا مراد متعين کول ضرور دی دې دپاره چه تکرار لازم رانه شی هغوی دوه احتمالات ذکر کړی دی ① يوخودا چه رومبی جمله لاأجد حمولة نه هغه سورلی مراد ده چه په ذاتی ملکيت کښې وی نومطلب به دا شی زما سره خپله هيڅ زياتی ذاتی سورلی نشته ګنی هم مجاهدته به مې ورکوله دويمه جمله ما احملهم نه هغه سورلی مراد ده چه ملکيت اوسبب مثلاً په عاريت وغيره کښې حاصله کړې شی په عاريت کښې مې هم څه سورلی نه ده اخستې ګنی هم هغه به مې ورکوله.

② دويم احتمال دادې چه د رومبۍ جملې نه مراد نفس حموله يعنی د سورلئی حصول دې دويمې جمله نه مراد هغه وسائل دی په کوم سره چه سورلی اخستې شی لکه سره زر روپئی پيسې وغيره يعنی نه سورلی موجود ده اونه ئې وسائل شته (۱)

**نکته**:- هم دغه روايت کتاب الايمان اوائل کښې هم راغلی دی په کوم کښې چه د شهادت دا خواهش په قتلت باندې ختميږی او دلته په دې روايت کښې أحييت باندې ختميږی علامه کرمانی رحمه الله دلته د يونکته طرف ته اشاره فرمائيلې ده د کوم حاصل چه دادې چه دکوم روايت په آخره کښې اقتل واردشوې دې په دې کښې د اصل حقيقی سعادت اونيك بختئی سبق ذکرکړې شوې دې حقيقتاً د سعاد حاصليدو ذريعه شهادت دې او په کوم روايت کښې چه احيا يا أحييت لفظ واردشوې دی په هغې کښې د واقع او حقيقت ذکردې چه د دنيا د ژوند اومرګ نه پس په آخره کښې راتلونکې څيزهم حيات دې چه الله تعالى به تول په آخره کښې راژوندی کوی اوهغه ژوندون ابدی دې اوس حاصل دادې چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم بار بار د شهادت او د بيا ژوندون حاصلولو تمنااوکړه لکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم داخواهش کولو چه ماته شهادت ملاؤشی بيا ژوند ملاؤشی اودوباره بيا شهادت ملاؤشی اوبيا ژوند حاصل شی تردې چه په آخرت کښې کوم حيات ماته حاصل وی هغه دې دشهادت نه پس حاصل وی والله اعلم (۲)

## باب-۱۱۸ مـاقيل فی لواءالنبی صلی الله علیه وسلم

**د ترجمة الباب مقصد**:- دلته امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د لواء ذکرکړې دې خو په مذکوره رواياتوکښې لواء او رايه دواړو ذکرراغلې دې غالباً امام صاحب لواء، رايه او عَلَم کښې فرق نه کوی او لغوی حضرات هم دا کلمات مترادفات شميری حافظ ابن حجر رحمه الله ليکی اللواء: بكسر اللام والمد هی الراية ويسمى أيضاً العلم (۳)

(۱) لامع الدراری: ۷/ ۲۶۰.
(۲) شرح الکرمانی: ۱۲/ ۲۰۷.
(۳) فتح البارى: ۶/ ۱۲۶.

امام ترمذی رحمه الله لواء او رایة کښې د فرق قائل دې هغه ذهریودپاره جدا جدا باب قایم کړې دې باب الاویة ترجمه قایم کولوسره هغوی دحضرت جابر رضی الله عنه روایت نقل کړې دې أن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم دخل مکة ولواءه أبیض (۱)

او بیا باب فی الرایات ترجمه قایم کولوسره دحضرت براء رضی الله عنه حدیث ذکرکړې دې أن رایة رسول الله صلی الله علیه وسلم کانت سوداء مربعة من نمرة.(۲)

او په حدیث ابن عباس رضی الله عنهما سره ئی نور فرق واضحه کړو کانت رایته سوداء ولواءه أبیض (۳)

قاضی ابوبکرابن العربی وائی چه لواء هغه جهنډې ته وائی چه په نیزه باندې اوتړلې شي اوراغونډه کړې شي او رایه هغه جهنډې ته وائی چه اوتړلې شي اوچته کړې شي اوهغه په هواکښې خوزیږی (۴) بعض خلق وائی چه رایه غټې جهنډې ته وائی او لواء وړې جهنډې ته وائی بعض حضرات وائی چه رایه هغه ده چه سپه سالارسره وی اولواء هغه ده چه فوجی دستوسره وی اوبعضو ددې عکس وئیلې دې (۵)

بهرحال که دواړه جدا اومنلې شي نووئیلې به شي چه سره ددې چه جدا جدا دی خو دواړه هم جهنډې دی اودواړه د علامت او شعاریه توګه استعمالیږی اود غټې وړې فرق کیدې شي اوداستعمال دمواقع په اعتبارسره فرق هم کیدې شي (۶) په دې وجه امام بخاری رحمه الله د لواء ترجمه کولوسره که رایه او لواء دواړه روایتونه ذکرکړی نو په دې کښې هیڅ مضائقه نشته

[حدیث ۲۸۱۱](۷) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ أَخْبَرَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي ثَعْلَبَةُ بْنُ أَبِي مَالِكٍ الْقُرَظِيُّ أَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ الْأَنْصَارِيَّ -رضی الله عنه- وَكَانَ صَاحِبَ لِوَاءِ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- أَرَادَ الْحَجَّ فَرَجَّلَ.

## رجال الحدیث

① **سعیدبن ابی مریم:-** سعیدبن حکم بن محمد ابومحمدابن ابی مریم مصری رحمه الله دې دهغوی حالات کتاب العلم کښې تیرشوی دی.(۸)

② **لیس بن سعد:-** لیث بن سعد رحمه الله دې دده حالات شاته تیرشوی دی.(۹)

---

(۱) الجامع للترمذی:۱/۲۹۷ أبواب الجهاد باب ماجاء فی الالویة رقم:۱۶۷۹.

(۲) الجامع للترمذی:۱/۲۹۷ أبواب الجهاد باب ماجاء فی الرایات رقم:۱۶۸۰.

(۳) ایضارقم:۱۶۸۱.

(۴) فتح الباری:۶/۱۲۶.

(۵) فتح الباری:۶/۱۲۶.

(۶) عمدة القاری:۱۴/۲۳۲.

(۷) أخرجه الاسماعیلی نقلا عن فتح الباری:۶/۱۲۷ وعمدة القاری:۱۴/۱۳۳.

(۸) کتاب العلم:۴ باب من سمع شیئا فراجع حتی یعرفه.

(۹) کشف الباری:۱/۳۲۴.

④**عقيل** - دا عقيل بن خالدبن عقيل رحمه الله دي په كتاب العلم كښې د دوى حالات راغلى دى (١)
⑤**ابن شهاب** - دامشهورمحدث ابن شهاب زهرى رحمه الله دي د دوى حالات تيرشوى دى (٢)
⑥**ثعلبة بن ابى مالك قرظى** - د دوى حالات په كتاب الجهاد كښې تيرشوى دى (٣)
⑦**قيس بن سعدبن عبادة** - داصحابى رسول حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه دي دَدوى حالات كتاب الجنائز كښې تير شوى دى (٤)

**دَ حديث مقصد** - دا روايت دلته دَ ذكركولو مقصد صرف داجمله ذكركول دى چه حضرت قيس بن سعدانصارى رضي الله عنه دَ رسول كريم ﷺ علم بردار او جهنډا نيوونكې به وو اودلته دَ لواء ذكر راغلې دې

ان قيس بن سعد.....-دا اسم ان دې او اراد الحج فرجل جمله خبردَ ان ده. او وكان صاحب لواء جمله معترضه ده (٥) مكمل روايت داسې دې فرجل احد شقى راسه فقام غلام له فقلد هديه فنظرقيس فاذا هديه قد قلد، فاهل بالحج ولم يرجلشق راسه الاخر (٦) يعنى قيس دَخپل سردَ يوې حصې كمنزه اوكړه دَهغه يوغلام وو اودَهدى يعنى قربانى قلاده اوتړلې شوه كله چه قيس رضي الله عنه اوليدلو چه دَهغه هدى يعنى دَ قربانئى څاروې قلاده تړلې شوې دې نوزر نى دَ حج تلبيه اووئيله اودَخپل سر دَدويمې حصې كمنزه ئى اونه كړه.

امام بخارى رحمه الله په دې مقام دَحضرت قيس بن سعد رضي الله عنه پوره اثر نقل كولو په ځائى په لږه شانحصه باندې اكتفاكړې ده. دَدې وجه داده چه دا اثر په صحابى باندې موقوف دې او امام بخارى په عام توګه باندې خپل كتاب كښې مرفوع احاديث راوړى البته دلته كان صاحب لواء النبي صلى الله تعالى عليه وسلم دې حصې ته به مرفوع وئيلې شى ځكه چه دَ لواء هم دَحضوراكرم ﷺ دَ طرف نه به وى. (٧)

**دَ روايت ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَدې اثر ترجمة الباب سره مطابقت بالكل واضحه دې ځكه چه دلته دَلواء ذكر په صراحت سره موجود دې. (٨)

---

(١) كشف البارى:٣/.
(٢) كشف البارى:٣٢٦/١.
(٣) باب حمل النساء القرب الى الناس فى الغزو.
(٤) باب من قام لجنازة يهودى.
(٥) عمدة القارى:٢٣٣/١٤.
(٦) ارشادالسارى:١٢٨/٥.
(٧) شرح القسطلانى:١٢٨/٥.
(٨) عمدة القارى:٢٣٣/١٤.

[حديث ۲۸۱۲] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ - رضي الله عنه - قَالَ كَانَ عَلِيٌّ - رضي الله عنه - تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي خَيْبَرَ، وَكَانَ بِهِ رَمَدٌ، فَقَالَ أَنَا أَتَخَلَّفُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَخَرَجَ عَلِيٌّ فَلَحِقَ بِالنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ اللَّيْلَةِ الَّتِي فَتَحَهَا فِي صَبَاحِهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ - أَوْ قَالَ لَيَأْخُذَنَّ - غَدًا رَجُلٌ يُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ - أَوْ قَالَ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ - يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَيْهِ». فَإِذَا نَحْنُ بِعَلِيٍّ، وَمَا نَرْجُوهُ، فَقَالُوا هَذَا عَلِيٌّ، فَأَعْطَاهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَفَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ. [۲۹۷۲، ۳۴۹۹، ۳۹۷۲]

## رجال الحديث

① **قتيبه**:- دا قتيبه بن سعيد رحمه الله دې. کتاب الایمان کښې د دوی تذکره تیره شوې ده. (۲)

② **حاتم بن اسماعیل**:- دا حاتم بن اسماعیل کوفی مدنی رحمه الله دې د دوی تذکره اول تیره شوې ده (۳)

③ **یزیدبن ابی عبید**:- د دوی حالات کتاب العلم کښې تیرشوی دی (۴)

④ **سلمه بن اکوع**:- دا معروف صحابی رسول حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه دې د دوی حالات هم کتاب العلم کښې وړاندې تیرشوی دی. (۵)

⑤ **علی بن ابی طالب**:- دا امیرالمؤمنین حضرت علی رضي الله عنه دې د دوی حالات هم په کتاب العلم کښې په تفصیل سره تیرشوی دی (۶) د دې حدیث تشریح کتاب الجهاد کښې باب دعاء النبي علیه السلام الاسلام والنبوة کښې تیره شوې ده. (۷)

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- د دې روایت ترجمة الباب سره مطابقت لاعطین الرایة.... نه مستفاد دې (۸) دې نه دا هم معلومیږی چه امام بخاری رحمه الله رایة او لواء کښې فرق نه کوی لکه چه واضحه ده چه امام صاحب خو باب په لواء عنوان سره قایم کړې دې خو روایت نې د رایة والا

---

۱) الحديث أخرجه البخاری فی کتاب فضائل اصحه باب النبی صلی الله علیه وسلم ومسلم فی باب من فضائل علی ابی طالب رضي الله عنه رقم: ۶۲۲۴.

۲) کشف الباری: ۲/۱۸۹.

۳) کتاب الوضوء باب بلاترجمه قبل باب من مضمض واستنشق من غرفة واحدة.

۴) کشف الباری: ۴/۱۸۲.

۵) کشف الباری: ۴/۱۸۳.

۶) کشف الباری: ۴/۱۴۹.

۷) رقم الحديث: ۲۹۴۲.

۸) عمدة القاری: ۱۴/۲۳۳ والقسطلانی: ۵/۱۲۸.

نقل کړې دي لکه چه هغه د امام ترمذي رحمه الله په شان په دواړو کښې امتیاز اوفرق نه کوي هم دغه خبره به د راتلونکې روایت باره کښې کولې شي بلکې هم دغه روایت مسند احمد کښې دحضرت بریده رضی الله عنه په واسطه سره نقل دې دکوم الفاظ چه دادي یا دافع الواء الی رجل یحبه الله ورسوله (۱) دا روایت هم په دې دلالت کوي چه لواء او رایة دواړو کښې هیڅ فرق نشته (۲)

**فائده** - امام طبري رحمه الله فرمائي چه د حضرت علي رضی الله عنه ددې روایت نه دا فائده حاصلیږي چه امام له پکاردي چه د لښکر امیر داسې سړي جوړکړي چه دهغه د طاقت قوت بصیرت هوښیارتوب او پوهه باندې اعتماد کولې شي (۳)

احدیث ۲۸۱۳ (۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ الْعَبَّاسَ يَقُولُ لِلزُّبَيْرِ رضی الله عنهما هَا هُنَا أَمَرَكَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - أَنْ تَرْكُزَ الرَّايَةَ. [۴۰۲۰]

## رجال الحدیث

① **محمدبن علاء** دا محمدبن علاء ابوکریب همداني کوفي رحمه الله دي ددوي حالات کتاب العلم کښې تیرشوي دي (۵)

② **ابواسامة** - دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زید قرشي کوفي رحمه الله دي دده تذکره تیره شوې ده (۶)

③ **هشام بن عروه** - دا دعروه بن زبیربن عوام رحمه الله خوئي دي

④ **عن ابیه** - داحضرت عروه بن زبیر رحمه الله دي ددې دواړو حضراتو ذکر په بدء الوحی کښې تیرشوي دي (۷)

⑤ **نافع بن جبیر** - دانافع بن جبیر مطعم رحمه الله دي دده تذکره په کتاب الوضوء کښې تیره شوې ده (۸)

**د حدیث مفهوم** - حضرت نافع رحمه الله فرمائي چه ما دحضرت عباس بن عبدالمطلب دحضرت زبیربن عوام رضی الله عنه نه په مقام حجون کښې پښتنه کونکې واوریدو چه آیا هم دغه شغه خائي دې چرته چه رسول الله صلی الله علیه وسلم تاته د جهنډې خښولو حکم درکړې وو؟ نوحضرت زبیر رضی الله عنه اوفرمائیل

---

(۱) فتح الباري: ۱۵۷/۶ قدیمی.
(۲) فتح الباري: ۱۲۷/۶.
(۳) ایضا.
(۴) أخرجه البخاري في كتاب المغازي باب ابن ركزالنبي صلى الله عليه وسلم الراية يوم الفتح.
(۵) کشف الباري: ۳۵۷/۳.
(۶) کشف الباري: ۴۱۴/۳.
(۷) کشف الباري: ۱۱/۱.
(۸) باب الرجل یوضئ صاحبه رقم: ۱۸۲.

اوجی کتاب المغازی کښې دا روایت په تفصیل سره راروان دې [1]

**فائده** - علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه حدیث زبیر رضی الله عنه په دې خبره دلالت کوی چه جهنډا دامام دحکم او اجازت نه بغیرنه شي خښولې ځکه چه دغه جهنډا دامام اودهغه دحکم نشاندهی کوی نوپه داسې اهم معامله کښې به د امام د اجازت او دهغه د حکم نه بغیر جنهډا لګول مناسب نه وی

د دې خبرې دلیل چه جهنډا خښولوکښې هم دامام د احازت ضرورت شته هغه حدیث دې په کوم کښې غزوه موته کښې حضرت جعفر بن ابی طالب او عبدالله بن رواحه رضی الله عنهما د شهادت نه پس جهنډا زید بن حارثه رضی الله عنه نیولې وه او هغه شهیدشو او بیا حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه بغیر د اجازت اوحکم نه جهنډا اونیوله الله تعالی دهغوی په لاس باندې مسلمانانوته فتح ورکړه

**اخذالرية زيد فاصيب ثم اخذها خالد من غير امرة ففتح له** [2] نودا روایت په دې خبره دنص صریح درجه لری چه دعلم او جهنډې نیولوذمه واری پخپله دامام ده اوهغه ته مکمل اختیاردې چه هغه جنهډا چاله غواړی ورکړی اودعلم بردارئی چاله چه غواړی اجازت ورکولې شی [3]

## باب-۱۱۹: الاجير

**د ترجمة الباب مقصد**:- دې باب قایمولوسره امام بخاری رحمه الله یوحکم خودل غواړی چه اجیر في الغزو ته به مال غنیمت نه حصه ملاویږی که نه؟ [4]

د اجیرفي الغزو دوه حالتونه دی: ① یاخو به اجيرفي الخدمت وی ② یابه اجيرللقتال وی

① **د اجیرفي الخدمت حکم**:- اجیر خدمت هغه کس وی چه د یومجاهدذاتی خدمت دپاره یادهغه د اس وغیره د خیال ساتلودپاره ورسره شوې وی. دا په اتفاق سره جائزدې خو دمال غنیمت نه به هغه ته حصه ملاویږی که نه؟ په دې اختلاف دې د احنافوپه نیز به دد ته سهم نه ملاویږی صرف اجرت به ملاویږی ځکه چه هغه د جنګ په اراده سره نه دې تلې. اوکه هغه خدمت پریخودواوپه جنګ کښې شامل شو نوهغه به هم د لښکرنه شمیرلې شی اوهغه ته به هم سهم غنیمت ملاویږی. دې نه علاوه په بل صورت کښې به هغه هیڅ کله مستحق نه وی ځکه چه دهغه په جنګ کښې شرکت نه کولوسره داخبره واضحه شوه چه هغه د جنګ په اراده سره نه دې راغلې [5]

امام مالک رحمه الله [6] ابن المنذر ، لیث بن سعد ، سفیان ثوری رحمهم الله نه د حنفیه موافق قول

---

[1] ) کشف الباری:ص ۵۰۸ کتاب المغازی.

[2] ) کشف الباری. ص:۴۸۱ کتاب المغازی باب غزوة مؤته من ارض الشام.

[3] ) شرح ابن بطال: ۱۴۱/۵.

[4] ) عمدة القاری: ۲۳۴/۱۴.

[5] ) بدائع الصنائع:۱۲۶/۷ کتاب السیرمطلب فی بیان من یتنفع بالغنائم.

[6] ) المدونة الکبری:۲۳/۲بتب سهما النساء والتجار والعبید.

نقل دي (۱) او دَ امام احمد رحمه الله نه دوه اقوال نقل دي یوروایت دَ احنافو موافق دي خو دویم روایت مطابق اجیرخدمت ته به سهم غنیمت مطلقًا نه ملاویږی دَامام اوزاعی او اسحاق رحمهم الله هم دغه مذهب دې چه په ذاتي خدمت باندې مقرراجیرته به دَغنیمت نه حصه نه ملاویږی (۲)

**دَ اجیرقتال حکم** - دَحنفیه په نیز اجیرقتال ته به په مال غنیمت کښې حصه ملاویږی مزدوری به نه ملاویږی امام محمد رحمه الله په سیر کبیر کښې لیکلی دی که یوسړې دَبل سړی په بدله کښې جنګ دَپاره لاړشی نوهغه ته به مزدوری نه ملاویږی ځکه چه دادَ طاعات نه دی دَکوم اجرچه به الله تعالی ورکوی اوکوم سړې چه په طاعات باندې عمل کوی هغه دَالله تعالی په دربارکښې نیزدیکت حاصلوی اودځپلې نفع اوفائدې دَپاره عمل کوی نودَهغه مزدوری به په بل انسان باندې څنګه وی؟

دغه شان دَ مال غنیمت حاصلیدو په صورت کښې دې سړی ته به حصه ملاویږی چه په جنګ کښې شریك شوې وی نه چه دَهغه سړی کوم چه دې په مزدورئی او اجرت باندې جنګ له راوستې دې (۳) دَ احنافو دلیل دَحضرت عمر رضی الله عنه روایت الغنیمة لمن شهدالوقعة دَکوم حاصل چه دادې که یوسړې په میدان جنګ کښې موجود وی او په جنګ کښې هم شریك شوې وی نوهغه ته به په مال غنیمت کښې حصه ملاویږی (۴)

دَ شوافع هم دغه مذهب دې دَ کوم تفصیل چه دادې که مسلمان آزاد بالغ دَ جنګ په صفونو کښې موجود وو نوهغه ته به سهم غنیمت ملاویږی ځکه چه په هغه باندې جهادفرض دې دَکوم دَ اجرت چه استحقاق نه وی او که هغه غلام وی یانابالغ وی یا کافروی نودَمزدورئی اواجرت استحقاق به ئی وی. (۵)

**په نقل مذهب کښې دَ حافظ ابن حجر رحمه الله تسامح**:- دلته دَ حافظ صاحب دَ احنافو مذهب نقل کولوکښې تسامح شوې دې. دَاحنافو مذهب په دې مسئله کښې دَ شوافع موافق دې (۶) دَ مالکیه او حنابله موقف دادې چه اجیرللقتال ته به صرف دَهغه اجرت ملاویږی. دَدې حضراتو استدلال حدیث باب نه دې په کوم کښې چه حضرت یعلی بن امیر رضی الله عنه یوسړې په درې دیناره دَ اجیر جوړولوذکر موجوددې اودا چه هغه سړی ته ئی هم درې دیناره ورکړل (۷)

حنفیه داسې روایات په کوم کښې چه دَاجرت ورکولوذکر دې هغې ته اجیرللخدمة باندې

---

(۱) المغنی:۹/ ٤٤الفصل رقم: ۷٦۰۰ کتاب الجهاد حکم ملوا استاجر الامیر قوما یغزون مع المسلین وحکم الاجیر للخدمة.

(۲) پورتنئی حواله .

(۳) السیر الکبیر:۲/۱٦٦ نقلا عن اعلاءالسنن:۱۲/۲۲۳.

(۴) راجع للتفصیل: اعلاء السنن:۱۲/۱۳۸، ۲۲۵.

(۵) فتح الباری: ٦/۱۲۵.

(٦) اعلاء السنن:۱۲/۲۲۳.

(۷) المغنی: ۹/ ٤٤ ۲ مساله رقم:۷۵۹۹حکم ماله استاجر الا مام قوما یغزون مع المسلمین.

محسوب کوي قال الحسن وابن سيرين: يقسم للاجير من المغنم.[1]

**د تعليق تخريج** - دا تعليق په مصنف عبدالرزاق کښې او مصنف ابن ابی شيبه کښې موصولاً ذکر کړې شوې دې.[2] واخذ عطية بن قيس فرسا على النصف، فبلغ سهم الفرس اربعماة دينار، فاخذ مائتينت واعطى صاحبه مائتين

**عطيه بن قيس** - دا جليل القدر تابعي او مجاهد عطيه بن قيس کلاعي يا کلابي ابويحيی الحمصي دمشقي دې. دنبي کريم ﷺ په زمانه ۷هجري کښې پيدا شوې. هغه علوم قرآن د ام درداء رضي الله عنها نه حاصل کړل ام درداء رضي الله عنها د قرآن عالمه وه. هغې د قرآن تعليم دخپل خاوند ابودرداء رضي الله عنه نه حاصل کړې وو. عطيه بن قيس د اميرمعاويه رضي الله عنه په زمانه کښې د اسلامي فوج قاري وو. هغه به خلقو ته قرآن خودلو او خلقو به هغه سره دخپلو ليکلو شوو قرآني نسخو تصحيح کوله. هغوی به تلاوت کولو او خلقو به اصلاح کوله. هغه د قسطنطنيه په جنګ کښې هم شرکت کړې چرته چه دحضرت ابوايوب انصاری رضي الله عنه انتقال اوشو او هم هلته دفن شو.

سعيد بن عبدالعزيز وائي چه دعطيه رحمه الله په مجلس کښې به د دنيا دخبرو هيڅ ذکر نه وو او نه به موږ ددې اميد لرلو چه د دنياوی خبرو تذکره دهغوی په محفل کښې اوچيرلې شي. هغوی د حضرت ابي بن کعب عبدالله بن عمرو ابن عمر نعمان بن بشير معاويه بن سفيان نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم نه حديث روايت کړې دې. دهغوی نه روايت کونکو کښې دهغوی خامن سعد ابوبکر بن ابی مريم عبدالله بن علاء بن زبير عبدالرحمن بن يزيد بن جابر وغيره دی. د حضرت عطيه وفات يوسل څلورکاله په عمر کښې ۱۰۴ هجري کښې شوې. يوقول د ۱۲۱ هجري هم نقل دې.[3]

**د عطيه رحمه الله د اثر مفهوم** - حضرت عطيه رحمه الله يواس د جهاد دپاره په اجرت باندې اخستې وو فيصله داشوې وه چه مال غنيمت کښې به نيمه حصه داس اجرت وی. هغوی ته څلور سوه دينار ملاؤشو دوه سوه ديناره ئې خپل ځان سره کړل او دوه سوه ئې داس والاته ورکړل. اوس د عطيه بن قيس ددې عمل په حکم کښې د فقهاؤ اختلاف دې. ائمه ثلاثه دې قسم اجاره ته ناجائز وائي. ځکه چه دا اجاره مجهوله ده او داځکه چه دغنيمت مال حاصلول څه يقيني او فيصله شوې خبره نه ده.

البته امام اوزاعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله دا جائز ګرځوي.[4] که چرې داسې اجاره اوکړې شي نو صاحب فرس ته به مثل اجرت ملاويږي او غنيمت به ټول په ټوله د مجاهد وي.

---

[1] ) انظر اعلاء السنن:۱۲/ ۲۲٤.

[2] ) مصنف عبدالرزاق ۲۲۹/۵ کتاب الجهاد باب هل يسهم للاجير رقم:۹٤۵۶ وتغليق التعلقى ۴۵۱/۳.

[3] ) راجع: تهذيب الکمال:۱۵۳/۲۰ وسير اعلام النبلاء ۳۲٤/۵.

[4] ) فتح الباري:۱۲۵/۶ وشرح ابن بطال:۱٤۰/۵.

احدیث ۲۸۱۴ [1]: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى عَنْ أَبِيهِ - رضي الله عنه - قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - غَزْوَةَ تَبُوكَ، فَحَمَلْتُ عَلَى بَكْرٍ، فَهُوَ أَوْثَقُ أَعْمَالِي فِي نَفْسِي، فَاسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا، فَقَاتَلَ رَجُلاً، فَعَضَّ أَحَدُهُمَا الآخَرَ فَانْتَزَعَ يَدَهُ مِنْ فِيهِ، وَنَزَعَ ثَنِيَّتَهُ، فَأَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَهْدَرَهَا فَقَالَ «أَيَدْفَعُ يَدَهُ إِلَيْكَ فَتَقْضَمُهَا كَمَا يَقْضَمُ الْفَحْلُ».

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن محمد** - داابوجعفر عبدالله بن محمد بن جعفی بخاری مسندی دی دَ دوی حالات شاته تیرشوی دی [2]

② **سفیان** - دامشهورمحدث ابومحمدسفیان بن عیینه بن میمون کوفی رحمه الله دی دَ تفصیلی حالات کتاب العلم کښې راغلی دی [3]

③ **ابن جریج** - داعبدالملک بن عبدالعزیزابن جریج رحمه الله دی کتاب الحیض کښې ددوی حالات تیرشوی دی [4]

④ **عطاء** - دا عطاء بن ابی رباح قرشی ابومحمدجندی یمانی رحمه الله دی ددوی حالات کتاب العلم کښې راغلی دی [5]

⑤ **صفوان بن یعلی** - دا صفوان بن یعلی بن امیه یمیمی رحمه الله دی

⑥ **یعلی بن امیه** - حضرت یعلی بن امیه صحابی رسول ﷺ دی دَ صفوان پلاردی رضی الله عنه ددې دواړو حالات کتاب الحج کښې تیرشوی دی [6]

علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه په حدیث یعلی کښې ددې خبرې ثبوت خوښتنه چه نبی کریم ﷺ اجیرته سهم ورکړې وی لیکن امام بخاری رحمه الله داحدیث دَ سهم اجیردپاره په توکه ددلیل پیش کړې دې خکه چه دحدیث نه دامعلومیږی چه دَ جهاددپاره آزادسړې اجیرجوړولې شي اوالله تعالی جل شانه آزادو مسلمانانوته خطاب کولوسره فرمانیلی دی ﴿ وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ ﴾ [7] اجیرهم په دغه خطاب اوحکم کښې داخل دي نو ده ته به هم دَ یو مجاهد په شان دَمال غنیمت نه حصه ملاویږی اجرت به ورته نه ملاویږی [8]

---

[1] ) مر أخرجه
[2] ) کشف الباری:۱/ ۶۵۷.
[3] ) کشف الباری:۱/ ۲۳۸.
[4] ) کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله.
[5] ) کتاب العلم باب عظة الامام النساء وتعلیمهن.
[6] ) کتاب الحج باب غسل الخلوق ثلاث مرات من الثیاب.
[7] ) الانفال:۴۱.
[8] ) شرح ابن بطال:۵/ ۱۳۹.

واضحه دې وی چه دلته د اجیرنه مراد اجیرخدمت دې اجیرقتال دې اجیرخدمت چه د چا دخدمت دپاره میدان جنګ ته راغلې وی او په جنګ کښې شریک شوې نه وی هغه ته به د مال غنیمت نه حصه نه ملاویږی اجرت به ورته ملاویږی د حنفیه چه کوم مشهورمذهب په کتابونوکښې ذکردې چه لایسهم للاجیر ذدې هم دغه مطلب دې علی الاطلاق سهم د اجیرنفی مقصودنه ده ددې مسئلې تفصیل د امام محمد رحمه الله کتاب السیرالکبیر په حواله سره بیان شوې دې [۱]

**د حدیث دبعض الفاظوتشریح:-** داحدیث وړاندې تیرشوې دې البته د یوڅو الفاظومطلب دلته بیانولې شی بکر ځوان اوښ ته وائی او اوښې ته بکره وائی

**أوثق أعمالی:-** زما په عمل کښې دتبولونه زیات قابل اعتماد عمل دغزوه تبوك شرکت دې دحموی نسخه کښې أوفق أعمالی دې یعنی هغه اوښ د سوزلئی او بوج وغیره اچولو په اعتبارسره زما په اوښانوکښې د ټولونه زیات مناسب وو اود مستملی په نسخه کښې أوثق أجمالی راغلې دې یعنی قابل اعتماد اوښ. أجمال دجمل جمع ده. علامه برماوی رحمه الله رومبې قول صحیح ګرځولې دې [۲]

**فقاتل رجلا** - ددې قاتل مصداق پخپله حضرت یعلی رضی الله عنه دې یعنی هغه خپل اجیرسره په جنګ شو [۳]

فتقضمها قضم. قضما: یوڅیزباندې شخوندوهل. یعنی آیا هغه هم خپل لاس ستا په خله کښې واچوی بیاته هغه باندې چکونه اولګوه لکه چه اوښ شخوندوهی.

**دحدیث باب ترجمة الباب سره مطابقت:-** د حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت **فاستاجرت** أجیرا کښې دې. والله اعلم وعلمه اتم واحکم

## باب– ۱۲۰ قول النبی صلی الله علیه وسلم (نصرت بالرعب مسیرة شهر)

**وقوله جل وعز: سنلقی فی قلوب الذین کفروا الرعب بما أشرکوا بالله/آل عمران: ۱۵۱**

**قاله جابر، عن النبی صلی الله علیه وسلم** [ر: ۳۲۸]

**د ترجمة الباب مقصد:-** د ترجمة الباب مقصد خوبالکل ښکاره دې چه دلته نبی کریم صلی الله علیه وسلم دمنجمله خصائص نه رعب اودبدبې خصوصیت ذکرکولې شی چه د دښمنانو زړونه ترلرې لرې پورې درسول الله صلی الله علیه وسلم د ویرې نه لړزیدل او درزیدل

علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه مونږ د دغه خصوصی رعب پخپله مشاهده کړې ده ابومحمد اصیلی بیان کوی چه مونږ د ابن أبی عامرپه قیادت کښې برشلونه [۴] فتح کړو بیا مونږ ته

---

[۱] راجع للتفصیل إعلاء السنن: ۱۲: ۲۲۳ – ۲۲٤ باب لایسهم للاجیر......یقاتلا.

[۲] شرح القسطلانی: ۵: ۱۲۷.

[۳] صحیح مسلم کتاب القسامة والمحاربین باب الصائل علی نفس الانسان وعضوه رقم: ۱٦۷۳.

[٤] معجم البلدان: ۱: ۳۸٤.

باوثوق ذرائع سره معلومه شوه چه کله اهل قسطنطنیه ته زمونږ په برشلونه د فتح خبر اوشو نوهغوی د ښار دروازې بندې کړې او نورو علاقوته منتقل شو او برشلونه او قسطنطنیه کښې د دوو میاشتو مسافت وو (۱)

**په روایاتوکښې تعارض اودهغې حل** - په طبرانی کښې د حضرت ابوامامه رضی الله عنه په روایت کښې **شهرا أو شهرین** (۲) الفاظ دی بل هم په طبرانی کښې د حضرت صائب بن یزید رضی الله عنه په روایت کښې **شهرا أمامي وشهراخلفي** (۳) نقل دی په ظاهره په حدیث باب او دغه دواړو روایتونوکښې تعارض دې لیکن په حقیقت کښې داسې نه ده ځکه چه مقصد لږ یوالې اومسافت بیانول دی اودا چه د دنیا په ټولو اطرافوکښې زما رعب قایم شی لکه چه حدیث صائب بن یزید الفاظ **أمامي وخلفي** په دې دلیل دې که هغه د شهرمسافت وی اوکه د شهرین (۴) معلومه شوه چه د شهر قید احترازی نه دی

**نکته**:- د حضرت جابر رضی الله عنه په روایت کښې مسیرة شهر ونیلوکښې نکته دا په هغه زمانه کښې چه کوم لوئی طاقتونه او غټ ملکونه وو د مدینې نه دهغې مسافت د میاشت یا دې نه که جوړیدلو لکه مصر شام عراق یمن وغیره (۵) هم دغه خلق ووچه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بعثت نه ویریدل د حضرت ابوسفیان مقوله وړاندې راغلې إنه یخافه ملك بنی الاصفر.

**وقول الله عزوجل**: ﴿سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُوا بِاللَّهِ﴾ (۶) دا آیت امام بخاری رحمه الله د روایت د تائید دپاره پیش کړې دې د آیت حاصل دادې چه د کافرانو په زړونو کښې کوم خوف او اضطراب کیفیت د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د بعثت نه پس پیداشوې دې هغه د شرك د وجې نه دی او په دې کښې هیڅ شك نشته چه شرك د بزدلئی او ایمان اوعقیده توحید د قوت سبب دی (۷)

**یوفقهی مسئله**:- اوس دلته په دې مسئله باندې خان پوهه کول پکاردی چه کوم مال په جهاد کښې بغیرد جنګ نه حاصلیږی هغه فئ یادیږی چونکه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې چه به کوم مال د دښمن تسلیم کیدو سره حاصلیدلو هغه به د حضورپاك د رعب د وجه نه حاصلیدلو په دې وجه به نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته په هغه مال کښې مکمل اختیاروو چه چرته غواړی استعمال دې کړی (۸)

---

(۱) شرح ابن بطال: ۱٤۲/۵.
(۲) مجمع الزوائد: ۲۵۹/۸.
(۳) مجمع الزوائد: ۲۵۶/۸.
(۴) فتح الباری: ۱۲۷/۶.
(۵) فتح الباری: ۱۲۸/۶.
(۶) (آل عمران: ۱۵۱).
(۷) عمدة القاری: ۲۳۵/۱٤.
(۸) عمدة القاری: ۲۳۵/۱٤.

**قوله قاله جابر عن النبي صلى الله تعالى عليه وسلم** - دا تعليق امام بخاري ﷫ د يزيد الفقير ﷫ په واسطه سره كتاب الطهارة او كتاب الصلة اوكتاب الخمس كښې موصولاً نقل كړې دې (۱)

احديث ۲۸۱۵ (۲) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ ، وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ ، فَبَيْنَا أَنَا نَائِمٌ أُتِيتُ بِمَفَاتِيحِ خَزَائِنِ الأَرْضِ ، فَوُضِعَتْ فِي يَدِي » . قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ وَقَدْ ذَهَبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَأَنْتُمْ تَنْتَثِلُونَهَا .[۶۵۹۷، ۶۶۱۱، ۶۸۴۵]

## رجال الحديث

① **يحيى بن بكير** - دا ابوزكريا يحيى بن كبير قرشي سخروي مصري ﷫ دې

② **ليث بن سعد** - دا ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمي ﷫ دې

③ **عقيل** - دا عقيل بن خالد بن عقيل ﷫ دې.

④ **ابن شهاب** - دا ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهري ﷫ دې. د دې څلورو واړو حضراتو تذكره بدء الوحى كښې راغلې ده. (۳)

⑤ **سعيد بن مسيب** - دا سعيد بن مسيب بن حزن ﷫ دې د دوى تذكره كتاب الايمان كښې تيره شوې ده (۴)

⑥ **ابوهريره** - دا سيدالمحدثين حضرت ابوهريره ﷛ دې. د دوى تفصيلي حالات شاته تيرشوى دى (۵) جوامع الكلم: دا اضافة الصفة الى الموصوف د قبيل نه دې. يعنى الكلم الجوامع دې. علامه خطابي ﷫ فرمائي معناه: أيجاز الكلام في إشباع للمعاني، يقول الكلمة القليلة الحروف، فتنتظم الكثير من المعنى، وتتضمن أنواعا من الاحكام. يعنى مختصر او جامع خبرې د كوم الفاظ چه كم وى او مطالب او فوائدنى زيات وى ښكاره كړې شى (۶)

---

(۱) تغليق التعليق: ۴۵۲/۳.

(۲) أخرجه البخاري فى كتاب التعبير باب رؤيا الليل رقم: ۶۹۹۸ وباب المفاتيح فى اليد رقم: ۹۰۱۳ وكتاب الاعتصام بالكتاب والسنة باب قول النبي صلى الله تعالى عليه وسلم: بعثت به جوامع الكلم رقم: ۷۳۷۳ ومسلم فى كتاب المساجد ومواضع الصولة رقم: ۱۷۵۷ والترمذى فى كتاب السير باب ماجاء فى الغنيمة رقم: ۱۵۵۳ والنسائى فى كتاب الجهاد باب وجوب الجهاد رقم: ۳۰۸۹.

(۳) كشف البارى: ۲۲۳/۱ - ۲۲۶ بل عقيل د حالات د پاره اوګورئى كشف البارى: ۳۹۳/۳.

(۴) كشف البارى: ۱۵۹/۲.

(۵) كشف البارى: ۶۶۹/۱.

(۶) أعلام الحديث للخطابي: ۱۴۲۲/۲.

**د جوامع الكلم مصداق** - ابن شهاب زهري ابن التين اواكثرمحدثين د دې په مصداق كښې د عموم قائل دی په کوم کښې چه قرآن اوحدیث دواړه شامل دی یعنی څنګه چه د قرآن کریم مختصرمختصر آیاتونه په خپل خان کښې ډیرې زیاتې معناګانې لری بالکل هم دغه شان د احادیث نبوی یوه لویه ذخیره د جوامع الکلام مصداق جوړیدې شي [۱] البته علامه مهلب رحمه الله د دې مصداق صرف هم قرآن کریم ګرخولې دې ځکه چه د قرآن کریم د یویوآیت مختلف معانې اوتویلات وی اوهغه د قول بارتعالی ﴿ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ﴾ [۲] نه استدلال کوی چه په قرآن کریم کښې هیڅ څیززیاتې نه دې بیان شوې دادې خبرې دلیل دې چه جوامع الکلم مصداق هم قرآن دې بل د قرآن کریم صرف یوآیت ﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجٰهِلِيْنَ﴾ [۳] کښې دومره جامعیت دې چه د دنیا اوآخرت د ټولو امورود پاره کافی دی [۴] خود قرآن کریم په دې صفاتوسره دا لازم نه راځی چه احادیث نبویه ته جوامع الکلم وئیل غلط دی یا نامناسب دی. د حدیث نبوی څومره مثالونه داسې دی چه د هغې الفاظ ډیرمختصر اومعانی لکه د سمندر په شان [۵]

چنانچه علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی وهذا شامل للقرآن والسنة فقد كان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم يتكلم بالمعاني اكثيره في الالفاظ القليلة [۶]

**ونصرت بالرعب** - د نبی کریم ﷺ خصوصیت صرف رعب اودبدبه نه وه بلکه د رعب سره سره په دښمنانو باندې غلبه اوفتح هم مراددې کنی صرف رعب داصرف د نبی کریم ﷺ خصوصیت نه دې ځکه چه ویره خودعامو بادشاهانو هم ترلږې لږې پورې د خلقو په زړونوکښې وی [۷]

**فبينا أنا نائم** - دراصل بین دې په آخیره کښې الف اشباع دې دا د جمله طرف ته مضافات وی [۸] یعنی په دغه وخت زه اوده ووم.

## قوله: أوتيت بمفاتيح خزائن الارض فوضعت في يدي:

**د خزائن نه څه مراددې؟** - د خزائن الارض د مراد په تعیین کښې دوه اقواله ذکرکړې شوی دی ① دې نه مرادکسری او قیصر اود مفتوح قومونو خزانې دی چه د عربویه شان فقیراو تنګدست قوم ته د رسول الله ﷺ د وجې نه ملاؤشوې اوهغوی ته داسې داسې خزانې

---

[۱] عمدة القاري: ۲۳٥/۱٤.
[۲] الانعام: ۳۷.
[۳] الاعراف: ۱۹۹.
[۴] شرح ابن بطال.
[۵] دلائل النبوة للبيهقي رواية عقبة بن عامر الجهني رضي الله عنه.
[۶] إرشاد الساري: ٥/۱۲۹.
[۷] شرح الكرماني: ۱۳/٤.
[۸] عمدة القاري: ۱٤/۲۳.

ملاوشوي چه ستركي ورته كولاو باتي شوي ترديچه د كسرى اوقيصر د تاج اوتخت پوري الله رب العزت د مسلمانانو په قدمونو كښي راوچول (۱)

② اوداهم ممكن دى چه دي نه مراد د زمكي معدنيات سره زر سپين زر او اوسپنې وغيره وى اوداصرف په معدنياتو كښي منحصرنه دى بلكه د رزق اوخوراكونو ټولي ذرائع دي نه مراد كيدې شي نوچه څومره وسائل ښكارى داټول د نبى كريم ﷺ د بركته وركړې كيدې شي خكه چه د خزانو كنجيانې هم حضورپاك ﷺ ته وركړې شوي دى (۲)

**نكته** - علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى دلته د الله تعالى اودهغه د حبيب ﷺ په مينځ كښي يومناسبت طرف ته اشاره ملاويږى اوهغه دا لكه چه د مفاتيح الغيب اختصاص الله تعالى د خپل ځان دپاره كړې دې (۳) هسې خو مفاتيح خزائن الارض اختصاص د خپل حبيب ﷺ دپاره كړې دې (۴) **وقال حسان بن ثابت: وشق له من اسمه ليجله فذوالعرش محمود وهذا محمد** يعنى اوالله تعالى دهغوى د اكرام دپاره خپل نوم سره دهغه نوم مشتق كړې چنانچه د عرش والا محمود دې او تاسو محمد ﷺ ئى

**فوضعت في يدي**- دا د الله تعالى وعدې سره كنايه دد چه د حضورپاك ﷺ امت ته به داهرڅه وركولي شي اود الله تعالى رب العزت دغه وعده پوره شوه مسلمانانوته فتوحات حاصل شو اود خزانو انبارونه اولګيدل (۵) خودذي سره مسلمانان د اول په شان جهاد سره شوق نه لرى الله تعالى د خپلې وعدې مطابق بلاد اسلاميه د هرقسم وسائلونه ډك كړل

**قال أبوهريرة رضى الله عنه: وقد ذهب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وأنتم تنتثلونها** يعنى نبى كريم ﷺ خودذې دنيا نه رخصت شو اوتاسوخلق دغه خزانې راوباسئى حالانكه پخپله نبى پاك ﷺ په دنياوى معاملوكښي دومره پرهيزګاره او بې پرواه وو چه هغوى د خپل ذات دپاره دې نه هيڅ هم وانخستل اوچه څه ورته ملاوشوى هغه ئى تقسيم كړى

د حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه باره كښي هم دا مضمون تيرشوي دي چه هغه د دنيا نه په داسې حالت كښي رخصت شوې چه پوره كفن ئى هم نه وو يوورو كې غوندې څادروو چه سربه ئى پټولونوخپې به ئى ښكاره كيدې اوچه خپې به ئى پټولې نو سربه ئى ښكاره كيدو (۶)

راوى حديث حضرت خباب بن الارت رضي الله عنه فرمائى چه هغه خلق خو په داسې حال كښي د دنيانه رخصت شو اوس په مونږ كښي څه خلق هغه دى چه د هغوى ميوه د هغوى دپاره په دنيا كښي پخه شوې دد اوهغوى دغه ميوې راغونډه وى (۷)

---

۱) شرح ابن بطال: ۵/۱٤۲ – ۱٤۳ وأعلام الحديث: ۲/۱٤۲۲.
۲) أعلام الحديث للخطابی ۲/۱٤۲۳ وإرشادالساری: ۵/۱۲۹.
۳) قال الله تعالى ﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾
٤) شرح القسطلانی: ۵/۱۲۹.
۵) إرشاد الساری: ۵/ ۱۲۹.
٦) كتاب الجنائز باب إذالم يجد كفنا إلا مايوارى رأسه أوقدميه غطى رأسه.
۷) شرح ابن بطلال: ۵/۱٤۳.

تنتثلونها . نثل (ن، ض): نثلت البئر وانتثلتها د کوهی نه خاوره راویستل (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت** دحدیث ترجمة الباب سره مطابقت نصرت بالرعب نه مستفاد دی. (۲)

[حدیث ۲۸۱۶] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَخْبَرَهُ أَنَّ هِرَقْلَ أَرْسَلَ إِلَيْهِ وَهُمْ بِإِيلِيَاءَ، ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ الْكِتَابِ كَثُرَ عِنْدَهُ الصَّخَبُ، فَارْتَفَعَتِ الأَصْوَاتُ، وَأُخْرِجْنَا، فَقُلْتُ لأَصْحَابِي حِينَ أُخْرِجْنَا لَقَدْ أَمِرَ أَمْرُ ابْنِ أَبِي كَبْشَةَ، إِنَّهُ يَخَافُهُ مَلِكُ بَنِي الأَصْفَرِ. [ر: ۷]

په مذکوره سند سره ددې حدیث تفصیلی تشریح تیره شوې ده. (۴)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دلته ددې روایت د راوړلو مقصد دا تکړه دده إنه یخافه ملك بنی الاصفر یعنی د رومیانو بادشاه قیصر هم د نبی کریم ﷺ د رعب او ویرې نه رچیدلو نو مطابقت داسې کیږی چه داتولې خبرې د قیصر حضرت ابوسفیان رضی الله عنه سره د شام په ملك کښې اوشوې او د شام اوحجاز په مینځ کښې د یوې میاشت یا دې نه زیات مسافت دې (۵) او قیصر دومره لرې ناست وو د ویرې د وجه نه نی داسې وئیل فان کان ماتقول حقا. فسیملك موضع قدمي هاتين یعنی اې ابوسفیان! که چرې ستادا بیان رښتونې دې نو هغه نبی کریم ﷺ خو به ډیرزر زما په تخت باندې قبضه اوکړی. والله اعلم اتم واحکم

## باب - ۱۲۱ حمل الزاد فی الغزو

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى. /البقرة: ۱۹۷

**د ترجمة الباب مقصد:** دامام بخاری رحمه الله مقصود ددې ترجمة الباب نه یاخودا خودل دی چه جهاد ته د تلو د پاره د توښې انتظام اوکړې شی نو دا د توکل منافی نه دہ (۶) یا دا خودل غواړی چه د توښې اهتمام کول پکار دی ځکه چه په دې سره د جهاد په قوت کښې زیاتوالې کیږی. (۷)

وقول الله تعالی: ﴿وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى﴾ :- حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه یمن والا به کله حج کولو د پاره راتلل نو توښه به نی ځان سره نه راوړله اوخیربه نی غوښتلو او وئیل به نی چه مونږ متوکلین یو. نو دا آیت نازل شو چه د سفر توښه تیار کړئی او بهترین توښه خو

---

(۱) أعلام الحديث: ۱۴۷۳/۲.

(۲) عمدة القاری: ۲۳۵/۱۴.

(۳) قدمر تخریجه البخاری فی بدءالوحی کشف الباری: ۴۷۷/۱ بهذا الاسناد.

(۴) کشف الباری: ۴۷۸/۱.

(۵) عمدة القاری: ۲۳۶/۱۴.

(۶) عمدة القاری: ۲۳۶/۱۴.

(۷) عمدة القاری: ۲۳۶/۱۴.

پرهیزگاری ده [1]
نو بیا چه کله دَ دنیاد سفر دپاره توښه تیارولو حکم ورکړې شوې دې نو هم په دغه مناسبت سره د آخرت دَ سفر دپاره هم د توښې تیار ساتلو حکم ورکړې شوې دې او خودلې شوی دی چه بهترین توښه تقوی او پرهیزگاری ده [2]

[حدیث ۲۸۱۷][3] حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي وَحَدَّثَتْنِي أَيْضًا فَاطِمَةُ عَنْ أَسْمَاءَ - رضي الله عنها - قَالَتْ صَنَعْتُ سُفْرَةَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَيْتِ أَبِي بَكْرٍ حِينَ أَرَادَ أَنْ يُهَاجِرَ إِلَى الْمَدِينَةِ، قَالَتْ فَلَمْ نَجِدْ لِسُفْرَتِهِ وَلاَ لِسِقَائِهِ مَا نَرْبِطُهُمَا بِهِ، فَقُلْتُ لأَبِي بَكْرٍ وَاللَّهِ مَا أَجِدُ شَيْئًا أَرْبِطُ بِهِ إِلاَّ نِطَاقِي . قَالَ فَشُقِّيهِ بِاثْنَيْنِ ، فَارْبِطِيهِ بِوَاحِدٍ السِّقَاءَ وَبِالآخَرِ السُّفْرَةَ . فَفَعَلْتُ ، فَلِذَلِكَ سُمِّيَتْ ذَاتَ النِّطَاقَيْنِ.[۲۹۹۵، ۵۰۷۳]

## رجال الحدیث

① **عبیدبن اسماعیل**:- دَ دوی اصل نوم عبدالله ابومحمدهباری قرشی کوفی رحمه الله دې دَدوی تذکره کتاب الحیض کښې تیره شوې ده. [4]

② **ابواسامه**:- داحمار بن اسامه بن زیدقرشی رحمه الله دَ دَدوی تذکره کتاب العلم کښې تیره شوې ده. [5]

③ **هشام**:- داهشام بن عروه رحمه الله دې بدء الوحی کښې دَدوی حالات تیرشوی دی [6]

④ **ابی**:-دادَ هشام والد حضرت عروه بن زبیربن عوام رحمه الله دې بدء الوحی کښې دَدوی تذکره تیره شوې ده. [7] فاطمة: دادَ هشام بی بی فاطمه بنت المنذرده اواسماء: دا اسماء بنت ابی بکر صدیق رضی الله عنهما ده. دَ دې دواړو حالات کتاب العلم کښې تیرشوی دی [8]

**دَحدیث مفهوم**:- حضرت اسماء رضی الله عنها فرمانی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم کله دَمدینې طرف ته هجرت کولو تشریف ئې اوړلو نوهغې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ سفرسامان تیارکړې وو دَمشکیزې او دسترخوان تړلودپاره څه څیزنه ملاویدلو نوهغې خپل پلارحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته

---

[1] ) روح المعانی: ۸۶/۲.
[2] ) عمدة القاری: ۲۳۶/۱٤.
[3] ) أخرجه البخاری فی کتاب مناقب الانصار باب هجرة النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وأصحابه إلی المدینة رقم:۳۹۰۷ وکتاب اطعمة باب الخبز المرقق والاکل علی الخوان والسفرة رقم:۵۷۸۸.
[4] ) باب نقض المرأة سعرها عندغسل المحیض.
[5] ) کشف الباری:۲۵۸/۳.
[6] ) کشف الباری:۲۹۱/۱.
[7] ) کشف الباری:۲۹۱/۱.
[8] ) کشف الباری:۴۲۱/۳، ۴۲۲.

اوونیل بغیرزماد کمربندنه بل داسې څه څیز پاتې نه شوچه دا سامان پرې اوتړلې شی نوهغوی اوفرمائیل کمربند دوه ټکړې کړه یوې سره مشکیزه او بلې سره دسترخوان اوتړه هغې هم داسې اوکړل حضرت اسماء رضی الله عنها ته د دې خدمت د وجه نه ذات النطاقین اوونیلې شو

سفرة په ضمه دسین مسافرچه کوم خوراك خپل خان سره په سفرکښې اوړی بیا مطلقاً د دسترخوان دپاره استعمالیدو ددې جمع سُفَرٌ دہ

سقاء په کسره د سین مشکیزې ته ونیلې شی ددې جمع أسقیة ده. او سقایة بتاء التانیث د اوبوڅکلوپیاله ته وائی

نطاق په کسره دنون کمربند اوپیټنی ته ونیلې شی داد کپړې یوه ټکړه وی کومه چه ښځې په ملاتړی اوددې پورتنئی حصه په لاندینئی حصه اولاندینئی حصه نې ترزمکې پورې زوړند وی د کور کارروزګارکولووخت کښې دا راکاړی چه خپې په زمکه باندې اونه نخلی ددې جمع نُطُق (بضم النون والطاء) ده.[1]

**حضرت اسماء رضی الله عنها ته ذات النطاقین وئیلووجه**: اوس سوال داپیدا کیږی چه حضرت اسماء رضی الله عنها ته د دوو کمربندوالولې وئیلې شوې ده؟ په دې کښې د محدثینو مختلف اقوال دی.

① یوه وجه خو پخپله حدیث باب کښې ذکرده چه هغې خپل کمربند په دووټکړو کښې تقسیم کولوسره جناب نبی کریم صلی الله علیه وسلم د سفرسامان تړلې وو اوهم دغه قول راجح معلومیږی.[2]

② دویمه وجه دابیان کړې شوه چه دهغوی عادت وو چه هغې به دوه کمربند تړل او په دې کښې دهغې د فعت اوپاکدامنئی طرف ته اشاره معلومیږی.[3]

③ دریمه وجه داده چه د حضرت اسماء رضی الله عنها دوه کمربندوو یوبه ئې تړلو او دویم کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اود حضرت ابوبکر رضی الله عنه دپاره خوراك اوړلو کوم وخت چه هغوی دواړه په غارثورکښې پټ شوی وو.[4]

**فقه الحدیث**:- علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه ددې حدیث شریف نه معلومیږی چه د لرې په سفرونوتللووخت کښې د لارې توښه خان سره اخستل پکاردی اودا بوج نه دی ګڼړل پکار. ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه په مخلوق خداکښې د ټولو زیات ښه او د الله تعالی اودهغه په بندګانو کښې د ټولونه زیات عزت والا اود قیامت په ورځ به شفیع الامم وی هغوی به ددې خبرونه بې پرواه کیدل نه نوداد نن صبا اوچوجاهلانو صوفیانو څه ټکانه ده چه د لارې توښه خان سره اوړل د توکل نه خلاف ګڼړی اودخلقو نه سوالونه کوی غواړی.[5]

---

[1] ) عمدة القاری: ۲۳۷/۱٤.

[2] ) إرشاد الساری: ۱۳/۵.

[3] ) لامع الدراری: ۲٦۲/۷.

[4] ) حاشیه لامع الدراری: ۷/ ۷۲٦۱ – ۲٦٤. وانظر کتاب المغازی فی کشف الباری. ص: ۹۲۰.

[5] ) شرح ابن بطال: ۱٤٤/۵.

**ترجمة الباب سره مطابقت** - دلته دااشكال پيداكيږي چه په حديث كښې خو حمل الزاد في الغزو ذكرنشته ځكه چه دلته خو د سفرهجرت د لارې د توښه ذكركيږي نوترجمة الباب سره به ئې څنګه مطابقت وي؟

علامه كرماني رحمه الله فرمائي چه په سفرهجرت باندې سفرغزوه قياس كړې شوې دې يعني چه څنګه په سفرهجرت كښې د لارې د توښه ضرورت وي اوحضورپاك به ددې اهتمام كولو هم هغه شان به د جهاد په سفركښې هم كيدل (١)

احديث ٢٨١٨ (٢) حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ عَبْدِ اللهِ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ - رضي الله عنهما - قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُومَ الأَضَاحِي عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِلَى الْمَدِينَةِ. أطرافه [ر: ١٦٣٢]

## رجال الحديث

① **علي بن عبدالله**:- دا ابوالحسن علي ابن المديني رحمه الله دې كتاب العلم كښې د دوی تفصيلي حالات تيرشوي دي. (٣)

② سفيان: داابومحمدبن عيينه كوفي رحمه الله دې بدء الوحي كښې د دوی تذكره تيره شوې ده (٤)

③ **عمرو**: داابومحمد عمروبن دينارمكي رحمه الله دې كتاب العلم كښې د دوی ذكرتيرشوې دې (٥)

④ **عطاء**:- دا عطاءبن ابي رباح يماني رحمه الله دې كتاب العلم كښې د دوی ذكرتيرشوې دې (٦)

⑤ **جابربن عبدالله**:- دامشهورصحابي حضرت جابر رضي الله عنه د دوی تذكره كتاب الوضوء كښې تيره شوې ده. (٧)

**د حديث نه مستنبط فوائد**:- د دې حديث شريف نه يوڅو فائدې مستنبط كيږي ① يوخودا چه سفركه د هرقسم نه وی د سفرسامان ځان سره اوړل مشروع دی اود توكل په نوم باندې د لارې توښه نه اخستل لكه چه د خشك اوجاهلانو صوفيانو طريقه ده غلطه خبره ده.

② بل دا چه د قربانئ غوښه ځان سره په سفركښې اوړلوكښې هيڅ خرابي نشته. په حديث شريف كښې دی چه رسول الله ﷺ به په شروع كښې درې ورځې پس د قربانئ غوښه خوړلونه منع فرمائيله بيانبي كريم ﷺ اوفرمائيل كلواوتزودوا وادخروا يعني خورئي او سفركښې ځان

---

(١) شرح الكرماني: ١٣/٥.

(٢) قوله جابربن عبدالله مرتخرى فى كتاب الحج باب ماياكل من البدن ومايتصدق رقم: ١٧١٩.

(٣) كشف الباري: ٣/٢٥٦.

(٤) كشف الباري: ١/٢٣٨.

(٥) كشف الباري: ٤/٣٠٩.

(٦) باب عزظة الامام النساء وتعليمهن.

(٧) كتاب الوضوء باب صب النبي صلى الله تعالى عليه وسلم الوضوء على المغمى عليه.

سره اوږنی او محفوظ کوني (۱)

③ د قربانئ غوښه ټول خلق خوړلې شي که هغه قرباني کونکي مالدار ولې نه وي اوچه کله په سفرکښې ځان سره اوړلې شي نو ذې نه خوړل هم ثابتيږي (۲)

**ترجمة الباب سره مطابقت** : ددې حديث ترجمة الباب سره مطابقت كنا نتزود لحوم الاضاحي كښې دې په مطابقت کښې کوم اشکال پيدا کيږي د هغې جواب د روستوني حديث لاندې تيرشوې دې (۳)

حديث ۲۸۱۹ (۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى قَالَ أَخْبَرَنِي بُشَيْرُ بْنُ يَسَارٍ أَنَّ سُوَيْدَ بْنَ النُّعْمَانِ - رضى الله عنه - أَخْبَرَهُ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - عَامَ خَيْبَرَ، حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالصَّهْبَاءِ - وَهِيَ مِنْ خَيْبَرَ وَهِيَ أَدْنَى خَيْبَرَ - فَصَلَّوُا الْعَصْرَ، فَدَعَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِالأَطْعِمَةِ، فَلَمْ يُؤْتَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِلاَّ بِسَوِيقٍ، فَلُكْنَا فَأَكَلْنَا وَشَرِبْنَا، ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا، وَصَلَّيْنَا. [ر ۲۰۶]

## رجال الحديث

① **محمدبن المثنى** : داابوموسى محمدبن مثنى بصرى عنزى رحمه الله دې ددوى تذکره په کتاب الايمان کښې تيره شوې ده (۵)

② **عبدالوهاب** : داابومحمد عبدالوهاب بن عبدالمجيدثقفي رحمه الله دې شاته ددوى حالات تيرشوې دي (۶)

③ **يحيى** : دايحيى بن سعيدمدنى رحمه الله دې کتاب الايمان کښې د دوى تذکره تيره شوې ده (۷)

④ **بشيربن يسارڅسويدبن نعمان** : اول الذکرابوکيسان انصارى رحمه الله دې اودويم حضرت سويدبن نعمان انصارى رضي الله عنه دې ددواړو حضراتو تذکره تيره شوې ده (۸)

**فلکنا** : لاك يلوك لوكاً السويق ستوان صفاكول او په اوبو کښې ورګډول اوڅکل

---

۱) صحيح مسلم كتاب الاضاحى باب بيان ماكان من النبى عن أكل لحوم الاضاحى بعد ثلاث فى أول الاسلام وبيان نسخه وإباحته إلى متى شاء رقم: ۵۱۰٤.

۲) عمدة القارى: ۲۳۷/۱٤.

۳) عمدة القارى: ۲۳۷/۱٤.

۴) قدمر تخريجه فى كتاب الوضوء باب من مضمض من السويق ولم يتوضا.

۵) كشف البارى: ۲۵/۲.

۶) كشف البارى: ۲۶/۲.

۷) كشف البارى: ۳۲۱/۲.

۸) كتاب الضوء باب من مضمض من السويق ولم يتوضا.

**ترجمة الباب سره مطابقت** دحدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دوو خایونوکښې دې ① فدعا النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بالاطعمة ② فلم یؤت النبی صلی الله تعالی علیه وسلم إلا بسویق دادواړه جملې په دې خبره باندې دلالت کوی چه نبی کریم ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ به په جهاد کښې د لارې توښه ځان سره اوړله دخوراك مختلف څیزونه به وو دلته د ستوانو ذکردې [1]

احدیث ۲۸۲۰ [2] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مَرْحُومٍ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ - رضي الله عنه قَالَ خَفَّتْ أَزْوَادُ النَّاسِ وَأَمْلَقُوا، فَأَتَوُا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فِي نَحْرِ إِبِلِهِمْ، فَأَذِنَ لَهُمْ، فَلَقِيَهُمْ عُمَرُ فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ مَا بَقَاؤُكُمْ بَعْدَ إِبِلِكُمْ فَدَخَلَ عُمَرُ عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا بَقَاؤُهُمْ بَعْدَ إِبِلِهِمْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «نَادِ فِي النَّاسِ يَأْتُونَ بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ». فَدَعَا وَبَرَّكَ عَلَيْهِ، ثُمَّ دَعَاهُمْ بِأَوْعِيَتِهِمْ، فَاحْتَثَى النَّاسُ حَتَّى فَرَغُوا، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ». [ر ۲۳۵۲]

## رجال الحدیث

داحدیث بعینه هم په دې سندسره شاته تیرشوې دې د رجال د مفصل حالاتودپاره حواله جات هم هلته اوکورئی [3]

**د حدیث مفهوم:-** حضرات صحابه کرامو ﷺ د په جنګ دخوراك مشکلات راپیښ شو نوهغوی حضورپاك ﷺ ته د یوځو اوښانود ذبح کولو درخواست اوکړو چه منظورکړې شو حضرت عمر فاروق ﷺ ته ددې خبرې خبراوشونو د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئې اوکړو یارسول الله! چه اوښان ذبح کولې شی نوددوی ګذاره به څنګه کیږی؟ رسول کریم ﷺ د حضرت عمر ﷺ مشوره قبوله کړه او وئې فرمائیل خلقوا علان اوکړئې چاسره چه څه باقې پاتې وی هغه دې راوړې رادې شی. کوم څه چه راجمع شو رسول الله ﷺ په هغې باندې د برکت دعااوفرمائیله بیاخلقو ته د خپلو خپلو لوښوراوړلو حکم اوشو او هغوی به موټې ډکولاو لوښی به ئی ترې ډکول تردې چه هغوی فارغ شو (چونکه دا یوه معجزه وه څکه، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل أشهد أن لا إله إلا الله وأنی رسول الله

**د حدیث د بعض الفاظو تحقیق**-خفت أزواد الناس وأملقوا یعنی خلقو سره د خوراك کمې شو اوهغوی محتاج شو دلته حافظ ابن حجر رحمه الله علامه عینی رحمه الله علامه زرکشی رحمه الله علامه برماوی رحمه الله ددې مطلب دااخستې دې چه د لارې توښه بالکل ختمه شوې وه خود

---

[1] ) عمدة القاری: ۲۳۷/۱٤.

[2] ) مرتخریجه فی کتاب الشرکة باب الشرکة فی الطعام والنهد والعروض رقم: ۲٤۷٤.

[3] ) مرتخریجه فی کتاب الشرکة باب الشرکة فی الطعام والنهد والعروض رقم: ۲٤۷٤.

صاحب مصابیح وینا ده چه حقیقت دانه دي لکه چه خفت نه معلومیږي چه خوراك کم شوي وو بالکل ختم شوي نه وو او واقعتا هم داسې وه خکه چه کوم خوراك باقي پاتې شوي وو هغه صحابه کرامو ﷺ د حضورپاك ﷺ په وړاندې راجمع کړو په کوم چه رسول الله ﷺ د برکت دعا اوونیله (۱)

**مابقاءکم بعد إبلکم** - یعني د اوښانو ذبح کولو نه پس به ستاسو گذاره څنگه کیږي؟

**دحدیث نه مستنبط فوائد** - ① دحضرت عمر ﷺ ددې قول نه دا فائده مستنبط کیږي چه نائب وزیرله پکاردی چه هغه دې خپل امیرته صحیح او صائب مشوره ورکړي که امیر دهغه نه په دغه معامله کښې مشوره غواړي اوکه نه څکه چه د هغه منصب دهغه نه دخیرخواهئ تقاضاکوی اوهغه ته دمداخلت اختیار ورکوی

② دویمه خبره دامعلومیږي چه دمسافردپاره اهم ترین څیز دهغه سورلي ده خصوصاً کرد حجاز په گرم او شگلنه علاقه کښې چرته چه سورلي نه وي نو په ظاهره هم مرگ دهغه مقدردې دهغه خائی په صحراگانو کښې پیدل تگ څه آسان کارنه دې (۲) په دې وجه د سورلئ د حفاظت اهتمام او خیال ساتل پکاردی

③ دلته دحضرت عمر ﷺ منقبت اوفضیلت ښکاره کیږي چه دهغه د نبي کریم ﷺ د دعا د قبلیدو یقین وو (۳)

④ په دې قول سره دحضرت عمر ﷺ دمسلمانانودپاره د شفقت اوهمدردئ د جزبې ښه اندازه کیږي (۴)

**قوله: نادی في الناس یأتون** - حافظ ابن حجر ﷺ د یاتون نه وړاندې فهم مقدرمنی (۵) په دې صورت کښې جمله مستانفه ده اوعلامه عیني ﷺ په دې ردکوی اودا حال گرځوی د الناس نه (۶) په دې صورت کښې به دا هم یوه جمله شي

علامه مهلب ﷺ فرمائي چه ددې حدیث نه بعض فقهاؤ دااستنباط کړي دې که چرې قحط اود خوراك کمې پیداشي نود حاکم دپاره جائزدی چه د ضرورت نه چاسره زیاتی خوراك وي هغه دې په غله خرڅولوباندې مجبورکړي څکه چه دعام انسانانو بهتري هم په دې کښې ده البته امام مالك ﷺ ددې اجازت نه ورکوی چه یوکس چه هغه د یوڅیزمالك وي دهغې په خرڅولوباندې مجبورکړي (۷)

---

۱) إرشاد الساري:۵/۱۳۱.
۲) شرح ابن بطال: ۵/۱۴۵.
۳) شرح ابن بطال: ۵/۱۴۵.
۴) عمدة القاري:۱۴/۲۳۸.
۵) فتح الباري:۶/۱۳۰.
۶) عمدة القاري: ۱۴/۲۳۸.
۷) شرح ابن بطال:۵/۴۴.

**فاحتثى الناس** خلقوډك ډك موټى واخستل يعنى هغه جمع كړې شوې خوراك دَنبى كريم ﷺ د دعا په بركت دومره زيات شوې ووچه خلقو ډك ډك موټى يوړل داد نبى كريم ﷺ معجزه وه لږ شان خوراك د ټولو خلقو د پاره كافى شو.[1]

**قوله:** ثم قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: أشهد أن ...... دَ نبى كريم ﷺ دمعجزې ښكاره كيدونه پس زر شهادتين لوستل ددې خبرې دليل دې چه په معجزاتوسره دَ رسالت تائيد كيږى.[2]

**فائده:** ددې حديث شريف نه دَ نبى كريم ﷺ ښكلې اخلاق ډيرښه واضحه كيږى چه هغوى عليه السلام به دَخپلو ملګرو دَضرورتونوخيال ساتلو تردې چه كله هغوى دَاوښانو د ذبح كولو درخواست اوكړو نودهغوى دَ ضرورتونوخيال كولو سره نى دا درخواست هم قبول كړو اوبيا چه حضورپاك دَحضرت عمر په مشوره كښې دَمسلمانانو بهترى اوكتله نو زر نى دَهغه مشوره قبوله كړه.[3]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دَحديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت خفت أزوادالناس او بفضل أزوادهم كښې دې.[4] والله اعلم وعلمه اتم واحكم

## باب-۱۲۲ حمل الزاد على الرقاب

**دَ ترجمة الباب مقصد:** امام بخارى رحمه الله ښائى چه چاسره سورلى نه وى نوهغه له خپل سامان په اوږه اوچتول پكاردى.[5]

حضرت شيخ الحديث زكريا رحمه الله فرمائى دَامام صاحب مقصد داخودل دى چه مسافرله زيات سامان اوړل نه دى پكار بس چه دومره سامان وى چه كله ضرورت پيښ شى چه سړى پخپله هم هغه اوچت كړې شى.[6]

[حديث ۲۸۲۱][7] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرٍ-رضي الله عنه- قَالَ خَرَجْنَا وَنَحْنُ ثَلاَثُمِائَةٍ نَحْمِلُ زَادَنَا عَلَى رِقَابِنَا، فَفَنِيَ زَادُنَا، حَتَّى كَانَ الرَّجُلُ مِنَّا يَأْكُلُ فِي كُلِّ يَوْمٍ تَمْرَةً. قَالَ رَجُلٌ يَا أَبَا عَبْدِ اللَّهِ، وَأَيْنَ كَانَتِ التَّمْرَةُ تَقَعُ مِنَ الرَّجُلِ قَالَ لَقَدْ وَجَدْنَا فَقْدَهَا حِينَ فَقَدْنَاهَا، حَتَّى أَتَيْنَا الْبَحْرَ فَإِذَا حُوتٌ قَدْ قَذَفَهُ الْبَحْرُ، فَأَكَلْنَا مِنْهَا ثَمَانِيَةَ عَشَرَ يَوْمًا مَا أَحْبَبْنَا. [ر ۲۳۵۱]

---

[1] إرشاد السارى:۱۳۱/۵.

[2] إرشاد السارى:۱۲۱/۵ وعمدة القارى: ۲۳۸/۱۴.

[3] إرشاد السارى:۱۲۱/۵ وعمدة القارى: ۲۳۸/۱۴.

[4] إرشاد السارى:۱۲۱/۵ وعمدة القارى: ۲۳۸/۱۴.

[5] فتح البارى:۱۳/۶.

[6] الابواب والتراجم للشيخ زكريا ص:۱۰.

[7] مرتخريجه فى كتاب الشركة باب الشركة فى الطعام والنهد والعروض الخ رقم: ۲۴۷۴.

## رجال الحدیث

①**صدقه بن الفضل** - دا ابوالفضل صدقة بن فضل مروزی رحمه الله دې دَدوی تذکره کتاب الصلوة کښې تیره شوې ده (۱)

② **عبده** - دا عبده بن سلیمان کلابی کوفی رحمه الله دې دَدوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی (۲)

③ **هشام** -دا ابوالمنذریا ابوعبدالله هشام بن عروه رحمه الله دې بدء الوحی کښې دَدوی تذکره تیره شوې ده (۳)

④ **وهب بن کیسان** - داابوالزبیراسدی رحمه الله دې کتاب البیوع کښې دَدوی حالات تیرشوی دی (۴)

**جابربن عبدالله** -مشهورصحابی حضرت جابر رضي الله عنه دې دَدوی تذکره تیره شوې ده (۵)

**دَحدیث دَ بعض الفاظوتشریح**:- قال رجل: دَدې نه مراد راوی حدیث وهب بن کیسان دې چه دَ حضرت جابر رضي الله عنه نه ئی سوال کړې وو (۶)

**قوله**: وأين كانت التمرة تقع من الرجل؟:-یعنی دَکهجورې په یوه دانه باندې به دَ یوسړی څه اوشی؟

**قوله** لقدوجدنافقدهاحين فقدنا -یعنی دَ دغه یوې کهجورې نه ملاویدو پریشانی هغه وخت محسوس کړه چه کله دَدې ملاویدل هم بندشو وجدنا: وجد یجد وجدا وموجدة: پریشانه کیدل خفه کیدل داحدیث غزوه سیف البحرسره متعلق دې دکوم تفصیل چه کتاب المغازی کښې راروان دې.(۷)

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- دَحدیث مبارك ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضحه دې کوم چه په دې جمله کښې دې ونحن ثلاث ماة نحمل زادناعلى رقابنا مونږ درې سوه کسان وو او دَ لارې توښه موپه خپلو اوږوباندې اوچته کړې وه.(۸)

**فائده**:- دَدې دواړو ابوابونه داهم معلومیږی چه امیرلښکر مجاهدین په سختئی او تکلیفونو برداشت کولو باندې مجبورکولې شی اودَ اولګې او دَلارې دَتوښې دَنشت والی باوجود

---

(۱) باب الصلوة فی مواضع الابل.

(۲) کشف الباری:۲/۹٤.

(۳) کشف الباری:۱/۲۹۱.

(٤) باب الشراء الدواب والحمير باب من لم يرالوضوء الامن المخرجين من القبل والذكروالدبر.

(۵) کتاب الوضوء باب صب النبي ﷺ الوضوء على المغمى عليه.

(٦) کتاب المغازی باب غزة سيف البحر رقم:٤٣٦٠.

(۷) کتاب المغازی باب غزة سيف البحر رقم ٤٣٦٠.

(۸) عمدة القاری: ١٤/٢٣٨.

هغوی په میدان نه پریخودو باندې پابند کولې شی [۱]

**تنبیه** - دلته د ترجمة الباب د اثبات دپاره علامه مهلب رحمه الله فرمائی صحابه کرامو د لارې توبنه خپل خان سره اخستې وه خوچه کله هغه ختمه شوه نوهغوی د کهجورې په یوه یوه دانه باندې په ګذاره کولوباندې مجبورشو بیا چه کله کهجورې هم ختمې شوې نو خبره په اولګه راغله سره ددې چه الله تعالی جل شانه په دې باندې قادردې چه د کاڼو نه مالوچ او غوړنه میوې راپیداکړی خوداسې هیڅ یوه خبره خلاف عادت مخې ته رانغله ددې نه دا سبق ملاویږی چه د لارې دتوبنې انتظام کول پکاردی اود کرامتونو انتظارنه دی کول پکار [۲]

## باب-۱۲۳ ارداف المرأة خلف أخيها

**ربط اومناسبت** - چونکه په جهاد کښې په عام توګه باندې هم سفرکیږی په دې وجه امام بخاری رحمه الله وړاندې بابونو کښې د سفرمسائل بیانوی

**د ترجمة الباب مقصد**:- حضرت مولانارشیداحمد ګنګوهی رحمه الله فرمائی چه خور رور پسې په سورلئی شاته کینول داسې معامله ده چه ددې ضرورت په سفرکښې پیښیږی خصوصاً په جهاد کښې د مشقت نه ډك سفرونوکښې په کوم کښې چه هرطرف ته خطرې اومشکلات وی داسې ضرورتونه ډیر پیښیدې شی په دې وجه امام بخاری رحمه الله ددې صورت جواز دلته بیان کړو که خور روږ پسې شاته په سورلئی کینولې شی نو په دې کښې هیڅ بدی نشته [۳] البته احتیاط کول پکاردی

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی امام بخاری رحمه الله ددې ځائی نه بیان کول غواړی چه د ښځو جهاد حج دې. لکه چه د حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په روایت کښې چه راغلی دی جهادکن الحج [۴] امام بخاری رحمه الله هم په کتاب الجهاد کښې دا روایت نقل کړې دې [۵] خوظاهره ده چه دحضرت ګنګوهی رحمه الله توجیهه ډیره جامع ده ځکه چه دې سره دترجمة الباب مقصد او دکتاب الجهاد نه ددې روایتونو مناسبت هم واضحه کیږی خودحافظ رحمه الله توجیهه کتاب الجهادسره مناسبت خوپه ذهن کښې راځی لیکن دترجمة الباب مقصد دې نه واضح کیږی نه

[حدیث ۲۸۲۲- ۲۸۲۳] [۶] حَدَّثَنَا عَمْرُوبْنُ عَلِي حَدَّثَنَا أَبُوعَاصِمٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَرْجِعُ أَصْحَابُكَ بِأَجْرِ حَجٍّ وَعُمْرَةٍ، وَلَمْ أَزِدْ عَلَى الْحَجِّ. فَقَالَ لَهَا «اذْهَبِي وَلْيُرْدِفْكِ عَبْدُ الرَّحْمَنِ». فَأَمَرَ

---

[۱] شرح ابن بطال: ۱٤۵/۵.
[۲] حواله بالا ص:۱٤۶.
[۳] لامع الدراری:۲۶۵/۷.
[٤] فتح الباری: ۱۳۱/۲.
[۵] وفی حاشیة الامع افاده الشیخ مقدس سره أجود مما قاله الحافظ:۲۶۵/۷.
[۶] قوله عن عائشة....مر تخریج فی کتاب الحیض باب الامربالنفساء إذاتنفس رقم: ۲۹٤.

عَبْدَ الرَّحْمٰنِ أَنْ يُعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيمِ، فَانْتَظَرَهَا رَسُولُ اللّٰهِ - صلى الله عليه وسلم - بِأَعْلَى مَكَّةَ حَتّٰى جَاءَتْ.

## رجال الحديث

①**ابوحفص عمرو بن علی**- داعمرو بن علی بن بحرباهلی رحمه الله دی دَدوی حالات کتاب الوضوء کښې تیرشوی دی (۱)

② **ابوعاصم**:- دده نوم ضحاک بن مخلدبني ضحاک بن مسلم شیبانی رحمه الله دې کتاب العلم کښې دَدوی تذکره شوې ده. (۲)

③**عثمان بن اسود**:-عثمان بن اسود جمحی رحمه الله حالات تیرشوی دی. (۳)

④ **ابن ابی ملیکه**:- داابوبکر عبدالله بن عبیدالله بن ملیکه زهیر رحمه الله دې کتاب الایمان کښې دَدوی تذکره تیره شوې ده. (۴)

⑤**عائشه**:-دا سیده ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ده. بدء الوحی کښې دَدې تذکره تیره شوې ده (۵)

**ترجمة الباب سره مطابقت**.- دَحدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې إذهبی ولیردفك عبدالرحمن کوم چه بالکل واضح دې. (۶)

احدیث ۲۸۲۳](۷) حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رضی الله عنهما - قَالَ أَمَرَنِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ أُرْدِفَ عَائِشَةَ وَأُعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيمِ. [ر: ۱۶۹۲]

## رجال الحديث

①**عبدالله**:- دا عبدالله بن محمدابوجعفرمسندی رحمه الله دې کتاب الایمان کښې دَدوی تذکره تیره شوې ده (۸)

②**ابن عیینه**:-دا ابومحمدسفیان بن عیینه دې. بدء الوحی کښې دَ دوی تذکره تیره شوې ده.(۹)

---

(۱) باب الرجل یوضیٔ صاحبه.

(۲) کتاب العلم: ۱۲۲/۳.

(۳) کتاب الشرکة باب الشتراک فی الذهب والفضة وما یکون فیه الصرف.

(۴) کشف الباری:۲۴۸/۲.

(۵) کشف الباری:۲۹۱/۱.

(۶) عمدة القاری:۲۳۹/۱۴.

(۷) .مر تخریج فی کتاب العمرة باب عمرة النعیم.

(۸) کشف الباری: ۶۵۷/۱.

(۹) کشف الباری:۲۳۸/۱.

③عمروبن دينار - داعمروبن دينارجرمي رحمه الله دي كتاب العلم كښې ددوى تذكره تيره شوې ده.[1]

④عمروبن اوس - داعمرو بن اوس سقفي رحمه الله دې كتاب التهجد كښې ددوى حالات تيرشوى دى.[2]

⑤ **عبدالرحمن بن ابى بكرصديق**:- داصحابى رسول حضرت عبدالرحمن بن ابى بكر صديق رضي الله عنه دي ددوى حالات تيرشوى دى.[3]

**ترجمة الباب سره مطابقت** - د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت امرني النبي صلى الله عليه تعالى عليه وسلم أن أردف عائشة وأعمرهامن التنعيم نه واضح كيږى.[4] والله اعلم وعلمه اتم واحكم

**فقه الحديث** - علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه ددې حديث نه معلوميږى چه په يوه سورلئى (كه هغه خاروې وى يا موټر يا موټرسائيكل وغيره وى) دوه كسان سوريدې شى اود سورلئى د طاقت اوبرداشت خيال ساتل پكاردى خاص په هغه وخت چه كله سورلى بې زبانه ځناوروى اوښځې په سورلئى باندې د سړو مخې ته نه دى كينول پكار كه هغه محرم ولې نه وى. سنت هم دادى چه هغه دې شاته كينولې شى اوهم دغه ادب او د وقار تقاضاهم ده. لكه څنګه چه دحضرت موسى عليه السلام دحضرت شعيب عليه السلام لور هغوى ته لارخودنه كولوسره وړاندې وړاندې تلله او په هواسره دهغې كپړې اوچتيدلې نو خپل شاته د تللو او په اشاره سره دلارخودلوئى ورته اووئيل. حضرت شعيب عليه السلام لوربى بى په واپسئى كښې خپل پلارته اووئيل ﴿ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِينُ ﴾[5] يعنى هغې خپل پلارته د موسى عليه السلام د طاقت پاكبازئى اوامانت باره كښې خبروركړو.[6]

## باب-١٢٤ الارتداف في الغزووالحج

**د ترجمة الباب مقصد**:- مناسبت خو بيان شو چه د سفردمسائلوپه جهادكښې ضرورت پيښيږى. روستونى باب كښې داخودلى وو چه خور رور پسې شاته په سورلئى كيناستل جائزدى اوس دابنائى چه په غزوه كښې روان وى كه په حج كښې هلته هم دويم كس خپل رديف جوړلوكښې څه حرج نشته.[7]

---

[1]) كتاب العلم باب العلم والعظة بالليل.

[2]) كتاب التهجدباب من نام عندالسحر.

[3]) كتاب الحيض باب نقض المرأة شعرهاعندغسل المحيض.

[4]) عمدة القاري: ٢٣٩/١٤.

[5]) القصص: ٢٦.

[6]) شرح ابن بطال: ١٤٧/٥.

[7]) عمدة القاري: ٢٣٩/١٤.

احديث [۲۸۲۴] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ -رضي الله عنه- قَالَ كُنْتُ رَدِيفَ أَبِي طَلْحَةَ، وَإِنَّهُمْ لَيَصْرُخُونَ بِهِمَا جَمِيعًا الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ. [ر ۱۰۳۹]

## رجال الحديث

① **قتيبه**:- داقتيبه بن سعيد ثقفي رحمه الله دي كتاب الايمان كښې دَدوى تذكره تيره شوې ده. (۲)

② **عبدالوهاب**:- دا ابومحمد عبدالوهاب ثقفي رحمه الله دي

③ **ايوب** -داابوبكر ايوب سختياني رحمه الله دې.

④ **ابوقلابة** -دا ابوقلابة عبدالله بن زيد جرمي رحمه الله دې دَدې دريواړو حضراتو حالات كتاب الايمان كښې تيرشوى دى. (۳)

⑤ **انس**:- داخادم رسول حضرت انس رضي الله عنه دي دَدوى تذكره هم كتاب الايمان كښې تيره شوې ده (۴)

**قوله** كنت رديف أبي طلحة، وإنهم ليصرخون بهما جميعا: الحج والعمرة:-حضرت انس رضي الله عنه فرمائى چه دَحج په سفركښې حضرت ابوطلحه رضي الله عنه صرف هم په يوخاروې باندې سوروو اوخلقو (تلبيه كښې)حج اوعمرې دواړو چغې وهلې. دا واقعه دَ حج سفرسره متعلق ده خوجهادهم دَحج په شان عبادت دې په دې وجه دا روايت دَ جهاد په ابواب كښې ذكركړې شو

**فقه الحديث**:- ددې حديث شريف نه يو څو فوائد مستنبط كيږى

① په حج او جهاد كښې يوبل سره تعاون كول پكاردى ② ارداف سنت دې اؤ سلف صالحين طريقه ده دې نه دَعاجزئي اظهاركيږى.

**ترجمة الباب سره مطابقت**:-دَمذكوره حديث ترجمة الباب سره مطابقت كنت رديف أبي طلحة كښې دې. اودَ جهاد سفرئى دَ حج په سفرباندې قياس كړې دې (۵)

## باب-۱۲۵ الردف على الحمار

**دَ ترجمة الباب مقصد**:- خردَ اس په مقابله كښې يو وړوكې شان څناور دې په دې وجه شك كيدې شو چه په دې باندې به دَ دوو كسانو كيناستل جائزنه وى نو امام بخارى رحمه الله اوخودل چه په دې كښې هيڅ حرج نشته

باقى دا شرط خو په هرڅناوركښې دې چه هغه دَ سور بوج اوچتولې شى كنى څناورته بې ځايه

---

(۱) .مر تخريج فى كتاب تقصير الصلوة باب يقصر إذا اخرج من موضعه: ۱۰۸۹.

(۲) كشف البارى:۲/۱۸۹.

(۳) كشف البارى:۲/۲۶.

(۴) كشف البارى:۲/۴.

(۵) عمدة القارى:۱۴/۲۳۹.

تکلیف ورکول جائزنه دی چه د څومره سورلو بوج دغه ځناور اوچتولې شی په هغې باندې هم هغه هومره بوج اچول پکار دی که اوښ وی که اس وی او که بل ځناور (۱)

احدیث ۲۸۲۵ (۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا أَبُو صَفْوَانَ عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - رَكِبَ عَلَى حِمَارٍ، عَلَى إِكَافٍ عَلَيْهِ قَطِيفَةٌ، وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ وَرَاءَهُ. [۴۲۹۰، ۳۵۳۹، ۵۶۱۹، ۵۸۵۴، ۵۸۹۹]

## رجال الحديث

(۱) **قتیبه**: - دا قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دې کتاب الایمان کښې د دوی تذکره تیره شوې ده (۳)

(۲) **ابوصفوان** - د دوی نوم عبدالله بن سعید رحمه الله دې کتاب الاذان کښې د دوی حالات تیر شوی دی (۴)

(۳) **یونس بن یزید**: - دا ابوالنجار ایلی رحمه الله دې بدء الوحی کښې تذکره راغلې ده (۵)

(۴) **ابن شهاب** - دا ابوبکر محمد بن سلم ابن شهاب زهری رحمه الله دې د دوی حالات بدء الوحی کښې تیر شوی دی (۶)

**تحقیق کلمات حدیث** - أكاف په کسره د همزه او کاف بالواو هم مستعمل دې د دې جمع أكُف او آکفة ده. د خرلمسی ته وئیلې شی

قطیفة: د دې جمع قطائف ده مالوچی څادرته وائی یعنی نبی کریم ﷺ په خرباندې سورو و او په لمسی او کته باندې څادر خور شوې وو او حضرت اسامه رضی الله عنه حضور پاک پسې شاته ناست وو

**فقه الحدیث**: - د دې حدیث نه د نبی کریم ﷺ ډیر متواضع کیدل ثابتیږی رسول الله ﷺ به د خرغوندې څاروی باندې هم سورلی کوله او خپل ځان پسې به نی شاته څوک کینولو کښې هم شرم نه محسوس کولو (۷)

---

(۱) لامع الدراری: ۲۶۵/۷ وعمدة القاری: ۲۳۹/۱۴.

(۲) الحديث أخرجه البخاری فی کتاب التفسير باب ولتسمعن من الذين أوتوا الكتاب رقم: ۴۵۶۶ وكتاب المرضى باب عيادة المريض راكبا وماشيا وردفا على الحمار رقم: ۵۶۶۳ وكتاب اللباس باب الارتداف على الدابة: ۵۸۶۴ وكتاب الادب باب كنية المشرك رقم: ۶۲۰۷ وكتاب الاستذان باب التسليم فى مجلس فيه أخلاط من المسلمين والمشركين رقم: ۶۲۵۴ ومسلم كتاب الجهاد باب دعاء النبى صلى الله عليه وسلم وصبره على أذى المنافقين. ۴۶۵۹.

(۳) کشف الباری: ۱۸۹/۲.

(۴) باب الانفتال والانصراف عن اليمين والشمال.

(۵) کشف الباری: ۴۶۳/۱..

(۶) کشف الباری: ۳۳۰/۱.

(۷) شرح ابن بطال: ۱۴۸/۵.

علامه طبری رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ به دخپل لوئی شان او عظمت باوجود خپل امت ته د تعلیم ورکولو دپاره دا هرخه کول دي دپاره چه خلق دخرسورلي معیوب اونه گڼري اوخپل خان پسې شاته څوك سورول د ذلت سبب اونه گڼري لکه چه د کبرژنو خلقو طریقه اوعادت وی (۱)

بل دا چه حضرت اسامه بن زید رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ د محبت اوتعلق اندازه هم د دې واقعه نه دوړاندینی روایت نه ښه لګولې شی (۲)

دلته د روایت صرف هغه حصه ذکرکړې شوه دکومې چه ترجمة الباب سره تعلق دې تفصیلی واقعه وړاندې کتاب التفسیر کښې راروانه ده (۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - دحدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم رکب علی حمار.....وأردف أسامة وراء نه واضح دې.

احدیث ۲۸۲۶] (۴) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ يُونُسُ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَقْبَلَ يَوْمَ الْفَتْحِ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ عَلَى رَاحِلَتِهِ، مُرْدِفًا أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَمَعَهُ بِلاَلٌ وَمَعَهُ عُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ مِنَ الْحَجَبَةِ، حَتَّى أَنَاخَ فِي الْمَسْجِدِ، فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْتِيَ بِمِفْتَاحِ الْبَيْتِ، فَفَتَحَ وَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَمَعَهُ أُسَامَةُ وَبِلاَلٌ وَعُثْمَانُ، فَمَكَثَ فِيهَا نَهَارًا طَوِيلاً ثُمَّ خَرَجَ، فَاسْتَبَقَ النَّاسُ، وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ أَوَّلَ مَنْ دَخَلَ، فَوَجَدَ بِلاَلاً وَرَاءَ الْبَابِ قَائِمًا، فَسَأَلَهُ أَيْنَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَأَشَارَ لَهُ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِي صَلَّى فِيهِ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَنَسِيتُ أَنْ أَسْأَلَهُ كَمْ صَلَّى مِنْ سَجْدَةٍ. [ر: ۳۸۸]

## رجال الحدیث

① **يحيى بن بكير** :- د دوی کنیت ابوزکریا دې. ② **ليث** :- دا ابوالحارث لیث بن سعد فهمی رحمه الله دې. د دې دواړو حالات بدء الوحی کښې تیرشوی دی. (۵)

③ **يونس** :- دا یونس بن یزید ایلی رحمه الله دې. د دوی حالات بدء الوحی کښې تیرشوی دی (۶)

④ **نافع** :- دا ابوسهیل نافع بن مالك اصبحی رحمه الله دې د دوی حالات تیرشوی دی (۷)

⑤ **عبدالله** - دا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې کتاب الایمان کښې نی تذکره تیره شوې ده. (۸)

---

(۱) شرح ابن بطال:۱٤۸/۵.

(۲) عمدة القاری:۲٤۰/۱٤.

(۳) کشف الباری کتاب التفسیر ص: ۱۲۶.

(۴) قدمر تخریجه فی کتاب الصلوة باب قوله تعالی ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ رقم: ۳۹۷.

(۵) کشف الباری:۳۲۳/۱ – ۳۲٤.

(۶) کشف الباری:٤۶۳/۱.

(۷) کشف الباری:۲۷۱/۲.

(۸) کشف الباری:۶۳۷/۱.

**ترجمة الباب سره مطابقت**: دلته دمطابقت په سلسله کښي يو اشکال پيدا کيږي چه باب خو ردف علي الحمار قايم کړي او په مذکوره حديث کښي د نبی کريم ﷺ په اوښ باندي سوريدو ذکرکړي او دا ښکاره خبره ده چه نبی کريم ﷺ د فتح مکه په ورځ په خر باندي سوري نه ده کړي [1] علامه عيني رحمه الله فرمائي رتداف خو په دواړو صورتونو کښي هم يو شان دي و په خناور کښي فرق دي. په دي سره د حديث شريف د ترجمة الباب په انطباق باندي هيڅ اثر نه پريوځي [2]

**الحجبة** دا د حاجب جمع ده هغه دي معنى ده دربان څوکيدار. دلته ددي نه مراد د بيت شريف چابياني ساتونکي دي

**قوله: قال عبدالله: فنسيت أن أساله کم صلى من سجدة**. دلته خو حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دا فرمائي چه هغه دا خبره هيره کړي ده چه حضور پاک ﷺ څو رکعته کړي وو. خو د کتاب الصلوة والا روايت [3] کښي تصريح موجود ده چه نبی کريم ﷺ په خانه کعبه کښي دننه دوه رکعته کړي نو په دي دواړو روايتونو کښي په ظاهر تعارض ښکاري؟

ددي اشکالاتو جوابونه کتاب المغازى کښي مونږ په تفصيل سره بيان کړي دي [4] دلته د هغي خلاصه بيانولې شي. ① يو جواب خو دا وکړې شو چه صلى رکعتين والا روايت و هم دي خو دا جواب ضعيف دي. ② حضرت ابن عمر رضي الله عنهما صراحتاً ددي خبري پښتنه نه وه کړي بلکه حضرت بلال رضي الله عنه اشارة خودلې وه چه دوه رکعته ئې کړي. لکه چه ددي روايت د سياق نه معلوميږي کوم چه په کتاب الصلوة کښي ذکر دي. ③ صلى رکعتين په اقل متيقن باندي محمول دي. يعني په يقيني توګه باندي کم نه کم مونځ هم دوه رکعته وي. والله اعلم وعلمه اتم واحکم

## باب-١٢۶ من أخذ بالرکاب ونحوه

**د ترجمة الباب مقصد**: دلته امام بخاري رحمه الله دا خودل غواړي چه د سور رکاب نيول او په سوريدو کښي امداد کول دا يو نيك او د فضيلت علم دي خاص کر په هغه وخت چه سوريدونکې د جهاد د پاره خپه په رکاب کښي وي نو ددي په فضيلت کښي نور هم زياتوالي کيږي [5]

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما يو ځل د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه رکاب اونيولو نو هغه اووئيل اې د نبي د تره ځويه داسي مه کوه. ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل مونږ ته د خپلو علماؤ سره هم دا دي سلوك کولو حکم راکړې شوې دي. دي اوريدو سره حضرت زيد رضي الله عنه د ابن عباس رضي الله عنهما لاس

---

[1] ) فتح البارى: ١٣٢/٦.

[2] ) عمدة القارى: ٢٤٠/١٤.

[3] ) باب قوله تعالى ﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾

[4] ) کشف البارى کتاب المغازى ص:٥١٥.

[5] ) شرح ابن بطال:٤٨/٥ وعمدة القارى: ٢٤٠/١٤.

اونيولو او بنكل نى كړو نو هغه اوونيل داسې مه كوه نو حضرت زيد رضي الله عنه اوونيل مونږ ته د آل رسول ﷺ سره د داسې مينې كولو حكم راكړې شوې دې [1]
او داخبره هم په ذهن كښې ساتل پكاردى چه په دې كښې د ركاب نيونكى تذليل كيږى نه د سوريدونكى دپاره دا د څه فخرخبره ده په سفركښې هم داسې كيږى او ددې ضرورت راځى چه څوك راكوز كړې شى او يا سوركړې شى

احديث ٢٨٢٧[2] حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « كُلُّ سُلاَمَى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيهِ الشَّمْسُ ، يَعْدِلُ بَيْنَ الاِثْنَيْنِ صَدَقَةٌ ، وَيُعِينُ الرَّجُلَ عَلَى دَابَّتِهِ، فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا، أَوْيَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ، وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ، وَكُلُّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلاَةِ صَدَقَةٌ، وَيُمِيطُ الأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ ».[ر: ٢٥٦٠]

## رجال الحديث

①**اسحاق**:- دااسحاق بلانسبت ذكرشوې دې او باب فضل من حمل متاع صاحبه فى السفر[3] كښې دا روايت دَاسحاق بن نصر او كتاب الصلح[4] كښې اسحق بن منصور نه مروى دې او س دلته سوال داپيداكيږى چه دلته دَابن نصر اوابن منصورنه كوم يوراوى مراددې اودا دواړه هم دَعبدلرزاق نه روايت كوى.
حافظ ابن حجر او علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا ابويعقوب اسحاق بن منصور بن بهرام كوسج مروزى رحمه الله دې. ځكه چه دَ ابوذر په نسخه كښې هم اسحاق بن منصورراغلي دې او دويمه خبره داده چه كتاب الصلح والاروايت(كوم چه دَ ابن منصورنه مروى دې) اودَ روايت باب الفاظ بالكل يوشان دى. خودَابن نصردَ روايت سياق څه قدرې مختلف دې كوم چه په كتاب الجهاد كښې تيرشوې دې.[5] دَ اسحاق بن منصور تفصيلى حالات كتاب الايمان كښې راغلى دى. [6]
② **عبدالرزاق**:- داابوبكرعبدالرزاق صنعانى رحمه الله دې دَدوى حالات بدءالوحى لاندې تيرشوى دى. [7]

[1] ) شرح ابن بطال:٤٨/٥ وعمدة القارى:٢٤٠/١٤.
[2] ) مر تخريجه فى كتاب الصلح باب فضل الاصلاح بين الناس والعدل بينهم:٢٧٠٧.
[3] ) كتاب الجهاد رقم الحديث : ٢٨٩١.
[4] ) انظرحاشية الثالثة.
[5] ) فتح البارى:٣٠٩/٥و ١٣٢/٦، وعمدة القارى:٢٨٦/١٣، ١٤١/١٤.
[6] ) كشف البارى:٤٢٠/٢ - ٤٢١.
[7] ) كشف البارى: ٤٦٥/١.

④ **معمر** دا ابوعروه معمر بن راشد بصری رحمه الله دي بدء الوحی کښې د دوی تذکره تیره شوې ده (۱)

④ **همام** دا ابوعقبه همام بن منبه رحمه الله دي د دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی

⑤ **ابوهریره** - داحضرت ابوهریره رضی الله عنه دي د دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی (۲)

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په دې روایت کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي د انسان د بدن په هریو جوړ باندې نمر راختلو سره یو صدقه واجب کیږی په دوو کسانو کښې انصاف کول صدقه ده. یوسړی له په سوریدو کښې امداد کول صدیقه ده د هغه په سورلئی باندې د هغه سامان وغیره بار کول صدقه ده چاسره ښه خبره کول صدقه ده او هرهغه قدم چه د مانځه د پاره اوچت شي صدقه ده اود لارې نه تکلیف ورکونکې څیز اخوا کول صدقه ده

**د سلامی معنی** - د دې مفرد سلامیة دې بعض حضرات وائی چه داجنس دې یعنی د دې واحدجمع برابردې اود دې جمع سلامیات دې په ړونکوهډوکوکښې هرجوړوالا هډوکې لکه د ګوتوهډوکی بیاد دې اطلاق په هریوهډوکی او هډوکی په جوړباندې کیدلو

علامه ابوعبید رحمه الله فرمائی چه سلامی هغه هډوکی ته وائی چه د اوښ د نوکې په غاړه باندې وی (۳) بهرحال حاصل دادې چه د انسان په هرهډوکی باندې روزانه یو صدقه لازم ده د الله تعالی ټول نعمتونه داسې دی چه د هغې شکراداکول د انسان د وس کارنه دې خودهډوکو په خاص توګه د ذکرکولووجه داده چه د انسان حرکت او سکون د خوزیدو راخوزیدو مدار اکثرهم په دغه هډوکودې (۴)

په صحیح مسلم کښې دی سلامی د انسانی بدن جوړونوته وائی د کوم شمیرچه درې سوه شپیته جوړیږی (۵) امام قرطبی رحمه الله فرمائی د دې حدیث د ظاهرنه معلومیږی چه دا صدقه اداکول واجب دی خود الله تعالی شان کریمی اوګوره په معمولی معمولی مستحب اعمالو سره هم دا ذمه واری اداکیږی (۶)

علیه صدقة - چونکه سلامی مؤنث دې په دې وجه اعتراض کیږی چه علیه په ځائی علیها ذکرکیدل پکاردی د صاحب الفیه ابن مالک رحمه الله وینا ده کل چه کله مضاف وی د یونکره طرف ته نود مضاف الیه اعتبارکیږی لکه آیت ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ﴾ کښې نفس مضاف الیه اعتباردې نود دې د پاره **ذائقة** خبرمؤنث راوړلې شوځکه چه **نفس** هم مؤنث دې خودلته داسې نه دی بلکه دلته د مضاف **کل** اعتبارکړې شوې دې اود دې طرف ته علیه ضمیرمذکرراجع دې

---

(۱) کشف الباری:۲/٤٢٨.
(۲) کشف الباری:۱/٦٥٩.
(۳) النهاية: ۲/۹٦.
(۴) فتح الباری:۲/۱۳٦.
(۵) صحیح مسلم:۱/۲۳۵کتاب الزکوة باب بیان أن اسم الصدقة یقع علی کل نوع من المعروف.
(۶) عمدة القاری:۱۳/۲۸۷.

قاعده خو هم دغه ده کومه چه ابن مالك رحمه الله ذکر کړې ده او دې تقاضا هم دغه ده چه عليها وى ځکه چه سلامى مؤنث دې يا سلامى په ضمن کښې موجود معنى عظم يا مفصل طرف ته ضمير مذکر راجع دې (۱)

**قوله يعدل بين الاثنين صدقة** - دلته أن مقدر دې بيا دا تاويل مصدر مبتدا جوړيږى ومثله وتسمع بالمعيدى خيرمن أن تراه (۲)

**قوله كل خطوة يخطوها إلى الصلوة** - يعنى هرقدم کوم چه جمات او مانځه دپاره اوچتيږى هغه صدقه ده. په دې کښې ددې خبرې ترغيب ورکولې شى چه څومره قدمونه زيات وى هم هغه هومره به اجرزيات وى بل په دې کښې ددې خبرې تنبيه هم ده چه جمات طرف ته تللوسره منډې يا تادى کول ښه خبره نه ده بلکه وقار او تسلى په خيال کښې ساتل پکار دى (۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - دحديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت ويعين الرجل على دابته فيحمل عليها نه مستنبط دې ځکه چه د سوريدونکى اعانت اوامداد عموماً په رکاب نيولوسره او سامان وغيره بارکولوسره کيږى. (۴)

## باب-۱۲۷ كراهية السفر بالمصاحب إلى إرض العدو

**د نسخو اختلاف** - په ترجمة الباب کښې لفظ کراهية اضافه صرف د مستملى په نسخه کښې ده د کوم د وجې نه چه ابن بطال رحمه الله فرمائى وكذلك يروى دلته غلط دې د دې دپاره دې نه وراندې څه څيزپه ماقبل کښې مذکورنه دې دکوم طرف ته چه د کذلك سره اشاره اوکړې شى ترتيب داکيدل پکاروو چه اول روايت مالك رحمه الله ئې ذکرکولو بيا د وكذلك سره دې طرف ته اشاره کوله. (۵)

ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله د هغوى داګرفت غلط ګرځولوسره وئيلى دى چه دا باب السفر... نه دې بلکه باب كراهية السفر... دې. لکه څنګه چه د مستملى په نسخه کښې دې د وكذلك.... مشار اليه هغه كراهية السفر دې کوم چه د محمدبن بسر په روايت کښې دې. کره رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم. (۶)

**د ترجمة الباب مقصد** - امام بخارى رحمه الله دلته خودل غوارى چه د دښمن ملك ته تلوسره قرآن کريم خان سره اوړل مکروه دى که چرې حفاظت اونه کړې شى او که چرې حفاظت او تسلى وى

---

۱) فتح البارى: ۱۳۲/۱.
۲) عمدة القارى: ۲٤۱/۱٤.
۳) عمدة القارى: ۲٤۱/۱٤.
۴) شرح ابن بطال: ۱٤۸/۵.
۵) شرح ابن بطال: ۱٤۹/۵.
۶) فتح البارى: ۱۳۳/٦.

نو جائزدى. (۱)

**دَ دښمن زمکې اوملک ته مصحف اوړلوحکم**- په دې مسئله کښې دَعلماء کرامو درې اقوال دى ① مطلقًا ناجائز دى دا دَامام مالك رحمه الله مذهب دې ② مطلقًا جائزدى علامه ابن المنذروائى چه دادَ امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې (۲)③ چه دَ قرآن کريم دَاهانت خطره وى نوبيا خوناجائزدى اوكه داسې څه خطره نه وى نو څه حرج نشته قرآن کريم ځان سره اوړلې شى دا دَامام شافعى امام احمد اكثراحنافو اوبعض مالكيه مذهب دې څكه چه ددې حكم مدار په دې علت باندې دې مخالفة أن يناله العدو

نوچرته چه قرآن کريم ته دَ دښمن دَ لاس لګيدو يادَدې دَ بې عزتئى انديښنه وى نوهلته مصاحف ځان سره اوړل نه دى پكار لكه چه چهاپه مار لښكروى چه اكثريه كم شميركښې وى هلته داخطره ډيره موجود وى. امام نووى رحمه الله فرمائى هذا هوالصحيح وبه قال أبوحنيفة والبخارى وآخرون...(۳)

علامه شامى رحمه الله فرمائى چه هرهغه واجب احترام څيز دَ كوم سپكاوې اوبې ادبى كول چه حرام وى داسې څيزونه دكافرانو ملكونوته اوړل منع دى لكه قرآن فقه اوحديث كتابونه وغيره. حاصل دا چه امام مالك رحمه الله سفربالمصحف مطلقًا ناجائزګرځوى څكه چه په حديث كښې هيڅ داسې قيدنشته چه لښكر غټ وى كه وړوكې بهرحال په غفلت كښې دَمصحف دَ دښمن په لاس دَلګيدو انديښنه خووى. (۴) او جمهور فقهاء دَدې جواز قائل دى چه كله لښكر غټ وى مامون وى څكه چه مدار دَ دښمن په لاس دَ لګيدو ويره ده اوچه كله ويره نه وى نوجائزدې. (۵) دې نه معلومه شوه چه اختلاف دَ لوئى لښكر او وړو چهاپه مار ټولګودَپاره په اتفاق دَائمه مصحف ځان سره اوړل جائزنه دى. (۶)

**دَمالكيه استدلال**- مالكيه دَحديث باب نه استدلال كوى دكوم الفاظ چه دى: أن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم نهى أن يسافر بالقرآن إلى أرض العدو په دې روايت كښې مطلقًا ممانعت وارددې كه لښكرغټ وى اوكه وړوكې. (۷)

**دَ جمهورواستدلال**:- جمهورڅوك چه دَ تفصيل قائل دى هغوى دَ صحيح مسلم دَ روايت نه استدلال كوى دكوم په يو طريق كښې مخافة أن يناله العدو او په دويم طريق كښې فانى لا آمن أن

---

۱) عمدة القارى: ۲٤۱/۱٤ لامع الدرارى: ۲٦٥/۷.

۲) شرح النووى على صحيح مسلم: ۱۳۲/۲. طبع قديمى كتب خانه.

۳) پورتنئ حواله. نور اوګورئى أوجزالمسالک: ۲۱۸/۸، وإعلاء السنن: ۲٦/۱۲.

۴) المتقى نقلا عن أوجزالمسالک: ۲۱۸/۸.

۵) راجع للتفصيل أوجزالمسالک: ۲۱۸/۸.

۶) التمهيد لابن عبدالبر ۲٥٤/۱٥.

۷) التمهيد لابن عبدالبر ۲٥٤/۱٥.

ينالہ العدو اضافه ده اوښکاره خبره ده چه ويره په لويولښکرونوکښې نه وى بلکه وړو ټولګوکښې وى [1] بل امام بخارى رحمه الله چه کوم متابعت ذکرکړې دې دهغې نه هم د جمهورو تائيدکيږى خکه چه د قرآن تعليم دې خبرې ته مستلزم دې چه هغوى به خان سره ليکلې شوې قرآن اوړلو خکه چه ټول صحابه کرام خود قرآن کريم حافظان نه وو [2]

علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه دا نهى تحريمى نه ده بلکه نهى استحباب ده يعنى د قرآن کريم اکرام ددې خبرې تقاضاکوى چه ددې دداسې خايونو او خلقو نه حفاظت اوکړې شى چرته چه دتوهين او بې ادبۍ خطره وى خکه چه پخپله نبى کريم ﷺ قيصرروم ته کوم خط ليکلې وو په هغې کښې پوره يوآيت موجود وو اونبى کريم ﷺ به پوهيدلو چه داکافران ناپاک دى او هغوى به دالولى او دې ته به لاس لګوى نومعلومه شوه چه دا نهى مطلق نه ده اونه دمحفوظ اومامون لښکروسره ددې څه تعلق دې [3] علامه نووى رحمه الله په دې خبره باندې د فقهاؤ اجماع نقل کړې ده چه کافرانوته ددعوت دمقصددپاره داسې خطونه ليکلې شى په کوم کښې چه يويا د يونه زيات آياتونه درج وى اود حضرت مصطفى سرورکائنات ﷺ هرقل او قيصرروم ته خط ليکل ددې دليل دې [4]

**د مخافة أن يناله العدو اضافه ثابته ده که نه؟** - مونږ اول ذکرکړې دې چه مداراختلاف هغه دامذکوره الصدر جمله ده اوس دلته دمالکيه دعوى داده چه دا اضافه ثابته نه ده بلکه دامدرج دې علامه ابن بطال مالکى رحمه الله فرمائى **ولم تصح هذه الزيادة عند مالك ولا عند البخارى إنما هى من قول مالك.** [5] دمالکيه دا دعوى صحيح نه ده خکه چه صحيح مسلم [6] سنن نسائى [7] اوسنن ابن ماجه [8] دارروايت د لث عن نافع په طريق سره نقل کړې دې په هغې کښې دا اضافه موجودده بل امام مسلم [9] د ايوب په طريق سره هم دا روايت نقل کړې دې داد دې خبرې دليل دې چه دارروايت مرفوع دې مدرج نه دې او دې نه د جمهورو استدلال صحيح دې

**يواشکال اودهغې جواب**:-اوس دلته دا يواشکال پيداکيږى چه پخپله دامام مالك رحمه الله نه ابن وهب رحمه الله کوم روايت نقل کړې دې په هغې کښې خو خشية أن يناله العدو د حديث په توګه ذکرکړې دې لکه چه ابن عبدالبر رحمه الله په التمهيد کښې دا ذکرکړې دې [10] خو په موطاکښې دا

---

[1] ) الصحيح مسلم:٢/١٣١ قديمى.
[2] ) شرح ابن بطال:٥/١٥٠.
[3] ) شرح ابن بطال:٥/١٥٠.
[4] ) شرح النووى على صحيح مسلم:٢/١٣٢ قديمى.
[5] ) شرح ابن بطال:٥/١٥١.
[6] ) صحيح مسلم:٢/١٣١ کتاب الامارة باب النهى أن يسافربالمصحف إلى أرض الكفارإذاخيف وقوعه باديهم
[7] ) سنن النسائى الكبرى: ٥/٢٤٣.
[8] ) كتاب الجهادباب النهى أن يسافر بالقرآن إلى أرض العدو رقم:٢٧٨٩ – ٢٧٨٠.
[9] ) كتاب الامارة باب النهى أن يسافر بالمصحف إلى أرض الكفار إذا خيف وقوعه بايديهم.
[10] ) التمهيدلابن عبدالبر: ١٥/٢٥٣.

اضافه دَحدیث په توګه نه ده ذکر کړې بلکه دَامام مالك رحمه الله قول جوړلو سره نې ذکر کړې دې[1] دغه شان په ابوداؤد کښې هم دي [2]

حافظ ابن حجر رحمه الله دَدې جواب ورکولو سره فرمائی **لعل مالکا کان یجزم به ثم صار یشك فی رفعه فجعله من تفسیرنفسه** [3] یعنی اول خو به امام صاحب شاید دا مرفوع خیال کولو رومستو دَهغوی په مرفوع کیدو باندې شك پیداشو نوهغه دا اضافه خپل قول جوړ کړو پاتې شوه داخبره چه دا دَابن وهب رحمه الله تفرد دې نودَدې تفصیل مونږ پورته بیان کړې دې امام مسلم امام نسائی او امام ابن ماجه رحمهم الله دَعن نافع په طریق سره دا اضافه مرفوعاً نقل کړې ده بل سنن ابن ماجه کښې عبدالرحمن بن مهدی عن مالك په طریق هم دا اضافه مرفوعاً نقل کړې ده [4]
دَمحمدبن بشر کوم روایت طرف ته چه دلته اشاره کړې شوې ده په هغې کښې هم دا اضافه ثابته ده مسنداسحاق بن راهویه کښې دا روایت موصولاً ذکر کړې شوې دې دَکوم چه دا دی **کره رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم أن یسافر بالقرآن إلی أرض العدو، مخافة أن یناله العدو** [5] **قوله: وکذلك یروی عن محمدبن بشر....** [6] **قوله: وتابعه ابن اسحاق عن نافع عن ابن عمر......** [7]

**دَمتابعت تخریج**:- مسنداحمد کښې دَدې روایت تخریج یزید بن هارون عن ابن اسحاق په طریق سره کړې دې [8]

**دَدې متابعت دَذکرکولومقصد**:- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دِدې متابعت ذکر کولو مقصد دَمحمد بن بشیر په روایت کښې وارد **کراهیت سفربالمصحف** تائید کول دی واضحه دې وی چه دا متابعت لفظی نه دې بلکه معنوی متابعت دې ځکه چه دَابن اسحاق په روایت کښې کره لفظ نه دې راغلې بلکه **نهی أن یسافربالمصحف إلی أرض العدو** راغلې دې [9] بل څه څیزنه نهی ممانعت ، کراهت تقاضاکوی ځکه چه نهی دکراهت تنزیهی یا تحریمی نه خالی نه وی [10]

علامه ابن بطال رحمه الله دَ متابعت مقصد داسې بیان کړې دې چه امام صاحب په اصل کښې داخودل غواړی چه مخافة أن یناله العدو چه کومه اضافه بعض حضراتو کړې ده هغه صحیح

---

[1] ) الموطا للامام مالک: ۲/٤٤٦ کتاب الجهاد باب النهی عن أن یسفار بالقرآن إلی أرض العدو بیروت.
[2] ) سنن أبی داؤد کتاب الجهاد باب فی المصحف یسافر به إلی أرض العدو: ۲٦١٠.
[3] ) فتح الباری: ٦/١٣٤.
[4] ) ابن ماجه کتاب الجهاد بابالنهی أن یسافر بالقرآن إلی أرض العدو: ٢٨٧٩.
[5] ) فتح الباری: ٦/١٣٣.
[6] ) انظر لروایة فی المصدر السابق وتغلیق التعلیق: ٣/٤٥٣.
[7] ) انظر لروایة فی المصدر السابق وتغلیق التعلیق: ٣/٤٥٣.
[8] ) المسندللامام أحمد: ٢/٧٦.
[9] ) المسندللاحمد: ٢/٧٦..
[10] ) فتح الباری: ٦/١٣٣.

نه ده بلکه چه د محمدابن اسحاق په روايت کښې دا اضافه موجودنه ده (١) د دې مسئلې تفصيل ماقبل کښې مونږ بيان کړې دې

حصل داچه حافظ رحمه الله د متابعت مقصد کراهة السفر تائيد کړنوى اوداخبره واضحه ده ځکه چه د محمد بن بشيرپه روايت کښې کره... راغلې اود محمدبن اسحاق په روايت کښې نهى... او په نهى کښې خوکراهت وى. اوابن بطال رحمه الله د دې متابعت مقصد د دې اضافه عدم صحت تائيدکرخولې دې خودمحمدبن بشيرپه روايت کښې دااضافه موجود ده او د محمد ابن اسحاق په روايت کښې دا اضافه موجودنه ده.

وقد سافر النبى صلى الله تعالى عليه وسلم وأصحابه فى أرض العدو وهم يعلمون القرآن

علامه مهلب رحمه الله فرمائى د دې عبارت مقصد په دې باندې خبردارې کول دى چه نهى عمومى نه ده بلکه د دې ممانعت تعلق د هغه وړو لښکرو اوټولګوسره دې د کوموحفاظت چه غيريقينى وى اوکه لښکرلوئى وى نو په هغې کښې قرآن پاك ځان سره اوړلوکښې څه حرج نشته ځکه چه صحابه کرام رضى الله عنهم به د دښمن په ملکونوکښې هم د قرآن په زده کړه او خودلوکښې مشغول وو اوښکاره خبره ده چه ټول خو به حافظ قرآن نه وو. د دې نه د امام بخارى رحمه الله ميلان د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله قول طرف ته معلوميږى. (٢)

حافظ رحمه الله فرمائى چه د دې عبارت مقصددادې چه دانهى د قرآن کريم متعلق ده حامل قرآن سره نه ده (٣) چنانچه قراء سبعين نبى کريم صلى الله عليه وسلم د جهاد د پاره ليګلې وو اوهغوى د بئر معونه په مقام باندې د شهادت جام نوش کړو. نور هم دغه شان ډيرواقعات دى په کوم کښې چه د قرآن پاك د حافظان جهادته تلل ثابت دى.

[حديث ٢٨٢٨] (٤) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - نَهَى أَنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْآنِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن مسلمه**: داابوعبدالرحمن عبدالله بن مسلمه بصرى رحمه الله دې. د دوى حالات کتاب الايمان کښې تيرشوى دى. (٥)

(١) شرح ابن بطال: ٥/١٤٩.

(٢) شرح ابن بطال: ٥/١٥٠.

(٣) فتح البارى: ٦/١٣٣.

(٤) الحديث أخرجه فى كتاب الامارة باب النهى لمن يسافر بالمصحف إلى أرض الكفار إذا خيف وقوعه بايديهم رقم: ٤٠٤١ – ٢٩ وأبوداؤد فى كتاب الجهاد باب فى المصحف يسافر به إلى أرض العدو: ٢٦١٠ وابن ماجة فى كتاب الجهاد باب النهى أن يسافر بالقرآن إلى أرض العدو: ٢٨٨٠- ٧٩.

(٥) كشف البارى: ٧/٧٠.

① **مالک** -دامشهورامام ابوعبدالله بن انس مدنى رحمه الله دې ددوى تفصيلى تذكره تيره شوې ده (۱)

② **نافع** - دا ابوسهيل نافع بن مالک اصبحى رحمه الله دې ددوى حالات هم كتاب الايمان كښې تيرشوى دى (۲)

③ **عبدالله بن عمر** -دا صحابى رسول حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې ددوى حالات شنه تيرشوى دى (۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - دحديث مبارک ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې ځکه چه دلته دقرآن نه مصحف مراد دې نه چه نفس قرآن كوم چه دحافظانو په سينو كښې وى (۴) والله تعالى اعلم وعلمه اتم واحكم

## باب-۱۲۸ التكبير عند الحرب

**د ترجمة الباب مقصد**:- دلته داخودل غواړى چه په جنګ كښې تكبيرونيل مشروع او جائزدى.(۵) دحضرت على رضي الله عنه نه نقل دى چه كله به ئې توره وهله نوتكبيربه ئې ونيلو په ليلة الهرير كښې هغوى څلورنيم سوه تكبيرونه وئيلى د ليلة الهرير نه مراد د جنګ صفين شپه ده دمسلم په يوروايت كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم پيشنګوئى فرمائيلې ده چه تاسوخلق به بنارته حتى دهغې يوه حصه به اوچه او يوه حصه په اوبو كښې ده. هلته لا اله الا الله. الله اكبر وائې نتيجه به ددې يوه حصه پريوځى (۶) دې نه مراد قسطنطنيه ده (۷) دغه شان دابن ماجه په روايت كښې راغلى دى القسطنطنية بالتسبيح والتكبير (۸)

[حديث ۲۸۲۹] (۹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسٍ -رضى الله عنه- قَالَ صَبَّحَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - خَيْبَرَ وَقَدْ خَرَجُوا بِالْمَسَاحِى عَلَى أَعْنَاقِهِمْ، فَلَمَّا رَأَوْهُ قَالُوا هَذَا مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ، مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ. فَلَجَئُوا إِلَى الْحِصْنِ، فَرَفَعَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَدَيْهِ وَقَالَ «اللَّهُ أَكْبَرُ، خَرِبَتْ خَيْبَرُ، إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ». وَأَصَبْنَا حُمُرًا فَطَبَخْنَاهَا، فَنَادَى مُنَادِى النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - إِنَّ اللَّهَ

---

(۱) كشف البارى:۲/۸۰.
(۲) كشف البارى:۲/۲۷۱.
(۳) كشف البارى:۱/۶۳۷.
(۴) عمدة القارى:۱/۷٤۲.
(۵) عمدة القارى:۱٤/۲٤۳.
(۶) صحيح مسلم :۲/۳۹۶
(۷) شرح النووى على مسلم: ۲/۳۹۶.كتاب الفتن باب فتح بلدة جانبها فى البر وجانبها فى لبحر رقم: ۷۳۳۳.
(۸) سنن ابن ماجة كتاب الفتن باب الملاحم : ٤۰۹٤.
(۹) امر تخريجه فى كتاب الصلوة باب مايذكر فى الفخذ رقم:۳۸۱.

وَرَسُولَهُ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ، فَأُكْفِئَتِ الْقُدُورُ بِمَا فِيهَا . تَابَعَهُ عَلِي عَنْ سُفْيَانَ رَفَعَ النَّبِي -صلی الله علیه وسلم- يَدَيْهِ .[ر ٣٦٤]

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن محمد** - داعبدالله بن محمد مسندی رحمہ اللہ دې دَدوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی.(۱)

② **سفیان** دا سفیان بن عیینه رحمہ اللہ دې . ددهٔ تذکره په بدء الوحی کښې شوې ده.(۲)

③ **ایوب** دا ایوب سختیانی رحمہ اللہ دې . ددهٔ تذکره په کتاب الایمان کښې تیره شوې ده.(۳)

④ **محمد** دامحمدبن سیرین رحمہ اللہ دې ددهٔ تذکره په کتاب الایمان کښې تیره شوې ده.(۴)

⑤ **انس** : دا خادم رسول حضرت انس رضی اللہ عنہ دې ، ددوی حالات هم په کتاب الایمان کښې تیر شوی دی.(۵)

دا حدیث مبارک ډیرځل په ماقبل کښې تیرشوې دې، دې سره متعلقه مباحث په متعلقه ابوابو کښې کتلې شئ ، اود خر دغوښې حکم په کتاب الصیدوالذبائح کښې راروان دې ـ

**فائده** . په جنګونو کښې تکبیر وئیل ددې امت خصوصیت دې .دې سره دالله تعالی دکبریائ اود عظمت اظهارکیږی (۶)

**دترجمة الباب سره مطابقت** : دحدیث شریف دترجمة الباب سره مطابقت دنبی کریم ﷺ په دې قول کښې دې : " الله اکبر .خربت خیبر.."(۷)

**قوله: تَابَعَهُ عَلِي عَنْ سُفْيَانَ رَفَعَ النَّبِي -صلی الله علیه وسلم- يَدَيْهِ**

یعنی علی بن المدینی رحمہ اللہ دعبدالله بن محمد مسندی متابعت کړې دې ـ دې متابعت لره امام بخاری رحمہ اللہ په کتاب المناقب کښې موصولاذکرکړې دې (۸)

**متابعت لره دذکرکولو مقصد**: رفع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم یدیه .. اضافه چونکه ددې روایت په دویم طریق کښې نشته (۹) دې وجې نه ئې ددې متابعت په ذریعه وضاحت اوکړوچې علی بن المدینی هم دا اضافه نقل کړې ده دکوم نه چې دروایت باب تائید کیږی ـ والله اعلم بالصواب

---

(۱) کشف الباری کتاب الایمان:۱/۶۵۷.
(۲) کشف الباری : (ج۱ص۲۳۸) _
(۳) کشف الباری : (ج۲ص۲۶) _
(۴) کشف الباری : (ج۲ص٤) _
(۵) کشف الباری : (ج۲ص٤) _
(۶) شرح ابن بطال (ج۵ص۱۵۱) _
(۷) عمدة القاری (ج۱٤ص۲٤۳) _
(۸) اوګورئ صحیح البخاری .کتاب المناقب .باب .رقم (۳۶٤۷) _
(۹) فیض الباری :ج۳ص٤٤۳) _

## ۱۲۹_ باب مَا يُكْرَهُ مِنْ رَفْعِ الصَّوْتِ فِي التَّكْبِيرِ.

**دترجمة الباب مقصد** امام بخاری رحمه الله دا فرمائی چې دجنګ دننه تکبیروائیل مشروع خودی لیکن ډیرې زیاتې چغې وهل اودضرورت نه زیات آواز اوچتول مکروه دی [1] ځکه چې د ډیرو چغوسره دانسان په قوت کښې کمزوری پیداکیږی ـ

دعلامه انورشاه کشمیری رحمه الله رائې دا ده چې رفع الصوت بالتکبیر دکراهت خې هغه دجهاد نه سوادې .دجهاد دننه که چرته رفع الصوت بالتکبیر اوشی نودې کښې څه خبره نشته [2]

شاه صاحب دروایت په ظاهرباندې اعتمادکړې دې لیکن دبخاری دترجمې اطلاق ئې نه دې ملحوظ ساتلې .دامام بخاری دترجمې داطلاق هم دا تقاضاکوی چې په جهاد کښې هم د ضرورت نه زیات آوازاوچتول بنه نه دهـ

(۲۸۳۰) [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى الأَشْعَرِيِّ -رضى الله عنه- قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَكُنَّا إِذَا أَشْرَفْنَا عَلَى وَادٍ هَلَّلْنَا وَكَبَّرْنَا ارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُنَا، فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «يَا أَيُّهَا النَّاسُ، ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ، فَإِنَّكُمْ لاَ تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلاَ غَائِبًا، إِنَّهُ مَعَكُمْ، إِنَّهُ سَمِيعٌ قَرِيبٌ، تَبَارَكَ اسْمُهُ وَتَعَالَى جَدُّهُ». [۳۹۶۸، ۶۰۲۱، ۶۰۴۶، ۶۲۳۶، ۶۹۵۲]

## تراجم رجال

① **محمد بن یوسف** : داابومحمدبن یوسف بیکندی رحمه الله دې .ددوی حالات تیرشوی دی [4]

**مسئله دذکربالجهر** ددې حدیث نه استدلال کولوسره بعضې علماء دجهری ذکرنه منع کوی [5] دویم طرف ته کوم حضرات چې دجهری ذکر دجوازقائل دی نوهغوی ددامې روایاتو مختلف توجیه کوی ـ

---

[1]) لامع الدراری :ج ۷ص۲۶۸)_

[2]) فیض الباری (ج ۳ص۴۴۳) _

[3]) الحدیث اخرجه البخاری فی کتاب المغازی،باب غزوة خیبر. (رقم :۴۲۰۲) وکتاب الدعاء .باب الدعاء اذاعلاعقبة (۶۳۸۴) وباب قول لاحول ولاقوة الابالله (۶۴۰۹) وکتاب القدر.باب لاحول ولاقوة الابالله (۶۶۱۰) . وکتاب التوحید .باب وکان الله سمیعا بصیرا (۸۶۷۳) .ومسلم فی کتاب الذکر،باب استحباب خفض الصوت بالذکرالا فی المواضع التی وردالشرع برفعه فیها کالتلبیة وغیرها (۶۸۶۲) . والترمذی فی کتاب الدعاء باب کون الذکرخیراعمالکم واذکاها عندملیککم ((۳۳۷۴) .وباب ماجاء فی فضل التسبیح والتکبیر والتهلیل والتحمید (۳۴۶۱) .وابوداود فی کتاب الوتر.باب فی الاستغفار (ج۲۶ص۱۵۲۷) _. وانسائی فی کتاب النعوت .باب السمیع القریب (۷۶۷۹) .وفی کتاب السیر.باب شده رفع الصوت بالتهلیل والتکبیر(۸۸۱۴). وابن ماجة فی کتاب الادب .باب ماجاء فی.. لاحول ولاقوة الابالله (۳۸۲۴)_

[4]) کشف الباری :(۳ ج۳ص۳۳۵) _

[5]) ارشادالساری :(ج۵ ص ۱۳۵) _

① په حديث كښې دچغوسورو اودشور جوړولو نه منع كړې شوې ده اوددې خبرې تائيد په خپله دحديث دالفاظونه كيږى ، اربعوا على انفسكم يعنى دځپل ځان سره دنرمې معامله اوكړئ اوظاهرده چې ذكربالجهركوم چې دمشايخوپه نيزرائج دې په هغې كښې نه چغې سورې وى اونه سختى وى [1]

حضرت مولانارشيداحمد گنگوهى رحمه الله فرمائى چې په دې حديث كښې كوم ممانعت راغلې دې ددې تعلق ذكرسره نه دې ځكه چې دذكريوقسم هم ممنوع نه دې بلكه دلته دآواز اوچتولونه ځكه منع شوې ده چې هغه دښمنانوعلاقه وه، اودشورشغرپ سره به هغوى بيدار شوى وو

بس چرته چې دجهرنه د تكليف اودايذاء امكان وى نوهلته داجهرمكروه دې كنې نه ـ نودا ممانعت دكوم امرخارج دوجې نه كيدې شى .ځكه چې د ذكرالهى يوقسم هم منهى عنه نه دې [2] اوداختلاف دا احوالو اواشخاصودوجې نه هم حكم بدليدې شى ـ [3]

دمذكورالصدر توجيهاتونه داخبره بلكل واضحه كيږى چې هغه ذكردكوم كيفت چې د (قوالى او دهمال) پشان وى چې ښه شورشغرپ اودرز غوبل اود.. وجد ..په نوم باندې تيپونه وهل وى،نوداسې اموروسره دشريعت دلرې نه هم تعلق نشته دې.جائزاومشروع خولا پريګده ـ

حضرت علامه عبدالحى لكهنوى دذكربالجهرپه مسئله كښې .. سبحة الفكر فى الجهربالذكر .. نومې كتاب مرتب كړې دې په كوم كښې چې هغه دذكربالجهرجوازد اته څلويښ روايتونونه ثابت كړې دې [4]

**دبعضې الفاظ حديث تشريح** .

**اشرفنا** : داشراف په معنى كښې دې:دپاس نه كتل يعنى چې كله مونږپه يوكندې ته راشو..

**قوله: ارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُنَا** : داجمله فعليه حال واقع كيږى. دلته قد..مقدر دې كما فى قوله تعالى) اوجاءكم حصرت صدورهم) اى قد حصرت.

**قوله : ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ** :ربع (ف) ربعا : توقف كرنا ،انتظاركرنا. وانيلې كيږى .. ربع الرجال بالمكان .. سفرختميدونه پس په يوځې كښې پړاؤ اچول ـ علامه خطابى رحمه الله فرمائى چې ددې جملې مطلب دې :شورمه كوئ آواز مه اوچتوئ ـ اودابن قرقول وينا ده چې دځپل ځان سره دنرمئ معامله كوئ اوسختى پريګدئ ـ [5]

**دترجمة الباب سره مطابقت** دحديث شريف دترجمة الباب سره مطابقت دحديث نه حاصل شده معنى نه مستنبط دې . ځكه چې جناب نبى كريم ﷺ دلته درفع صوت لره ناخوښه كړې ده

---

[1] لامع الدرارى :ج۷ص۲۶۸)ـ
[2] الكوكب الدرى :ج ٤ص ٣٤٦) ـ
[3] سباحة الفكر،ص: ١٤، فى المجلد الثالث من مجموعة رسائل العلامة اللكنوى) ـ
[4] مجموعة رسائل اللكنوى :ج۳ص ٤٩٦ـ ٤٦٥. ادارة القرآن كراچى .
[5] عمدة القارى :ج ١٤ص ٢٤٥و اعلام الحديث للخطابى(ج۲ص ١٤٢٤) ـ

## ۱۳۰_ باب التَّسْبِيحِ إِذَا هَبَطَ وَادِيًا.

**دترجمة الباب مقصد** دلته امام بخارى رحمه الله دا وائيل غواړي چې صحابه كرام (عنهم) به چې كله يوې وادى ته كوزېدل نوتسبيح به ئې لوستل دتسبيح معنى دتنزيه وى، مطلب دادې چې دښكته طرف ته كوزېږى نو داخيال ساتل پكار دى چې الله تعالى مقدس اومنزه دې. ځنګه چې نشيب لره په فرازباندې اولوړه دجوړې په مقابله كښې كمه ګڼړلې شى. كوم چې عيب دې نوښكته كوزېدوكښې داخيال كول پكاردى چې الله تبارك وتعالى دهرقسمه ښكته والى اوهرقسمه عيب نه پاک دې ـ [۱]

[۲۸۳۱] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا، وَإِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا. [۲۸۳۲]

## تراجم رجال

① **محمدبن يوسف** دا ابواحمد محمدبن يوسف بيكندى رحمه الله دې، په كتاب العلم كښې ددوى تذكره تيره شوې ده [۲]

② **سفيان** دا سفيان بن عيينه رحمه الله. په بدء الوحى، كښې ددوى تذكره تيره شوې ده [۳]

③ **حصين بن عبد الرحمن** دحصين بن عبدالرحمن رحمه الله تذكره تيره شوې ده ـ [۴]

④ **سالم بن ابى الجعد** دسالم بن ابى الجعد رحمه الله تذكره تيره شوې ده ـ [۵]

⑤ **جابربن عبدالله** دصحابى رسول حضرت جابربن عبدالله رضى الله عنه دې ددوى حالات مخكښې تيرشوى دى [۶]

**قوله: كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا، وَإِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا:** ,,چې كله به مونږ پورته ختلونومونږبه الله اكبروائيل اوچې كله به مونږ ښكته كوزيدلونومونږبه سبحان الله وائيل ـ

دلته دآداب سفر نه يوادب بيان شوې دې چې پورته ختولو په وخت ,, الله اكبر اود كوزيدلو په وخت سبحان الله وائيل پكاردى ـ

**نكته** علامه مهلب رحمه الله فرمائى چې په لوړغورونوباندې ختلوپه وخت كښې تكبير، دعظمت بارى تعالى داظهاردپاره دې چې دټولونه بلنداوبالااودټولونه ارفع اواعلى دالله رب العزت ذات دې ـ

---

[۱] شرح ابن بطال :(ج۵ص۱۵۳) _ (۲۸۳۱) اخرجه البخارى فى كتاب الاتى :باب التكبيراذاعلامشرفا والنسائى فى الكبرى فى كتاب عمل اليوم والليلة ،باب مايقول اذاانحدرمن ثنية (۱۰۳۷۵) _

[۲] كشف البارى :ج۳ص۳۸۷)_

[۳] كشف البارى :ج۳ص۳۳۸)_

[۴] اوګورئ كتاب المواقيت الصلوة باب الاذان بعد ذهاب ا لوقت

[۵] اوګورئ كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقوع (رقم :۱٤۱)

[۶] كتاب الوضوء، باب من لم يرالوضوء الامن المخرجين ،من القبل والذكروالدبر_

ور واديږيه نوره جوره کښې تسبيح دحضرت يونس علیه السلام دعمل نه مستنبط ده چې هغوی
دکب په ګېډه کښې الله تعالی تسبيح بيان کړې ده، څنګه چې دالله جل شانه قول دې (فلولا انه
كان من المسبحين ○ للبث في بطنه الى يوم يبعثون)[1] پس دتسبيح په دولت الله جل شانه هغوی ته
دکب دګېډې دتيرو نه نجات عطاء کړونوجناب نبی کريم ﷺ دحضرت يونس علیه السلام په اتباع
کښې دواديږنو دننه تسبيحات لوستلو چې الله جل شانه دوی لره ددښمن دشرنه اودغه خې
دشرنه په حفاظت سره اوساتي.[2]

**دترجمة الباب سره مطابقت** دحديث شريف دترجمة الباب سره مطابقت په .. واذا نزلنا سبحنا
..کښې دې .دنزول اودهبوط دواړومعنی دکوزيدو ده [3]

## باب ۱۳۱: التكبير إذا علا شرفًا

**دَ ترجمة الباب مقصد** - امام بخاری رحمه الله داخودل غواړي چه صحابه کرام رضي الله عنهم به دَ حج او
غزواتوپه سفرکښې په اوچت ځائی ختل نوالله اکبر الله اکبربه ئي وئيل مطلب دا چه اوچتوالی
ته دَ ختو په وخت دزمکې او آسمان هغه خالق نه دی هيرول پکار چه دَ ټولو اوچتو اولوړ والونه
اوډټولو رفعتونونه اعلی دې

دَمجاهدينودپاره ضروری دی چه دَ شورشرپه ځائی دَالله تعالی په ذکرکښې مشغول شی دَدې
طريقه داده چه دَ اوچت ځائی دَ ختوپه وخت دَالله اکبرورد په ژبه باندې کوئی او دَ راکوزيدو په
وخت سبحان الله وئيل [4]

[۲۸۳۲] [5] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ سَالِمٍ
عَنْ جَابِرٍ-رضی الله عنه-قَالَ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا، وَإِذَا تَصَوَّبْنَا سَبَّحْنَا. [ر: ۲۸۳۱]

## رجال الحديث

① **محمد بن بشار** - دامحمدبشار بن عثمان بصری رحمه الله دي. دَدوی تذکره تيره شوې ده [6]

② **ابن ابی عدی** - دامحمدبن ابراهيم بن ابی عدی السلمی التيمی ابوعمرو بصری رحمه الله دي
کتاب الغسل کښې دَدوی تذکره تيره شوې ده. [7]

③ **حصين** - داحصين بن عمران رحمه الله دي ددوی تذکره شاته تيره شوې ده [8]

---

[1]) الصافات: ج۲۳، ۱۴۲، ۱۴۴)
[2]) شرح ابن بطال (ج۵ص۱۳۵)_
[3]) عمدة القاری: ج ۱۴ص ۱۴۵) _
[4]) عمدة القاری: ۲۴۵/۱۴ وشرح ابن بطال: ۱۵۳/۵.
[5]) قدمر تخريجه فی الباب سابق ذکر الان.
[6]) کشف الباری: ۲۵۸/۳.
[7]) باب إذا جامع ثم عادومن دارعلی نسائه فی غسل واجب: ۲۶۷.
[8]) کتاب مواقيت الصلوة باب الاذان بعد ذهاب الوقت: ۵۹۵.

④ **سالم** ذا سالم بن ابی الجعد رحمه الله دې ددوی تذکره تیره شوې ده (۱)

⑤ **جابر** - دا صحابی رسول حضرت جابر بن عبدالله انصاری رضی الله عنه دې د دوی حالات تیر شوی دی (۲)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - ددې حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې کنا اذا صعدنا کبرنا یعنی چه کله به مونږ پورته ختلونو تکبیر به مو ونیلو (۳)

احدیث نمبر ۲۸۳۳] (۴) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما - قَالَ كَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا قَفَلَ مِنَ الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ - وَلاَ أَعْلَمُهُ إِلاَّ قَالَ الْغَزْوِ - يَقُولُ كُلَّمَا أَوْفَى عَلَى ثَنِيَّةٍ أَوْ فَدْفَدٍ كَبَّرَ ثَلاَثًا ثُمَّ قَالَ «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ، وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ، وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ». قَالَ صَالِحٌ فَقُلْتُ لَهُ أَلَمْ يَقُلْ عَبْدُ اللَّهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ قَالَ لاَ. [ر: ۱۷۰۳]

## رجال الحدیث

① **عبدالله** - دا ابن یوسف دې یا ابن صالح دې یا ابن رجاء العدانی دې په دې کښې اختلاف دې ابو علي جیلانی ړومبې قول معتمد ګرخولې دې (۵) ددوی تذکره بدء الوحی کښې تیره شوې ده (۶)

② **عبدالعزیز بن ابی سلمه** - دا عبدالعزیز بن عبدالله بن ابی سلمه رحمه الله دې کتاب العلم کښې ددوی تذکره تیره شوې ده (۷)

③ **صالح بن کیسان** - دا ابومحمد یا ابوالحارث صالح بن کیسان دې ددوی تذکره کتاب الایمان لاندې ړواندې تیره شوې ده (۸)

④ **سالم بن عبدالله** - دا د حضرت ابن عمر خونې دې ددوی تذکره هم کتاب الایمان کښې تیره شوې ده (۹)

---

[1] ) کتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع: رقم: ۱٤۱.
[2] ) كتاب الوضوء باب من لم يرالوضوء إلا من المخرجين من القبل والدبر. رقم: ۱۷۶۵.
[3] ) عمدة القاری: ۱٤/ ۲٤۵.
[4] ) الحديث قدمر تخريجه فى الباب العمرة باب مايقول إذا رجع من الحج أو العمرة أوالغزو. رقم: ۱۷۹۷.
[5] ) إرشاد الساری: ۵/ ۱۳۶.
[6] ) کشف الباری: ۱/ ۲۸۹.
[7] ) کشف الباری: ٤/ ۵۱۸.
[8] ) کشف الباری: ۲/ ۱۲۱.
[9] ) کشف الباری: ۲/ ۱۲۸.

⑤ **عبدالله بن عمر** - داحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دي دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی (۱)

**دَ حدیث دَبعض الفاظوتشریح** - **قفل** په معنی رجع یعنی چه کله به حضوریاك دَ حج نه واپس کیدلو

**قوله ولا أعلمه إلا قال الغزو** - یعنی چه کله به ابن عمر رضی الله عنهما دا روایت ذکرکولونوحج اوعمرې سره به ئې د غزوه ذکرضرور کولو

**یقول: کلما أوفی** - دَ یقول ضمیرحضرت ابن عمر رضی الله عنهما طرف ته اود أوفی ضمیر جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم طرف ته راجع دي أوفی معنی ده ختل مطلب دا چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وائی چه کله به نبی کریم صلی الله علیه وسلم وادئی ته ورختلو نو دغه مذکوره دعابه ئې لوستله

**فَدْفَدْ** - کانړیجنه سخته زمکه چه اوچته وی **آیبون** - دلته مبتدا محذوف ده تقدیرعبارت دې نحن آیبون آب یؤب أوبا معنی ده. راګرځیدل، واپس کیدل یعنی مونږ خلق دَالله تعالی طرف ته راواپس کیدونکی یو **لربنا** دَدې متعلق پنځه احتماله دی ① ماقبل ساجدون سره متعلق دي ② مابعد حامدون سره متعلق دي ③ دې دواړوسره متعلق دي ④ دَماقبل صفات اربعه سره متعلق دي ⑤ پنځوواړو صفتونوسره علی سبیل التنازع متعلق دي یعنی هریو سره متعلق دي لکه آیبون لربنا، تائبون لربنا (۲)

**قوله: قال صالح: فقلت له: ألم یقل عبدالله إن شاء الله؟ قال: لا** - صالح بن کیسان رحمه الله راوی وائی چه ما دَحضرت ابن عمر رضی الله عنه خوئی سالم ته اووئیل آیا ستا پلار عبدالله رضی الله عنه ان شاء الله نه دي وئیلي؟ نوسالم جواب اوکړو نه. یعنی صدق وعده ونصر عبده وهزم الاحزاب وحده ان شاء الله نه دي وئیلي (۳)

**تنبیه**:- دَ ابوداؤد په روایت کښې دا اضافه هم نقل ده. **کان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وجیوشه إذا علوا الثنایا کبروا، وإذا هبطوا سبحوا، فوضعت الصلوة علی ذلك** (۴) دا اضافه مدرج ده مسندنه ده ځکه چه امام ابوداؤد رحمه الله دا روایت دَعبدالرزاق په طریق سره نقل کړې دي او امام عبدالرزاق دا په خپل کتاب کښې دَ ابن جریج قول ګرځولې دي (۵) لکه چه داقول دابن جریج دَ مراسیل

---

(۱) کشف الباری: ۱/۶۳۷.

(۲) عمدة القاری: ۱۴/۲۴۶.

(۳) عمدة القاری: ۱۴/۲۴۶.

(۴) بذل المجهود: ۱۲/۱۰۰ وعون المعبود: ۷/۲۵۹ وسنن ابی داؤد کتاب الجهاد باب مایقول الرجل إذا سافر. رقم: ۲۵۹۹.

(۵) مصنف عبدالرزاق: ۵/۱۶۰ رقم: ۹۲۴۵.

نه دي خو امام ابوداود رحمه الله دا موصولاً نقل کوی په دې باندې شراح ابوداود نه چاتنبیه کړې اونه شراح د بخاری شریف نه چا نیول کړی دی [۱]

**ترجمة الباب سره مطابقت** - د حدیث شریف ترجمة الباب سره مطابقت په دې جمله کښې دې **کلما أوفى على ثنية أوفد فدِ كبر ثلاث** یعنی کله چه به نبی کریم ﷺ چرته د غریه څوکه ختلو نو دړې ځل به نبی تکبیرونیلو [۲] والله اعلم وعلمه اتم واحکم

## باب ۱۳۲ : يكتب للمسافر مثل ما كان يعمل في الاقامة

**د ترجمة الباب مقصد** - امام بخاری رحمه الله دلته دا بیانوی چه کوم سړې په حالت اقامت کښې په کومو نفلی اعمالو باندې همیشه والې اوپابندی کوی او د هغه هم دغه نیت وی چه زه به همیشه دغه شان اعمال کوم نوکه چرې هغه سفرته ځی او د سفر د وجې نه هغه دغه اعمال نه شی اداکولې نو هغه ته به ثواب ملاویږی. د عمل منقطع کیدو سره ثواب نه منقطع کیږی خو په دې شرط چه سفر د گناه په نیت سره نه وی. لکه چه څوک الله تعالې دې نه کړی د چاناحقه قتل کولو د پاره په سفر ځی نو دا فضیلت به هغه ته حاصل نه وی [۳]

احدیث نمبر ۲۸۳۴] [۴] حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ حَدَّثَنَا الْعَوَّامُ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ أَبُو إِسْمَاعِيلَ السَّكْسَكِيُّ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا بُرْدَةَ وَاصْطَحَبَ هُوَ وَيَزِيدُ بْنُ أَبِي كَبْشَةَ فِي سَفَرٍ، فَكَانَ يَزِيدُ يَصُومُ فِي السَّفَرِ فَقَالَ لَهُ أَبُو بُرْدَةَ سَمِعْتُ أَبَا مُوسَى مِرَارًا يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « إِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ أَوْ سَافَرَ، كُتِبَ لَهُ مِثْلُ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيمًا صَحِيحًا ».

## رجال الحديث

① **مطربن الفضل** - دا مطربن فضل مروزی رحمه الله دې د دوی حالات تیرشوی دی [۵]

② **یزیدبن هارون** - دا یزیدبن هارون زادان السلمی ابوخالد واسطی رحمه الله دې د دوی تذکره تیره شوې ده [۶]

③ **عوام** - دا ابوالحارث عوام بن حوشب شیبانی ربعی دې د دوی حالات تیرشوی دی.

④ **ابراهیم** - دا ابوابراهیم بن عبدالرحمن بن اسماعیل سکسکی رحمه الله دې د دوی تذکره هم

---

[۱] وقد تنبه له الحافظ ابن حجرفی تخريج الاذكارالنووية كما فى الفتوحات الربانية لابن علان:۵/۱٤۰.

[۲] عمدة القاری:۱٤/۲٤۶.

[۳] عمدة القاری:۱٤/۲٤۶.

[۴] احديث اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز باب إذا كان الرجل يعمل عملا صالحا فشغله عنه مرض او سفر. رقم: ۳۰۹۱ وأحمد فى مسنده: رقم: ۳۶٤.

[۵] كتاب الصلوة باب كراهية التعرى فى الصلوة رقم:۳٤۶.

[۶] كتاب الوضوء باب التبرزفى البيوت رقم:۱٤۹.

وړاندې تیره شوې ده (۱)

⑤ **ابوبرده، ابوموسیٰ اشعری** رضی الله عنه - د دې دواړو حضراتو تذکره کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده کښې تیره شوې ده (۲)

⑥ **یزید بن ابی کبشه** - دا تابعی دې د دوی د پلار نوم یحویل یا جبریل بن یسار دې هغه د خپل پلار ابوکبشه، مروان بن الحکم او د یو صحابی نه روایت حدیث کړې دې امام حاکم رحمه الله د صحابی نوم شرجیل بن اوس نقل کړې دې (۳) د دوی نه روایت کونکی ابوبشر جعفر بن ابی وحشیة حکم بن عتیبه علی بن الاقمر معاویة بن قرة مزنی او ابراهیم بن عبدالرحمن سکسکی رحمه الله وغیره دی

په اموی دور حکومت کښې دې په مختلفو اوچتو عهدو باندې پاتې دې د عراق گورنر جوړ شو او د سنده نه د خراج وصول کولو ذمه واری هم هغوی پوره کړې د عبدالملك بن مروان په زمانه کښې د پولیس او مجاهدینو مشر جوړ شو اهل شام به د هغوی ډیر عزت اوډرناوې کولو ډیرکم روایت به ئې کول په صحیح بخاری کښې د هغوی تذکره صرف هم دغه راغلې ده چه هغه به په سفرکښې روژې ساتلې نو حضرت ابوبرده بن ابی موسیٰ اشعری د هغه نه دا حدیث اوریدلې دې

حافظ ابن حجر رحمه الله تقریب التهذیب (۴) کښې هغه مقبول او فتح الباری (۵) کښې ثقة گرځولې ابن حبان رحمه الله هغه په کتاب الثقات کښې ذکرکړې دې (۶) حافظ ذهبی رحمه الله فرمائی وکان کبیرالشان رحمه الله (۷) د هجری کال په رومبی صدئې آخره کښې د سلیمان بن عبدالملك په دور کښې په سنده کښې وفات شو (۸)

د ابراهیم سکسکی وینا ده چه ما د ابوبرده نه اوریدلی دی چه هغه اویزید بن ابوکبشه په سفرکښې وو اویزید به په سفر کښې روژې ساتلې نو ابوبرده اوونیل چه ما د خپل پلار حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه نه څوځل اوریدلی دی چه جناب نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی که یو سړې بیمارشی یا په سفرکښې اوځی نو د هغه په اعمل نامه کښې هم هغه شان اعمال لیکلې کیږی لکه څنگه چه د هغه په اقامت او د صحت په حالت کښې عادت وو

---

۱) د دواړو راویانو د تذکره د پاره اوگورئی کتاب البیوع باب مایکره من الحلف فی البیع. رقم:۲۰۸۸.

۲) کشف الباری:۱/۶۹۰.

۳) تهذیب التهذیب: ۱۱/۳۵٤.

٤) تقریب التهذیب ص: ٦٠٤ رقم الترجمة: ۷۷٦٥.

۵) فتح الباری:۶/۱۳۶.

۶) کتاب الثقات: ۵/ ٥٤٤.

۷) سیرأعلام النبلاء: ٤/٤٤٣.

۸) حواله بالا د نورو تفصیل د پاره اوگورئی تهذیب الکمال:۳۲/۲۲۸.

علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه د قرآن كريم آيت ﴿ إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَهُمْ اَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُوْنٍ﴾ [1] كښې هم د دغه مضمون راغلې دې كه د صحت د خرابئ او د سفر د وجه نه يو سړې خپل معمولات پوره نه كړې شي نو هغه ته به اجر ملاويږي [2]

دلته د دې خبرې خيال ساتنې چه د دې حديث تعلق نوافل سره دې ځكه چه فرائض خو به دې دوارو صورتونو كښې نه ساقط كيږي بيمار كه په قيام باندې قادر نه وي نو په ناسته به مونځ كوي او مسافر به قصر كوي په حديث شريف كښې راځي چه كوم سړې تهجد كوي او د تهجد په وخت د هغه سترګې ورغلې نو هغه ته به ثواب ملاويږي او دغه خوب د هغه د پاره صدقه دې د حديث الفاظ دا دي مامن امرئ تكون له صلوة في الليل يغلبه عليها نوم أو وجع إلا كتب له أجر صلاته، وكان نومه صدقة عليه [3] بل د دې حديث نه دا هم معلومه شوه چه دا اجر او ثواب د دې سړي د پاره دې چه په صحت او اقامت كښې د يو نيك عمل عادت وي صرف بيماريدو يا په سفر تللو سره څوك د دې فضيلت مستحق نه شي جوړيدې ځكه چه دغه مرض يا سفر د دې د خپلو معمولاتو نه منع كړې نه دې. چه د معمولاتو او نيكو اعمالو د هغه عادت نه وو نو د هغه د پاره به څه ليكلې شي؟ [4] د ابوداؤد په روايت كښې د دې تصريح موجود ده [5]

**قوله**: كتب له مثل ما كان يعمل مقيما صحيحا - دلته لف او نشر غير مرتب دې ځكه چه د حديث په شروع كښې لفظ مرض مقدم دې او سافر مؤخر دې او دلته د مرض مقابل صحيح مؤخر دې او سافر مقابل مقدم دې. [6]

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- د حديث شريف ترجمة الباب سره مطابقت د حديث نه بالكل واضح دې او كتاب الجهاد سره مناسبت دا دې چه اكثر په جهاد كښې اسفار او امراض خو پيښيږي نو د دې وجه نه چه كوم نيك اعمال او معمولات پاتې كيږي په هغې باندې خفه كيدل نه دي پكار بلكه هغه ثواب جاري وي

## باب ۱۳۳: السير وحده

**د ترجمة الباب مقصد** - امام بخاري رحمه الله د خان له سفر كولو حكم بيانول غواړي چه دا عمل جائز دې كه ناجائز؟ دلته دوه احاديث ذكر دي په يو كښې د حضرت زبير رضي الله عنه خان له د سفر كولو ذكر دې او په دويم روايت كښې خان له د سفر كولو نه منع كړې شوې ده په دې وجه امام بخاري رحمه الله ترجمة الباب مبهم پريخودې دې او څه واضحه حكم ئې نه دې لګولې [7]

---

[1] التين: ٦.
[2] شرح ابن بطال: ٥/ ١٥٤.
[3] عمدة القاري: ١٤/ ٣٥٣ دار الكتب العلمية بيروت.
[4] شرح ابن بطال: ٥/ ١٥٤ – ١٥٥.
[5] أبوداؤد كتاب الجنائز رقم: ٣٠٩١.
[6] فتح الباري: ٦/ ١٣٦.
[7] عمدة القاري: ١٤/ ٢٤٧.

**خان له د سفرکولوحکم** - مهلب رحمه الله فرمائی چه د شپې خان له سفرکولونه منع کولوکښې حکمت دادې چه د شپې وخت کښې د شیطانانو بهرخوریدوکښې تکلیف رسولو اودخلقو په زړونوکښې وسوسې اچولووخت وی په دې وجه جناب نبی کریم ﷺ د شپې ماشومان بهر ویستلونه منع فرمائیلی وو لیکن داحرام نه دی که څه عذرنه وی نو مکروه دی اوکه د سفرڅوك ملګری وی نودا افضل اوبهتردی (۱)

حدیث نمبر ۲۸۳۵ (۲) حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - يَقُولُ نَدَبَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - النَّاسَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ ، فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ، ثُمَّ نَدَبَهُمْ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ، ثُمَّ نَدَبَهُمْ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ، قَالَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنَّ لِكُلِّ نَبِىٍّ حَوَارِيًّا ، وَحَوَارِىَّ الزُّبَيْرُ » . قَالَ سُفْيَانُ الْحَوَارِىُّ النَّاصِرُ. [ر: ۲۶۹۱]

## رجال الحدیث

① **حمیدی**: داعبدالله بن زبیرحمیدی رحمه الله دی. د دوی حالات بدء الوحی کښې تیرشوی دی (۳)
② **سفیان** - داسفیان بن عیینه رحمه الله دی د ده تذکره ماقبل کښې تیره شوې ده (۴)
③ **محمدبن المنکدر** - دامحمدبن المنکدر رحمه الله دی د دوی حالات شاته تیرشو (۵)
④ **جابربن عبدالله** رضی الله عنهما - دا صحابی رسول حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنهما دی د دوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۶)

**ترجمة الباب سره دحدیث په مناسبت باندې اشکال اودهغې جواب** - داحدیث د دې باب لاندې ذکرکولوباندې امام اسماعیلی رحمه الله ته دا شبه شوې ده چه داحدیث دې باب سره مناسبت نه لری ځکه چه دلته د حضرت زبیر رضی الله عنه دخان له سفرکولوهیڅ ذکرموجودنه دې کیدې شی چه څوك بل هم هغوی پسې شاشاته تلې وی. علامه ابن المنیر رحمه الله هم د دې تائیدکړې دې حافظ ابن حجر رحمه الله د دې شبه د ختمولودپاره فرمائی چه دلته د دې ذکر خو نشته لیکن هم دغه واقعه مناقب زبیر کښې راغی (۷) دکوم نه چه معلومیږی چه هغوی دا سفرخان له کړې وو هلته حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما فرمائی: ماخپل پلارڅو ځل بنوقریظه طرف ته په تلو راتلولیدلې دې. مادهغوی نه تپوس اوکړو یاأبی رأیتك تختلف یعنی باباجانه تاسو باربار بنوقریظه طرف ته

---

۱) شرح ابن بطال: ۱۵۵/۵.
۲) احدیث قد مر تخریجه ابوداود فی کتاب الجهاد باب فضل الطلیعة: ۲۸۴۶.
۳) کشف الباری: ۲۳۷/۱.
۴) کشف الباری: ۲۳۸/۱.
۵) کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه رقم: ۱۹۶.
۶) کتاب الوضوء باب من لم یرالوضوء إلا من المخرجین من القبل والدبر: ۱۷۶.
۷) کتاب فضائل أصحاب النبی صلی الله تعالی علیه وسلم باب مناقب الزبیربن العوام رضی الله عنه رقم: ۳۷۱۹.

ځني راځني آخرځه خبره ده؟ هغوی اووئيل جناب نبی کريم ﷺ مونږ ته فرمائيلی دی چه د بنوقريظه خبربه څوك راوړی؟ نوزه لاړم [۱]

نوړ د سنن النسائی روايت خو بالکل واضحه اوبې گرده دې په کوم کښې چه وهب بن کيسان رحمه الله په دې الفاظوسره دغه واقعه ذکرکوی أشهدلسمعت جابربن عبدالله...... فلم يذهب أحد فذهب الزبير [۲] لکه چه د تاکيد د پاسه تاکيد دې اودغه شان درې ځل اوشو اودريواړه ځل د حضرت زبير رضي الله عنه لاړو په دومره صفاالفاظوسره داواقعه ذکرکولې شی بياهم دا احتمال راويستل چه کيدې شی بل څوك هم دوی سره وی نودې ته به هم بې ځايه تکلف وئيلې شی

**قوله: قال سفيان: الحوازي الناصر** - دالفظ مفرددې اومنصرف دې اود حراء ظرف نه منصوب دې دا په کراسی يا جواری باندې نه دی قياس کول پکار ځکه چه دا الفاظ جمع دی مفرد نه دی. [۳]

حديث نمبر ۲۸۳۶ [۴] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضي الله عنهما-عَنِ النَّبِيِّ-صلى الله عليه وسلم-.

حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ-صلى الله عليه وسلم-قَالَ:

«لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا أَعْلَمُ مَا سَارَ رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ.»

## رجال الحديث

**رومبې سند،** ① **ابوالوليد:** - داهشام بن عبدالملك رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الايمان کښې تيرشوی دی. [۵]

② **عاصم بن محمد:** - دا عاصم بن محمدبن عبدالله بن عمر رحمه الله دې کتاب الايمان کښې د دوی تذکره راغلې ده. [۶]

③ **ابی** - داد حضرت عاصم پلارمحمدبن زيد رحمه الله دې کتاب الايمان کښې د دوی تذکره راغلې ده. [۷]

---

[۱] ) فتح الباری:۱۳۸/۶ وعمدة القاری:۲۳۷/۱٤.

[۲] ) سنن النسائی الکبری:۲٦٤/٥ کتاب السير باب ذهاب الطليعة وحده: رقم:۸۸٤۳/۳.

[۳] ) إرشادالساری:۱۳۷/٥.

[٤] ) اخرجه الترمذی فی کتاب الجهاد باب ماجاء فی کراهية أن يسافر الرجل وحده: رقم: ٦۷۳ والنسائی فی الکبری:٥/ کتاب الجهاد باب النهی عن سيرالراکب وحده رقم: ۸٥۰.

[٥] ) کشف الباری:۳۸/۲.

[٦] ) باب عقدالازارعلی القفافی الصلوة رقم:۳٥۲.

[۷] ) کشف الباری: ۱۳٥/۲.

④ **ابن عمر** - داصحابى رسول حضرت عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما دي د دوى حالات شاته تيرشوى دى [1]

**دويم سند** - ①**ابونعيم** - دافضل بن دکين رحمه الله دي د دوى حالات کتاب الايمان کښې تيرشوى دى [2] باقى رجال سند بعينه د پورتنى ړومبى سند مطابق دى د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبى کريم ﷺ فرمائيلي دى که خلقو د ځان له سفرکولو نقصانات زما په شان پيژندل نو هيڅ يو مسافر به د شپې يوازې سفر نه کولو

**قوله**: مافي الوحدة ما أعلم ماسار راكب - مائى الوحدة کښې ماء خو يا زائده ده او ظرف فى الوحدة محل نصب کښې ده يا ما مصدريه ده تقدير عبارت داسې دې لويعلم الناس أى شئ فى الواحدة؟ او دا هم په محل نصب کښې دې [3] ما أعلم کښې ما موصوله ده او جمله مفعول کيدو سره محل نصب کښې واقع ده ماسار راکبا کښې ما نافيه ده او جمله جزاء ده

**په دواړو روايتونو کښې تعارض او دهغې ازاله**:- په ړومبى روايت کښې د حضرت زبير رضي الله عنه د ځان له سفر ذکر دې خو په دې روايت سره د دې ممانعت معلوميږى. بل الراکب شيطان والراکبان شيطانان والثلاث رکب [4] په دې روايت کښې د ځان له سفرکولو نه صراحةً ممانعت وارد شوې دې چنانچه په دواړو روايتونو کښې په ظاهره تعارض معلوميږى په دې کښې مختلف تطبيقات ورکړې شوى دى.

① د څه ضرورت يا مصلحت د خاطره ځان له سفرکول جائز دى او ممانعت د عامو حالاتو په اعتبار سره دې په جاسوس وغيره کښې ضرورت او حکمت هم د غه دې چه هغه يوازې وى

② که چرته امن وى او د ځان له سفرکولو ضرورت پيښ شى نو جائز دى. د ويرې په حالت کښې ناجائز دى [5]

③ بعض حضرات وائى چه د ممانعت تعلق او ږدو سفرونو سره دې په کوم کښې چه د مونځ قصر کيږى په مختصر او کم مسافت والا سفرونو کښې هيڅ بديت نشته [6]

④ دا ممانعت نهى تاديبى دې نهى تحريمى نه دې. يعنى د آدابو او مستحباتو نه دې چه سړې دې ځان له سفر نه کوى ځکه چه په دې سره وحشت کيږى لکه څنګه چه رسول کريم ﷺ د لوښى د مينځ نه خوراک کول. مشکيزه باندې خله کيخودو سره او به څکل او په ډاګه چهت باندې د شپې سملاستو نه منع فرمائيلي ده او دې نه علاوه هم نور ډير مثالونه دى د کومو تعلق

---

[1] ) کشف البارى: ۶۳۷/۱.

[2] ) کشف البارى: ۶۶۹/۲.

[3] ) إرشاد السارى: ۱۳۸/۵.

[4] ) إرشاد السارى: ۱۳۸/۵.

[5] ) إرشاد السارى: ۱۳۸/۵.

[6] ) عمدة القارى: ۱۴۲/۱۴.

چه آدابو سره دې د جواز او عدم جواز سره نه دي
په دې کښې د خلقو حالات او طبائع ته هم کتل وی چه یو سړې بزدل دې او د هر منظر نه ویریږی د هر سړی نه خوف خوری او په هر کښ کړې باندې توپ وهی نو ښکاره خبره ده چه د دامې سړی خان له سفر کول د خطرې نه خالي نه دی د بهادرو او تکړه خلقو حکم د دې نه بالکل مختلف دې (۱) هم په دې تناظر کښې د حضرت عمر رضی الله عنه دا قول دې که سړې خان له سفر کوی او هغه مړشی یا په هغه باندې څه اوشی نو زه به د چانه تپوس پوښتنه کولو د پاره ګرځم ؟

**د حدیث ترجمة الباب سره مطابقت** - د ړومبی روایت مطابقت په سلسله کښې موښ خودلی دی چه حضرت زبیر رضی الله عنه به په دې مبهم باندې خان له تشریف اوړلو د دویم روایت مطابقت په دې اعتبار سره دې چه ترجمه مبهم قائمه کړې شوه څه حتمی حکم نی د خان له سفر کولو باره کښې اونه لګولو چه جائزدی که ناجائز؟ نو په دې روایت کښې دابیان کړې شو چه بغیر ضرورت نه خان له سفرنه دی کول پکار (۲)

**فائده** - د حضرت جابر رضی الله عنه د روایت نه معلومیږی چه امیر له څوك په خطرناك مهم باندې جبرا نه دی لیګل پکار سره د دې چه هغه ته اختیار حاصل دې بلکه د ترغیب او شوق په ذریعه سره د خلقو جذبات راوچتول پکاردی چه کوم سړې په خپله خوشحالئی سره د دغه کار ذمه په خپل سر اخلی نو د خپل صلاحیتونو په خاطر هغه د اسې وی او هغه د بهتر کار کردګئی سبب جوړیږی د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا عمل یوه بهترینه نمونه ده کنی هغه ته اختیار دې چه هغه چاته هم حکم ورکړی چه اې فلانکی لاړ شه او خبر راوړه او د دې حکم نه د انکار د چا هیڅ مجال نه وو لقوله تعالی ﴿ اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ ﴾(۳) یعنی چه کله هم نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاسو غواړی نو زر لبیك واینی. (۴) والله اعلم بالصواب

## باب ۱۳۴: السرعة في السير

**د ترجمة الباب مقصد**:- دلته دا فرمائی چه هسې خو په تسلئی او وقار سره تګ پکار دې اصل هم دغه دې خو کله کله د تیزتللو ضرورت هم پیښیږی نو د ضرورت په وخت په دې کښې هیڅ بدیت نشته. دلته شراح رحمهم الله رجوع إلى الوطن قید لګولې دې په باب کښې ذکر شوو احادیثو نه هم دغه په ذهن کښې راځی چه د وطن طرف ته واپس کیدو کښې تندی پکار ده لیکن ترجمة الباب مطلق دې په دې وجه د ضرورت په وخت تیز تګ جائزدې که د وطن طرف ته واپس کیدل وی او که د دښمن طرف ته تیزئی سره ورتګ وی یا بل څه موقع وی. بهرحال په تیزتګ کښې د ضرورت په وخت هیڅ بدی نشته

---

(۱) شرح ابن بطال: ۵/۵۵ – ۵۶.
(۲) عمدة القاري: ۱۴/۱۴۲.
(۳) الانفال: ۲۴.
(۴) شرح ابن بطال: ۵/۵۴.

قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ قَالَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- «إِنِّي مُتَعَجِّلٌ إِلَى الْمَدِينَةِ، فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَتَعَجَّلَ مَعِي فَلْيُعَجِّلْ». [ر ۱۴۱۱]

ابوحمید یعنی ابوحمید دا عبدالرحمن ساعدی انصاری رضی الله عنه دي دَدوی تذکره په کتاب الصلوة کښي تیره شوې ده [۱] نبی کریم ﷺ فرمانیلی دی زه دَمدینې طرف ته زر ځم څوک چه ماسره زر تلل غواړی نوزر دې تیارې اوکړی

دا روایت مصنف رحمه الله کتاب الزکوة باب خرص التمر کښي موصولاً ذکرکړې دې [۲]

حدیث نمبر ۲۸۳۷ [۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ هِشَامٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي قَالَ سُئِلَ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ -رضى الله عنهما- كَانَ يَحْيَى يَقُولُ وَأَنَا أَسْمَعُ فَسَقَطَ عَنِّي - عَنْ مَسِيرِ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ، قَالَ فَكَانَ يَسِيرُ الْعَنَقَ، فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ. وَالنَّصُّ فَوْقَ الْعَنَقِ. [ر ۱۵۸۳]

## رجال الحدیث

① **محمدبن المثنی** - دادَ امام بخاری رحمه الله شیخ محمدبن مثنی رحمه الله دي دَدوی تذکره کتاب الایمان کښي تیره شوې ده [۴]

② **یحیی** - دا یحیی بن سعیدقطان رحمه الله دي دَ دوی تذکره هم کتاب الایمان کښي تیره شوې ده [۵]

③ **هشام** - داهشام بن عروه رحمه الله دي دَدوی حالات بدء الوحی کښي تیرشوی دی [۶]

④ **أبی** - داعروه بن زبیر رحمه الله دي دَدوی حالات بدء الوحی کښي تیرشوی دی [۷]

⑤ **اسامة بن زید**: داصحابی رسول حضرت اسمه بن زید رضی الله عنهما دي دَدوی تذکره تیره شوې ده [۸]

**قوله** وكان يحيى يقول وأنا أسمع فسقط عني: - دادَ یحیی بن سعید القطان قول دي اوجمله معترضه ده. په دې کښي دَ امام بخاری رحمه الله شیخ محمدبن المثنی دا وضاحت فرمائی

---

[۱] ) باب فضل استقبال القبلة: رقم:۳۹۱.

[۲] ) تنبية: قد تسامح فی تخریج هذا التعلیق محقق تغلیق التعلیق حیث أشار إلی أن المؤلف رحمه الله ذکره موصولاً فی کتاب العمرة فی باب من أسر ناقته إذا بلغ المدینة. رقم: ۱۸۰۲ وکتاب فضائل المدینة فی باب بلاترجمة بعد باب المدینة تنفی الخبث. رقم: ۱۸۸۶وقد خلط حمید وأبوحمید انظر حاشیة تغلیق التعلیق: ۳/۳۵٤ والله اعلم بالصواب.

[۳] ) قد مر تخریجه فی کتاب الحج باب السیر إذا رجع من عرفة. رقم: ۱۶۶۶.

[۴] ) کشف الباری:۲۵/۳.

[۵] ) کشف الباری:۲/۲.

[۶] ) کشف الباری:۲۹۱/۱.

[۷] ) کشف الباری:۲۹۱/۱.

[۸] ) کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء: رقم:۱۳۹.

چه زمونږ شيخ دا روايت دَعروه نه تعليقاً يا مسنداً نقل کولو اودَ حضرت عروه قول وأنا أسمع دَهغه نه پاتې شوې وو نويحيى دَهغې تصريح اوکړه دَ دې تائيد دَ مسلم شريف دَ روايت نه هم کيږي دَ کوم الفاظ چه دادي سئل أسامة وأنا شاهد كيف كان مسير النبي صلى الله تعالى عليه وسلم (١)

بل هم دَ صحيح بخاري روايت کوم چه کتاب الحج کښې تيرشوې دې په هغې کښې دي سئل أسامة وأنا جالس..... (٢)

حاصل دادې چه کوم وخت رسول الله ﷺ دَعرفه نه دَ واپسئ سره متعلق داخبره حضرت اسامه رضي الله عنه نه معلوموله نوهغه وخت حضرت عروه رحمه الله هم هلته تشريف ايخودې وو تقدير عبارت داسې دې قال البخاري: قال ابن المثنى: كان يحيى يقول تعليقاً عن عروة أو مسنداً إليه. قال: سئل أسامة وأنا أسمع السؤال......

**قوله**: عن مسير النبي صلى الله تعالى عليه وسلم - داعبارت دَ سئل متعلق دې يعني دَحضرت اسامه رضي الله عنه نه دَ مسير نبي عليه السلام باره کښې پوښتنه اوکړه (٣)

فجوة: - خالي خائې يادَ دوو څيزونو په مينځ کښې کولاؤ خائې. سورت کهف کښې دي ﴿ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِنْهُ ﴾ (٤) يعني په غار کښې دننه اصحاب کهف په ارت او کولاؤ خائې کښې پراته دي

النص فوق العنق: - نص: ډير په تيزئ سره سورلئ شړل عنق په تيزئ سره تلل په دواړو کښې دَ رفتار فرق دې او نص عنق نه زيات تيز تللوته وائي (٥) يعني جناب نبي کريم ﷺ دَ عرفه نه په واپسئ باندې تيز روان وو او کله چه ارت خائې ملاؤ شو نوحضورپاك به نور هم رفتارتيزولو.

**ترجمة الباب نه انطباق**: - دَحديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت نص نه واضح دې دلته دَ نبي کريم ﷺ دَ تيز تلل اختيارولو ذکر دې (٦)

حديث نمبر ۲۸۳۸] (٧) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ أَخْبَرَنِي زَيْدٌ - هُوَ ابْنُ أَسْلَمَ - عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضي الله عنهما - بِطَرِيقِ مَكَّةَ، فَبَلَغَهُ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ شِدَّةُ وَجَعٍ، فَأَسْرَعَ السَّيْرَ حَتَّى إِذَا كَانَ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّفَقِ، ثُمَّ نَزَلَ

---

(١) صحيح مسلم: ٤١٧/١ كتاب الحج باب الافاضة من عرفات إلى المزدلفة.
(٢) كتاب الحج باب السير إذا دفع من عرفة رقم: ١٦٦٦.
(٣) عمدة القاري: ٢٤٩/١٤.
(٤) الكهف: ١٧.
(٥) النهاية: ٣١٠/٣ و: ٦٤/٥.
(٦) عمدة القاري: ٢٤٩/١٤.
(٧) قد مر تخريجه في تقصير الصلوة باب تصلى المغرب ثلاثا في السفر رقم: ١٠٩١.

فَصَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعَتَمَةَ، يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا، وَقَالَ إِنِّي رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا جَدَّ بِهِ السَّيْرُ أَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَجَمَعَ بَيْنَهُمَا. [ر: ۱۰۴۱]

دا حديث بعينه هم په دې سند اومتن سره كتاب العمرة كښې تيرشوې دې (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - دحديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت إذا جدبه السير كښې دې يعني چه كله رسول الله ﷺ ته دتيز تللو ضرورت پيښ شو نو د مازديګر او ماښام مونځ ئې روستوكړو او د ماسختن هغې سره ئې يوځائې كړو (۲)

حديث نمبر ۲۸۳۹ [۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَىٍّ مَوْلَى أَبِي بَكْرٍ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ، يَمْنَعُ أَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ وَشَرَابَهُ، فَإِذَا قَضَى أَحَدُكُمْ نَهْمَتَهُ فَلْيُعَجِّلْ إِلَى أَهْلِهِ». [ر: ۱۷۱۰]

دا حديث بعينه هم په دې سند اومتن سره كتاب العمرة كښې تيرشوې دې

**قوله نومه وطعامه وشرابه:-** دا منصوب بنزع الخافض دى تقديرعبارت داده يمنع أحدكم من نومه...... يا مفعول ثاني دې د يمنع ځكه چه منع هم د اعطى په شان د دواړو مفعولو تقاضه كوي مطلب دا چه په سفركښې د خوراك څښاك سهولت نه حاصل وي ولې په مكمل توګه سكون او راحت سره نه وي لكه چه په كوركښې د اقامت په وخت وي په دې وجه د زر نه زر خپل ضرورت پوره كولوسره خپل كورطرف ته راواپس كيدل پكاردي دې دپاره چه پخپله هم راحت حاصل كړي او بال بچ هم مطمئن شي

**نهمته:-** د نون زيرسره لوستلې شي د دې معنى ده شوق اورغبت يعني چه كله رغبت پوره شي او دسفرنه ئې زړه موړشي نو زردې د خپل كورطرف ته د واپسئ سفرشروع كړي (۴)

**ترجمة الباب سره مناسبت:-** د حديث شريف ترجمة الباب سره مناسبت فليعجل إلى أهله نه ښكاره دې (۵)

**د احاديث باب نه مستنبط شوې فوائد:-** علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه په رومبي او آخرى حديث كښې دوه فائدې دي ① د سفرد مشقت نه به زر خلاصي ملاؤشي ② اهل اوعيال او اهل مدينه، خصوصا د حضورپاك په زرواپسئ باندې به خوشحاله شي په دې وجه به نبي كريم ﷺ د وطن مديني طرف ته د زر نه زر د واپس راتلو كوشش كولو اودې به ئې نورو ته هم ترغيب وركولو د دويم حديث نه دا فائده حاصليږي كه د عرفه نه په تيزئ سره زر اووتلې نو

---

(۱) باب في المسافر إذا جدبه السير و تعجل إلى أهله رقم:۱۸۰۵.

(۲) عمدة القاري:۱۴/ ۴۹.

(۳) باب السفر سقطعة من العذاب رقم: ۱۸۰۴.

(۴) عمدة القاري:۱/ ۲۴۹ وفتح الباري:۱/ ۱۳۹.

(۵) عمدة القاري: ۱۴/ ۲۴۹.

مزدلفه ته په رسيدو به دعا اود الله تعالى سره د راز اونياز دپاره وخت ډير ملاوشى خكه چه په مزدلفه كښې د دعا وخت ډيركم وى اوهغه هم په كال كښې يوځل په دې شرط چه د حج سعادت هم د رنصيب شى

په دريم حديث كښې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما د عمل نه دافوائدحاصليږى ① د صفيه رضي الله عنها په ژوند كښې هغې سره ملاقات اوشى چه دخپل مينځ خبرې چه د ښځې خاوند په مينځ كښې راز وى هغه اوشى

② صفيه رضي الله عنها بيماره ود اوخاوندنى په سفروو زر رسيدو سره هغه خوشحالول مقصد وو په كوم سره چه په بيمارئى كښې د افاقه كيدو امكان وى

③ د دې نه د هغوى د تواضع اود تكبرنه د ويزاره كيدو هم اظهاركيږى ؟ [۱]

## باب ۱۳۵: إذاحمل على فرسٍ فرآهاتباع

**د ترجمة الباب مقصد** - د علامه قسطلانى رحمه الله په نيزد ترجمة الباب مقصد دادې چه په جهاد كښې د استعمال په غرض هبه كړې شوې اس باره كښې كه صدقه كونكى ته معلومه شى چه داخرڅوى نوآيا صدقه كونكې پخپله دا اخستې شى؟ [۲] د دې جواب د باب لاندې وركړې شوى حديث كښې راغلې دې په دې وجه امام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب كښې د جواب تصريح نه ده كړې

ليكن حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه علامه قسطلانى رحمه الله د كومې مسئلې طرف ته اشاره كړې ده هغه مختلف فيها ده اود صحيح بخارى كتاب الزكوة كښې باب هل يشترى صدقته لاندې تيرشوى دى په دې وجه كه چرې ترجمة الباب رجوع فى الهبه په معنى باندې محمول كړې شى اوډيرد قرين قياس هم دغه ده ، نومستبعدنه ده په دې صورت كښې به د ترجمة الباب مقصد داشى كه چاد الله تعالى په لاركښې د جهادپه غرض سره اس صدقه كړو روستوورته معلومه شوه چه هغه دا د ده د رضا نه خلاف خرڅوى نو په دې صورت كښې صدقه كونكى ته د خپلې هبه د رجوع كولو اختيارشته كه نه؟[۳]

حديث نمبر ۲۸۴۰ [۴] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ- رضى الله عنهما أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَمَلَ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَوَجَدَهُ يُبَاعُ، فَأَرَادَ

---

[۱] ) شرح ابن بطال: ۱۵۶/۵.

[۲] ) إرشاد السارى: ۴۷۳/۵.

[۳] ) قال المحديث الكاندهلوى رحمه الله (الابواب والتراجم ص:۲۰۱) قلت والمسئلة التى أشار إليها القسطلانى خلافية تقدمت فى باب هل يشترىٰ صدقته من كتاب الزكوة. ولايبعد عندى أن يحمل الترجمة على معنى الرجوع ى الهبة. فالمغنى إذا تصدق رجل فرسا ليجاهد عليه فى سبيل الله ثم رأى المتصدق أنها تباع على خلاف ما أراد من التصدق. فهل يرجع فى تلك الصدقة أم لا؟

[۴] ) مرتخريجه فى كتاب الزكوة. باب هل يشترى صدقته؟ ... رقم:۱۴۹۰.

أَنْ يَبْتَاعَهُ ، فَسَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ « لاَ تَبْتَعْهُ ، وَلاَ تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ.[ر ۱۴۱۸]

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن یوسف**:- دا عبدالله بن یوسف تنیسی دمشقی رحمه الله دې د دوی حالات بدء الوحی کښې تیرشوی دی .[1]

② **مالک** - دا امام دارالهجرة ابوعبدالله مالک بن انس بن مالک اصبحی مدنی دې د دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی .[2]

③ **نافع** -دا ابوسهیل نافع بن مالک اصبحی تمیمی دې د دوی حالات هم د کتاب الایمان لاندې وړاندې تیرشوی دی .[3]

④ **عبدالله بن عمر** رضی الله عنهما:- دا مشهورصحابی رسول عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې د دوی حالات کتاب الایمان لاندې تیر شوی دی .[4]

⑤ **عمربن الخطاب** رضی الله عنه:- دا حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه دې د دوی حالات هم کتاب الایمان لاندې تیرشوی دی .[5]

أن عمربن الخطاب رضی الله عنه حمل علی فرس له فی سبیل الله، فوجده یباع، فاراد أن یتباعه. حضرت عمر رضی الله عنه د الله تعالی په لارکښې یواس د سورلئی دپاره ورکړو بیا ئې هغه دا خرڅول اولیدل نو دانی غوښتل چه پخپله ئې واخلی

په طبقات ابن سعد کښې دی چه د دغه اس نوم ورد وو کوم چه تمیم داری رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هدیه په توګه ورکړې وو روستو بیاحضورپاک حضرت عمر رضی الله عنه ته هدیه کړو .[6]

حضرت عمر رضی الله عنه دا اس دوباره ولې اخستل غوښتل؟ د دې دوه وجوهات دی ① یو دا چه هغه ښکلې ښائسته او تیزوو د حضرت عمر رضی الله عنه په استعمال کښې پاتې وو اوهغوی ته د ده خوبیانې معلومې وې په دې وجه ئې غوښتل دا دوباره واخلی د صحیح مسلم د روایت نه هم دغه معلومیږی چه حضرت عمر رضی الله عنه د دې اس د ښکلې والی معترف وو د روایت الفاظ دی. حملت علی فرس عتیق في سبیل الله [7] امام نووی رحمه الله وائی چه عتیق ښکلې مزیدار او تیزرفتاراس ته وئیلې شی .[8]

---

[1] ) کشف الباریک ۲۸۹/۱.

[2] ) کشف الباری:۸۰/۲.

[3] ) کشف الباری:۲۷۱/۳.

[4] ) کشف الباری:۶۳۷/۱.

[5] ) کشف الباری:۴۷٤/۲.

[6] ) طبقات ابن سعد:۴۹۰/۱.

[7] ) صحیح مسلم: ۲/ کتاب الهبات باب کراهیة الانسان ماتصدق به ممن تصدق علیه.

[8] ) قال النووی رحمه الله: العتیق: الفرس النفیس الجواد السابق انظرشرح النووی علی صحیح مسلم:۳۶/۲.

(۲) دویمه وجه دا کیدې شي چه دا اس رسول الله ﷺ هغه ته هبه کړې وو د کوم ذات سره چه د حضرت عمر رضي الله عنه ډیره زیاته مینه اوعقیدت وو ممکن ده چه د دغه عقیدت د وجه نه ئې دا اخستلو سره د دوباره حاصلولو خواهش ئې پیدا شوې وي (والله اعلم)

**قوله:** فسأل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فقال: لاتبتعه ولاتعد في صدقتك:- حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو هغوی اوفرمائیل دا مه اخله او په خپله صدقه کښې دوباره واپس کړه حضرت عمر رضي الله عنه هغه اس په بیع اخستلو سره حاصلول غوښتل بیا رسول الله ﷺ دا معامله عودفي الصدقة فرمائیلو سره حضرت عمر رضي الله عنه د بیع نه ولې منع کړو؟ د دې جواب دادې چه هغه اس حضرت عمر رضي الله عنه هدیه کړې وو که هغه ده اخستې وې نو متصدق علیه به د هغوی د احسان لاندې راتلو د وجه نه مروتاً قیمت کښې کمي کولو ښکاره خبره ده چه کله یوسړې چاته بغیر قیمت نه هبه یا هدیه کړې او بیا هغه واهب یا متصدق هغه څیز موهوب له یاد متصدق علیه نه اخلي نو هغه موهوب له او متصدق علیه په قیمت کښې کمي کوي. لهذا هغه سړې چه په قیمت کښې کمي کوي په دې اعتبار سره به حضرت عمر رضي الله عنه عودفي الصدقة کونکې کیدو. (۱)

**ترجمة الباب سره مناسبت:-** حضرت شیخ الحدیث رحمه الله چه د ترجمة الباب کومه توجیهه کړې ده د هغې پیش نظر ترجمة الباب سره به د روایت تطبیق داسې کیږي چه حضرت عمر رضي الله عنه واهب او متصدق وو د هغوی د احسان لاندې د راتلو د وجه نه موهوب له او متصدق علیه په قیمت کښې کمي کوي نو حضرت عمر رضي الله عنه عودفي الصدقة مرتکب کیدو په دې وجه نبی کریم ﷺ هغه ته د اس د اخستلو اجازت ورنه کړو او وئې فرمائیل لاتبتعه ولاتعد في صدقتك او د ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې.

**په فرس باندې متصدق علیه د ملکیت مسئله:-** کله چه صدقه کونکې د جهاد په نیت اس هدیه کړي نو چه په چا باندې صدقه کړې دې هغه له په دې باندې د ذاتي مال په شان تصرف حاصل دې. او هغه به د ده ملکیت وي یا به هغه اس وقف وي. دا په جهاد کښې د استعمالولو نه پس به بیت المال ته واپس کول ضروري وي؟ په دې کښې اختلاف دې

امام مالك رحمه الله په دې مسئله کښې د متصدق د الفاظو اعتبار کړې دې. هغه فرمائي که متصدق د صدقه په وخت وهولك في سبيل الله اووئیل نو د متصدق علیه ملکیت به په دغه اس باندې تام شي. او په دې باندې به هغه ته د ذاتي مال په شان د تصرف حق حاصل شي او که چرې متصدق د صدقه کولو په وخت هو في سبيل الله اووئیل نو بیا به د دغه اس حیثیت د وقف وي (۲) لهذا په جهاد کښې د استعمال نه پس په متصدق علیه باندې دغه اس په بیت

---

(۱) إرشادالساری ۶/۴۷۳ قال القسطلانی: سمی الشراء عوداً فی الصدقة. لان العادة جرت بالمسامحة من البائع فی مثل ذلک للمشتری فاطلق علی القدر الذی یسامح به رجوعاً.

(۲) شرح ابن بطال: ۵/۱۵۷.

المال كښې حواله كول واجب وى
د متصدق په اول اودويم قول كښې فرق دې. په قول اول كښې د متصدق عليه د ملكيت تصريح ده په كوم چه هولك الفاظ دال دى. او په قول ثانى كښې على الطلاق هوفى سبيل الله سره د وقف حيثيت مستفاد كيږى لهذا د امام مالك رحمه الله په نيزد دواړو صورتونو كښې به د صدقه حيثيت جدا جدا وى په اول صورت كښې د متصدق عليه ملكيت او دويم صورت كښې وقف يا بيت المال حصه جوړيدو سره د مجاهدين اسلام عمومى ملكيت
امام اعظم رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائى چه هغه اس به د متصدق عليه ذاتى ملكيت جوړيږى او په دې به هغه ته هم هغه شان د تصرف حق حاصل وى كوم چه په ذاتى اموالو باندې حاصل وى. (۱) په دې وجه په جهاد كښې د استعمال نه پس به هغه اس په بيت المال كښې جمع كول واجب نه وى
چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د روايت الفاظ په ظاهره هم په دې باندې دلالت كوى چه حضرت عمر رضى الله عنه هغه اس د تمليك په توګه صدقه كړې وو. نو د وقف شوى څيز بيع جائز نه ده په دې وجه كه دغه اس وقف وې نو حضرت عمر رضى الله عنه به هغه هيڅ كله نه اخستلو. د باب په دويم روايت كښې العائد فى صدقته نه هم معلوميږى چه دا صدقه د تمليك وه كه وقف وې نو هغوى العائد فى حبسه يا العائد فى وقفه فرمائيل. (۲) والله اعلم.

حديث نمبر ۲۸۴۱] (۳) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رضى الله عنه - يَقُولُ حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَابْتَاعَهُ - أَوْ فَأَضَاعَهُ - الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ، فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ، وَظَنَنْتُ أَنَّهُ بَائِعُهُ بِرُخْصٍ، فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «لاَ تَشْتَرِهِ وَإِنْ بِدِرْهَمٍ، فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ». [ر: ۱۴۱۹]

## رجال الحديث

① **اسماعيل**:- دا ابوعبدالله بن ابى اويس اصبحى مدنى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الايمان كښې تيره شوې ده. (۴)
② **مالك**: دا امام مالك بن انس رحمه الله دې. د دوى تذكره هم كتاب الايمان كښې تيره شوې ده (۵)

---

(۱) شرح ابن ابطال: ۱۵۷/۵.
(۲) فتح البارى: ۴۴۵/۳ ويدل على أنه حمل تمليك قوله ولاتعد فى صدقتک ولوكان حبسا لعلله به. كتاب الزكوة باب هل يشترى صدقته؟
(۳) قد مرتخريجه فى كتاب الزكوة، باب هل يشترى صدقته؟ ولاباس بان يشترى صدقة غيره، لان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم إنما نهى المتصدق خاصة عن الشراء ولم ينه غيره. رقم: ۱۴۹۰.
(۴) كشف البارى: ۱۱۳/۲.
(۵) كشف البارى: ۸۰/۲.

④ **زيدبن اسلم** - داابواسامه يا ابوعبدالله زيدبن اسلم قرشى عدوى مدنى رحمة الله عليه دې د دوى تذكره هم كتاب الايمان كښې تيره شوې ده (١)

④ **ابيه** - دې نه دَعمر بن الخطاب رضي الله عنه آزادكړې شوې غلام اسلم العدوى مرادې دَدوى تذكره كتاب الزكوة كښې تيره شوې ده (٢)

⑤ **عمر بن الخطاب رضي الله عنه** - دادويم خليفه حضرت عمربن خطاب رضي الله عنه دى د دوى تذكره كتاب الايمان كښې تيره شوې ده (٣)

**سمعت عمربن الخطاب رضي الله عنه يقول: حملت على فرس فى سبيل الله، فابتاعه أو فاضاعه الذى كان عنده، فاردت أن أشتريه** راوى وائى چه ماحضرت عمربن خطاب رضي الله عنه داسې فرس نيلوس: واوريدو چه ئې فى سبيل الله دَ سورلئى دپاره يواس وركړو،كوم سړى ته چه ئې وركړې وو هغه خرخول غوښتل (يائى اوفرمائيل چه) هغه ئې ضايع كړو په دې وجه ماپه بيع داخستلو اراده اوكړه ما اوونيل چه هغه به دا په ارزان قيمت باندې خرڅه وى

**فابتاعه مطلب** - دا دَ باعه په معنى كښې ده (٤) علامه عينى رحمة الله عليه وائى كه دا دَ بعته په معنى كښې وانخستې شوه نو ابتاعه به يوبې معنى لفظ شي په ظاهره هم دامعلوميږى چه ابتيع دلته دَ بيع په معنى كښې دې.(٥) دويم قول دادې چه دا دَ راوى تصحيف دې په اصل كښې دَ اباعه دې او عرضه للبيع په معنى كښې دې (٦)

علامه رشيداحمدگنگوهى رحمة الله عليه دلته يوه منفردتوجيه كړې ده هغه فرمائى چه فبتعته دَ متكلم صيغه فابتاعه هم كيدې شي دكوم معنى چه دَه اردت ابتياعه لكه چه دلته دَماضى يوه قريبى واقعه په صيغه دَ استقبال بيان كړې شوه (٧) دويمه خبره هغه دافرمائيلې چه كه چرې فابتاعه دَماضى غائب صيغه وى نوبيا داالالتفات من المتكلم الى الغائب دَ قبيل نه به وى (٨) چه په عربوكښې يوبليغ اسلوب دې مطلب دادې چه معنى به بياهم دَمتكلم وى والله اعلم

**أوفاضاعه** - اومفيد شك دې (٩)

**دَضايع كولوڅه مطلب دې؟** شراح حديث دَدې جملې په تشريح كښې درې اقوال نقل كړى دى

---

(١) كشف البارى: ٢٠٣/٢.

(٢) كتاب الزكوة باب هل يشترى صدقته؟ ولاباس أن يشترى صدقة غيره. لان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم إنما نهى المتصدق خاصة عن الشراء ولم ينه غيره. رقم: ١٤٩٠.

(٣) كشف البارى: ٤٧٤/٢.

(٤) عمدة القارى: ٢٤٧/١٤ وإرشاد السارى: ١٣٩/٥.

(٥) عمدة القارى: ٢٤٧/١٤ وإرشاد السارى: ١٣٩/٥.

(٦) عمدة القارى: ٢٤٧/١٤ وإرشاد السارى: ١٣٩/٥.

(٧) لامع الدرارى: ٢٧١/٧.

(٨) لامع الدرارى: ٢٧١/٧.

(٩) فتح البارى: ١٧٢/٦ وعمدة القارى ٢٤٧/١٤.

① رومبي قول دادي چه هغه سړي به د اس خدمت او خيال كولوكښې كوتاهي كوله خوراك اوكيابه ئې هم ورته صحيح نه وركوله [١]
② بعض حضرات وائي چه داس د قدراوقيمت نه ناخبره وو اوهغه ئې په كم قيمت باندې خرڅولو [٢]
③ يوقول دادې چه حضرت عمر رضی الله عنه د كوم مقصد دپاره دغه اس هديه كړې وو هغه د هغه د مقصد دپاره نه استعماليدلو [٣]
رومبې قول راجح دې او ددې تائيد د صحيح مسلم د روايت نه كيږي په كوم كښې چه دى: فوجدته قد أضاعه وكان قليل المال [٤] او د وكان قليل المال د الفاظونه د ضيع علت معلوم شو چه د متصدق عليه دغربت د وجه نه به اس ته ښه گياه ملاويدله يابه ورته په وخت نه شوه وركولې د څه په نتيجه كښې چه هغه ناكاره شو

**قوله** :وظننت أنه بائعه برخص - حضرت عمر رضی الله عنه فرمائي چه زما خيال ووچه هغه به دااس په ارزان قيمت باندې خرڅه وي رخص (د راء په ضمه اوخ په سكون سره) د دې معنى ده ارزان كم قيمت او غلاء د دې ضد دې [٥]

فسالت رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فقال: لاتشتره وإن بدرهم فان العائد فى هبة كالكلب يعود فى قيئه. ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوكړو نوحضورپاك اوفرمائيل چه په يو درهم كښې ئې هم مه اخله ځكه چه صدقه وركول اوواپس اخستل د سپي په شان دى چه قې اوكړي اوواپس ئې اوخثي علامه قسطلانى رحمه الله فرمائي چه لاتشتره كښې نهي تنزيهي ده او په مبالغه باندې محمول دى وإن بدرهم الفاظ هم مبالغتا استعمال شوى مطلب دادې چه كه دومره ارزان نرخ باندې ملاؤشي نوبياهم دا مه اخله. [٦]
په روايت كښې د صدقه يا هبه متعلق دا تعليم وركړې شوې دې چه په دې كښې رجوع كول ډير زيات ناخوښه او قبيح عمل گرځولې شوې دې ددې مثال ئې د سپي سره وركړې دې چه قې اوكړي اوهغه بيا اوخثي. مطلب دا چه په صدقه يا هبه كښې رجوع كول داسې ناخوښه عمل دې لكه چه سړې قې اوكړي او بيائى اوخثي. علامه قسطلانى رحمه الله فرمائي چه دلته صدقه كښې رجوع كونكې سپي سره او صدقه او هبه قې سره او رجوع فى الصدقه د رجوع الكلب

[١] ) شرح صحيح مسلم للنووى: ٣٦/٢ كتاب الهبات باب كراهة شراء الانسان ماتصدق به ممن تصدق عليه. فتح البارى:٤٤٥/٣ كتاب الزكوة باب هل يشترى صدقته؟
[٢] ) تكملة فتح الملهم:٥١/٢.
[٣] ) تكملة فتح الملهم:٥١/٢.
[٤] ) صحيح مسلم للنووى: ٣٦/٢ كتاب الهبات باب كراهة شراء الانسان ماتصدق به ممن تصدق عليه.
[٥] ) مجمع البحار:٣١٠/٧.
[٦] ) إرشاد السارى:١٣٩/٥.

لی قیئه سره تشبیه ورکړې شوې ده خلاصه دا ده چه په دې تشبیه سره رجوع لی الصدقه قباحت بیانول مقصود دی (۱)

**ترجمة الباب سره مناسبت** - په حدیث باب کښې دی لاتشتره....... فان العائد لی هبته کالکلب یعود لی قیئه. په دې کښې دعود في الصدقة کراهت بیان کړې شوې دې حضرت شیخ الهند رحمه الله چه د ترجمة الباب کومه توجیه کړې ده دهغې په رڼا کښې د ترجمة الباب سره د روایت ددې جملې مناسبت واضحه دې

## باب ۱۳۶: الجهاد باذن الابوین

**د ترجمة الباب مقصد** - د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه د جهاد دپاره د والدین نه اجازت اخستل ضروری دی علامه عینی رحمه الله فرمائي چه د جهاد احکام په مختلفو احوالو اوظروفو کښې بدلیږی او په دې کښې د ائمه د اختلاف تفصیل هم دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمه مطلق اوساتله او د تفصیل مذاهب طرف ته ئې اشاره اونه فرمائیله (۲)

[حدیث نمبر ۲۸۴۲] (۳) حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا حَبِيبُ بْنُ أَبِي ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا الْعَبَّاسِ الشَّاعِرَ - وَكَانَ لاَ يُتَّهَمُ فِي حَدِيثِهِ - قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو - رضى الله عنهما - يَقُولُ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَاسْتَأْذَنَهُ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ «أَحَيٌّ وَالِدَاكَ». قَالَ نَعَمْ. قَالَ «فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ». [۵۶۲۷]

## رجال الحديث

① **ادم**:- دا ابوالحسن آدم بن ابی ایاس عبدالرحمن العسقلانی رحمه الله دې ددوی تذکره کتاب الایمان کښې تیره شوې ده. (۴)

② **شعبة**:- دا امیرالمؤمنین شعبة بن الحجاج بصری رحمه الله دې ددوی تذکره هم کتاب الایمان کښې تیره شوې ده (۵)

---

(۱) إرشاد الساري:۵/۱۳۹.

(۲) عمدة القاري: ۱۴/۲۵۱ كذاأطلق ولكن فيه خلاف وتفصيل. فلذلک أبهم.

(۳) وعندالبخاری ایضًا (۲/۸۸۳) فی الادب باب لایجاهدإلا باذن الابوین رقم: ۵۹۷۲. وعند مسلم فی صحیحه (۲/۳۱۳) قد مرتخریجه فی کتاب الزکوة. باب هل یشتری صدقته؟ولاباس بان یشتری صدقة غیره. لان النبی صلی فی کتاب البروالصلة والادب. باب بروالوالدین وأیهما أحق به رقم: ۶۵۰۴. وعند الترمذی فی جامعه (۱/۲۹۶)فی الجهاد باب ماجاء فیمن خرج إلی الغزو وترک أبویه رقمک ۱۶۷۱. وعندأبی داؤد فی سننه (۱/۳۴۹) فی الجهفاد باب فی الرجل یغزو وأبراه کارهان رقم: ۲۵۲۹وعند السنائی فی سننه (۲/۵۳) فی الجهاد باب الرخصة فی التخلف لمن له والدان رقم:۳۱۰۵.

(۴) کشف الباری: کتاب الایمان ۱/۶۷۸.

(۵) کشف الباری: کتاب الایمان ۱/۶۷۸.

④ **حبیب بن ابی ثابت** - دا ابویحیی قیس بن دیناراسدی کوفی رحمه الله دی. ددوی تذکره کتاب الصوم کښې تیره شوې ده [1]

⑤ **ابوعباس الشاعر** - دا سائب بن فروخ شاعرمکی رحمه الله دی ددوی تذکره کتاب التهجد کښې تیره شوې ده [2]

**قوله وکان لایتهم فی حدیثه** - یعنی د سندراوی ابوالعباس باندې به په روایت حدیث کښې تهمت نه شولګولې. شاعران اکثرمبالغه آرائی کوی دلته په سند کښې دحبیب بن ابی ثابت شیخ ابوالعباس سائب بن فروخ محدث کیدو سره شاعرهم وو وکان لایتهم في حدیثه نه د امام بخاری رحمه الله مقصددادې چه ابوالعباس زښتونې وو شاعرخوو لیکن دهغه شاعرانه کلام د عربودعاموشاعرانو په شان د مبالغه او افتراپردازئی نه پاک وو [3] په خپل دې وصف باندې هغه د حدیث په روایت کښې یولوړمقام لرلو اومتهم بالکذب نه وو مختصردا چه د وکان لایتهم في حدیثه قیدلګولوسره امام بخاری رحمه الله د ابوالعباس رحمه الله توثیق کړې دې چه ددوی روایات مقبول دی اوهغه دعامو مبالغه کونکوشاعرانو په شان نه کړنې.

⑥ **عبدالله بن عمرو** رضی الله عنهما - ددوی حالات هم په کتاب الایمان کښې تیرشوی دی [4]

**جاء رجل إلى النبی صلی الله تعالی علیه وسلم فاستاذنه فی الجهاد فقال أحی والداك؟ قال: نعم، قال: ففیهما فجاهد** یعنی عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یوسړې حاضرشو اودهغوی نه جهادته دتللو اجازت اوغوښتلو. حضورپاك اوفرمائیل ستا مورپلارژوندی دی؟ هغه وئیل اوجی حضورپاك اوفرمائیل نوبیا هم په هغه دواړوکښې جهاداوکړه

**د رجل نه څوک مراددې؟** - د باب په روایت کښې د نوم تصریح نشته چه دا څوك وو البته د نورو روایاتونه ثابتیږی چه دا جاهمه بن عباس وو چه په جهادکښې د شرکت د اجازت د پاره د رسول الله ﷺ خدمت کښې حاضرشوې وو. چنانچه امام احمد او امام نسائی رحمهم الله د معاویه بن جاهمه په طریق یوروایت نقل کړې دې په هغې کښې دی: **أن جاهمة جاء إلى النبی صلی الله تعالی علیه وسلم فقال یارسول الله! أردت الغزو وجئت لاستشیرك، فقال: هل لك من أم؟ قال: نعم: قال: الزمها.**[5] یعنی جاهمه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو عرض ئې اوکړو یارسول الله! زماجهاد ته د تللو خواهش دې تاسو سره د مشورې د پاره حاضرشوې یم. حضور پاك اوفرمائیل آیاستامورژوندۍ ده؟ هغه وئیل اوجی حضورپاك اوفرمائیل هم هغې سره اوسیږه.

---

[1] ) کتاب الصوم باب صوم داؤد علیه السلام رقم:۱۹۷۹.
[2] ) کتاب التهجد باب بعدمایکره من ترک قیام اللیل لمن کان یقومه رقمک۱۱۵۳.
[3] ) عمدة القاری: ۲۴۸/۱۴ وإرشادالساری: ۱۳۹/۵ وتحفة الباری:۴۸۶/۳.
[4] ) کشف الباری: کتاب الایمان: ۶۷۹/۱.
[5] ) رواه النسائی فی سننه:۵۳/۲ فی کتاب الجهاد باب الرخصة فی التخلف لمن له والدة، وأحمد فی مسنده:۴۲۹/۳ وفتح الباری:۱۷۳/۶.

په دې روایت کښې تصریح ده چه جهادته د تللودپاره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدونکې سړې هم جاهمه وو دغه شان امام بیهقی رحمه الله عن ابن جریج عن محمدبن طلحة بن رکانه عن معاویة بن جاهمه السلمی عن ابیه په طریق سره روایت نقل کړې دې د کوم راوی چه پخپله هم جاهمه دې هغه وائی أتیت النبی صلی الله تعالی علیه وسلم أستاذنه فی الجهاد [۱]
زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د جهاد د اجازت اخستلودپاره حاضرشوم

**قوله: ففیهما فجاهد** - د مفهوم د ادائیګئی دپاره خو فجاهد فیهما تعبیرهم صحیح وو خو ففیهما جارمجرور د اختصاص دپاره د امر نه مقدم کړو د کوم نه چه د موریلار اهمیت اودهغوی خدمت مقدم کولوتاکید مقصوددې حافظ ابن حجرعلامه عینی او علامه قسطلانی رحمهم الله فرمائی چه دلته فجاهد ظاهری معنی مرادنه ده کوم چه په اضرار یعنی چاته د ضرراوتکلیف رسولوپه معنی کښې استعمالیږی بلکه دالفظ د مشاکلت په توګه واردشوې دې جاهمه د جهاد د اجازت دپاره راغلې وو نوحضورپاك په دغه مناسبت سره اخدمتهما په ځائی د مشاکلت د پاره فجاهد اوفرمائیل په نورو الفاظوکښې داسې وئیلې شی چه دلته قدرمشترك مراد دې په جهادکښې مال خرچ کیږی او بدن سترې کیږی نولکه چه حضورپاك جاهمه ته د موریلار خدمت کولوسره دنفس اودمال د جهاد حکم ورکړو فجاهد تعبیربه دې مناسبت سره داسې شی أبذل مالك وأتعب بدنك فی رضا والدیك [۲] یعنی ته دموریلارد رضادپاره خپل مال خرچ کړه او خپل بدن سترې کړه

خوعلامه شوکانی رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائی: لایخفی أن کون المفهوم من تلك الصیغة إیصال الضرر بالابوین إنما یصح قبل دخول لفظ فی علیها، وأما بعد دخولها، کما هوالواقع فی الحدیث، فلیس ذلك المعنی هوالمفهوم منها، فانه لایقال جاهد فی الکفار بمعنی جاهدهم کما یقول جاهد فی الله، فالجهاد الذی یراد منه إیصال الضرر لمن وقعت المجاهدة له هو. جاهده لاجاهد فیه وله. [۳]
یعنی د صیغه فجاهد استعمال إیصال الضرربالابوین په معنی کښې به هله صحیح وی کله چه په دې باندې في حرف جرداخل وی مطلب دا چه مطلقا صیغه فجاهد خود ایصال الضرر والا په معنی باندې دلالت کوی خوکه په دې باندې في حرف جرداخل کړې شی لکه چه په حدیث باب کښې وارد دې نوبیابه ددې معنی ایصال ضررنه وی جاهد الکفار چه د ایصال ضرر په معنی کښې مستعمل دې په ځائی جاهدفی الکفارونیل به صحیح نه وی مختصردا چه مطلقا صیغه جاهد نه ایصال ضرر معنی مراد وی لیکن جاهد فیه یا جاهدله د محنت اومشقت په معنی کښې استعمالیږی نولکه چه دعلامه شوکانی رحمه الله په نیز ففیهما فجاهد نه ایصال ضرر معنی مرادنه ده بلکه داد محنت اوکوشش په معنی کښې دې په روایاتوکښې دغه شان

---

[۱] السنن الکبری للبیهقی: ۲۶/۹ کتاب السیر باب الرجل یکون له أبوان مسلمان أوأحدهما فلا یغزوإلا باذنهما.
[۲] عمدة القاری: ۳۴۸/۱۴ وفتح الباری: ۱۷۳/۶ وإرشاد الساری: ۱۳۹/۵.
[۳] نیل الاوطار للشوکانی: ۴۰/۹.

نور واقعات هم نقل دی چه د جهاد اجازت دپاره خوك راغلل نو حضورپاك هغوی ته د جهاد په خائی د مورپلار د خدمت حکم ورکړو

صحیح مسلم کښې عن ناعم مولی ام سلمة عن عبدالله بن عمرو په طریق سره روایت مروی دی چه یوسړی د رسول الله ﷺ په لاس مبارك باندې د هجرت او جهاد بیعت کولوخواهش ښکاره کړو حضورپاك د هغه نه تپوس اوکړو فهل من والدیك أحدحی؟ آیا ستاوالدین کښې څوك ژوندی شته؟ هغه عرض اوکړو اوجی دواړه ژوندی دی حضور پاك اوفرمائیل ارجع إلی والدیك فاحسن صحبتهما[۱] خپل مورپلار له لاړشه اوهغوی سره اوسیدو کښې ښه سلوك کوه.

په یوبل طریق سره هم دغه روایت سنن ابوداؤد کښې هم نقل دې په هغې کښې دی یوسړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو عرض ئې اوکړو جئت أبایعك علی الهجرة وترکت أبوی یبکیان یعنی زه تاسونه په جهاد باندې بیعت کولوته راغلې یم اوخپل مورپلارمې په داسې حال کښې پریخودی راغلې یم چه هغوی ژړل رسول الله ﷺ اوفرمائیل ارجع فاضحکهما کما أبکیتهما[۲] خپل مورپلارله لاړشه خنگه چه دې هغوی ژړولی هم هغه شان ئې اوخندوه.

په مذکوره روایاتو کښې رسول الله ﷺ سائل ته د جهاد په خائی د والدین د خدمت حکم ورکړو خو په صحیح ابن حبان کښې د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما یوروایت دې جاء رجل إلی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فساله عن أفضل الاعمال، قال: الصلوة. قال ثم مه؟ قال الجهاد. قال فان لی والدین، قال آمرك بوالدیك خیرا. فقال والذی بعثك بالحق نبیاً لاجاهدن ولاترکنهما. قال: فانت أعلم.[۳]

د رسول الله ﷺ په خدمت کښې یوسړې حاضرشو هغه د حضورپاك نه سوال اوکړو چه د ټولونه بهترعمل کوم یو دې؟ حضورپاك اوفرمائیل مونځ هغه عرض اوکړو بیاکوم یوعمل غوره دې؟ حضورپاك اوفرمائیل جهاد. هغه عرض اوکړو زما مور پلار ژوندی دی حضورپاك اوفرمائیل زه تاته د مورپلارسره د ښه سلوك کولوحکم درکوم هغه عرض اوکړو په خدائی چاچه ته په حقه سره نبی جوړکړې رالیگلې زه به ضرور جهاد کوم اومورپلاربه پریږدم اوخم به. حضورپاك اوفرمائیل ته ډیرپوهیږې

د وړاندې ذکرشوو روایاتوسره د دې روایت تطبیق ورکولوسره د حدیث شارحین فرمائی چه دا روایت فرض عین جهاد باندې محمول دې کله چه د جهادنفیرعام وی او فرض عین شي نو د مورپلار د خدمت حکم ساقط کیږی[۴] په دې وجه په دې روایت کښې د والدین د خدمت د حکم نه باوجود چه سائل جهادته د تللو خواهش ښکاره کړو نوحضورپاك نکیراونه فرمائیلو په

[۱] صحیح مسلم:۲/۳۱۳کتاب البر والصلة باب برالوالدین وأیهما أحق به رقم:۲۵۴۹.
[۲] سنن أبی داؤد:۱/۳۴۲ کتاب الجهادباب فی الرجل یغزو لغیره وأبواه کارهان رقم: ۲۵۳۰.
[۳] صحیح بخاری ابن حبان باب فضل الصلوات الخمس رقم:۱۷۱۹.
[۴] فتح الباری:۶/۱۷۳ وعمدة القاری: ۱۴/۲۴۸ وفتح القدیر:۵/۱۹۱ وتکملة فتح الملهم:۵/۳۳۰.

كومو روايتونو كښې رسول الله ﷺ د والدين د خدمت حكم وركړې وو هغه وخت جهاد فرض عين نه وو فرض كفايه وو نفيرعام نه كيدو په صورت كښې د يوځوكسانو تللوسره فرض كفايه اداكيږي اوخدمت محتاج والدين پريخودل اوجهادته تلل جائزكيږي نه په دې وجه حضورپاك د والدين دخدمت حكم وركړو

**په جهادكښې دموريلارد اجازت حيثيت** - جمهورفقهاء امام ابوحنيفه، امام مالك امام شافعي امام احمد او سفيان ثوري رحمهم الله فرمائي كه نفيرعام نه وي اوجهادفرض كفايه وي نودموريلارد اجازت نه بغيرجهاد ته تلل جائز نه دي د والدين خدمت فرض عين او جهاد فرض كفايه دې فرض عين پريخودل او فرض كفايه اداكول گناه ده (١) ددوي استدلال د حديث باب صحيح مسلم اوسنن ابوداؤد مذكوره رواياتونه دي چه رسول الله ﷺ سائل نه د جهاد په ځائي د والدين د خدمت حكم وركړو

البته كه نفيرعام وي اوجهادفرض عين وي نو په دغه صورت كښې په ټولو مسلمانانو باندې وتل واجب دى د والدين اختيارباقي نه پاتې كيږي د هغوي د اجازت نه بغيرتلل واجب دى (٢) علامه ابن حزم مراتب الاجماع كښې فرمائي كه په جهادكښې د شركت په وجه د والدين د هلاكت يا ضياع انديښنه وي نوبالاجماع د جهادفرضيت ساقط كيږي خوكه د خان د هلاكت انديښنه نه وي نوبياهم وتل د جمهورو په نيز د والدين په اجازت باندې موقوف دي (٣) علامه ابن حزم رحمه الله چه د جمهوروطرف ته د كوم مذهب نسبت كړې دې په هغې كښې د ده نه تسامح شوې ده. صحيح دادې چه د جمهورو په نيز كه د والدين د ضياع انديښنه وي نود جهاد فرضيت نه ساقطيږي دهغوي د اجازت نه بغيرجهادته تلل جائزدي مسنداحمد او مستدرك حاكم كښې دعمرو الغفاري مرفوع روايت دې لاطاعة لمخلوق في معصية خال (٤)

علامه ظفراحمد عثماني رحمه الله ددې نه استدلال كولوسره فرمائي: **فيه دلالة على أنه لاحاجة إلى إذن الوالدين، إذا كان الجهاد فرض عين، وإن منعاه عنه فلا طاعة لهما.**(٥) يعني دا روايت په دې باندې استدلال كوي چه كله جهاد فرض عين وي نود والدين اجازت ضروري نه دې كه چرې هغوي د وتلو نه منع كوي نودهغوي اطاعت جائزنه دې

د احنافو او شوافع په نيز جد او جده يعني نياانيكه دواړه دوالدين په حكم كښې دي. (٦) يعني د جهادفرض كفايه كيدو په صورت كښې دهغوي خدمت به واجب وي اوكه فرض عين وي نو خروج به واجب وي اود هغوي اطاعت به جائزنه وي

**كه چرې والدين مسلمانان نه وي؟** - د جمهورفقهاؤ په نيز كه چرې والدين غيرمسلم وي نو

---

(١) فتح الباري:٦/١٧٣ وعمدة القاري: ١٤/٢٤٨ وفتح القدير:٥/١٩١ وتكملة فتح الملهم:٥/٣٣٠.
(٢) فتح الباري:٦/١٧٣ وعمدة القاري: ١٤/٣٤٧.
(٣) عمدة القاري:١٤/٣٤٧.
(٤) مسندأحمد٥/٦٦. ومستدرك حاكم:٣/٤٤٣ مناقب الحكم بن عمر الغفاري.
(٥) إعلاء السنن: ١٢/١٣.
(٦) فتح الباري:٦/١٧٣ وإعلاء السنن: ١٢/١١.

هغوی نه د فرض کفایه جهاد په صورت کښې هم د اجازت اخستلو ضرورت نشته (۱)
سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه د غیرمسلم والدین هم هغه حکم دې کوم چه د مسلمان والدین حکم دې لهذا د غیر مسلم والدین نه هم اجازت اخستل ضروری دی د هغوی دلیل دا دې چه په کوموروایاتو کښې رسول الله ﷺ سائل ته د جهاد په ځائې د والدین د خدمت حکم ورکړې په دې کښې عموم دې چه والدین کافروی یا مسلمان د هغوی د خدمت مطلقا حکم دې په کوم کښې چه کافراومسلمان والدین دواړه شامل دی لهذا چه څنګه د مسلمان والدین نه اجازت اخستې شی هغه شان به د کافر والدین نه اجازت هم اخستل ضروری وی (۲)
د جمهورو استدلال دا دې چه د صحابه کرام رضی الله عنهم یولونی تعداد په جهاد کښې شرکت کړې دې دکومو والدین چه کافران اومشرکان وو لکه ابوبکر صدیق، ابوحذیفه بن عتبه او ابوعبیده رضی الله عنهم ابوحذیفه بن عتبه د رسول الله ﷺ سره په جنګ بدر کښې شریك وو د دوی پلار رئیس المشرکین وو دغه شان د ابوعبیده رضی الله عنه د پلار هم د هغه د توری په وار باندې مرګ واقع شو (۳)
جمهورو د سفیان ثوری رحمه الله استدلال جواب دا ورکړې دې چه د کوم روایاتو سره د عموم حکم ثابتیږی د مذکوره واقعاتو د وجه نه هغه عموم باقی پاتې نه شو په دې وجه فرض کفایه د جهاد په صورت کښې د مشرك والدین نه د اجازت څه حیثیت پاتې نه شو (۴)
**ترجمة الباب سره مطابقت:-** په روایت باب کښې د والدین نه د اجازت اخستلو څه ذکر نشته په دې وجه ترجمة الباب سره په ظاهره د دې مناسبت نشته علامه عینی او زکریا انصاری رحمهم الله فرمائی چه په طریق استنباط ففیهما فجاهد ترجمه سره مناسبت دې. رسول الله ﷺ په روایت د والدین د خدمت حکم ورکړې دې د دې حکم تقاضا دا ده چه د والدینو رضا حاصله کړئی اوچه کله رضا حاصله شی نو لکه چه اجازت ملاؤ شو (۵)

## باب ۱۳۷: ماقیل فی الجرس ونحوه فی أعناق الابل

**د ترجمة الباب مقصد:-** د اوښ په غاړه کښې جرس وغیره زوړندول د عربو په معاشره کښې یوعام رواج وو. د دې ترجمه نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د اوښانو په غاړه کښې جرس وغیره زوړندول مکروه دی (۶)

**الجرس:-** د جیم اوراء په فتحه سره ټلئی ته وائی کوم چه د څناورو په غاړه کښې تړلې شی البته د راء په سکون سره الجرس د ټلئی غړیدو نه پیداکیدونکی آواز ته وئیلې شی (۷)

---

(۱) المغنی لابن قدامة: ۳۷۸/۱ والمجموع شرح المهذب: ۲۷/۲۱.
(۲) المغنی لابن قدامة: ۳۷۸/۱۰.
(۳) المغنی لابن قدامة: ۳۷۸/۱.
(۴) المغنی لابن قدامة: ۳۷۸/۱.
(۵) عمدة القاری: ۳۴۷/۱۴ وتحفة الباری: ۴۸۶/۳.
(۶) عمدة القاری: ۳۴۷/۱۴ وتحفة الباری: ۴۸۶/۳.
(۷) عمدة القاری: ۳۴۹/۱۴ وتحفة الباری: ۱۷۴/۶.

ونحوه - دې نه مراد مرو نه جوړشوې هار یا امیل مراد دې دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه دا کراهت صرف په جرس کښې نه دې بلکه د مرو نه جوړشوې امیل کښې هم دې چه د بدنظرنه د حفاظت په توګه د اوښ په غاړه کښې زوړندولې شی
په ترجمة الباب کښې امام بخاری رحمه الله صرف د اوښ ذکرکړې دې حالانکه دغه څیزونه د نورو ځناورو په غاړوکښې هم زوړندولې شی د دې تخصیص وجه داده چه په حدیث کښې د ابل ذکرشوې دې دامام صاحب عادت دې چه د حدیث یولفظ یا جمله نه ترجمة الباب ثابتیږی نو هغه د ترجمه جز جوړه وی دویمه وجه د ابل د تخصیص داهم کیدې شی چه په عربوکښې به غالب استعمال هم د اوښانو کیدلو اودغې په غاړوکښې به امیلونه اچولې شو

[حدیث نمبر ۲۸۴۳] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ أَنَّ أَبَا بَشِيرٍ الأَنْصَارِيَّ - رضي الله عنه - أَخْبَرَهُ أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ - قَالَ عَبْدُ اللَّهِ حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ - وَالنَّاسُ فِي مَبِيتِهِمْ، فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - رَسُولاً أَنْ لاَ يَبْقَيَنَّ فِي رَقَبَةِ بَعِيرٍ قِلاَدَةٌ مِنْ وَتَرٍ أَوْ قِلاَدَةٌ إِلاَّ قُطِعَتْ.

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن یوسف:**- داعبدالله بن یوسف تنیسی دمشقی رحمه الله دې د دوی حالات بدء الوحی کښې تیرشوی دی (۲)

② **مالک:**- داابوعبدالله بن مالک بن انس بن مالک اصبحی مدنی رحمه الله دې د دوی حالات هم تیرشوی دی (۳)

③ **عبدالله بن ابی بکر:**- داعبدالله بن ابی بکر بن محمدبن عمرو بن حزم انصاری مدنی رحمه الله دې د دوی تذکره کتاب الوضوء کښې تیره شوې ده (۴)

④ **عباد بن تمیم:**- دا عباد بن تمیم بن زید المازنی رحمه الله دې د دوی تذکره هم کتاب الوضوء کښې تیره شوې ده (۵)

⑤ **ابوبشیر انصاری رضی الله عنه:**- دا صحابی رسول ابوبشیرالانصاری الساعدی الحارثی المدنی رضی الله عنه دې جمهور مؤرخین او شراح حدیث فرمائی چه د دوی صحیح نوم معلوم نه دې د یوقول

---

[1] ) الحدیث أخرجه مسلم:۲/۲۰۲فی اللباس باب کراهة قلادة الوترفی رقبة البعیر رقم:۵۵۴۹وأبوداؤد فی الجهاد باب تقلید الخیل بالاوتار رقم:۲۵۵۲.

[2] ) کشف الباری:۱/۲۸۹.

[3] ) کشف الباری:۲/۸۰.

[4] ) کتاب الوضوء باب الوضوء مرتین مرتین.

[5] ) کتاب الوضوء باب لایتوضامن الشک حتی یتیقن.

مضبوط د دوی نوم قيس بن عبيدالله بن الحرير بن عمرو بن الجعد خودلي شوي دي [۱] ليكن داقول ضعيف دي حقيقت دادي چه ددوی نوم پټ دي په دې وجه حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائيلي دی لايوقف له على اسم صحيح وقيل اسمه قيس بن عبيد ولايصح. [۲] د ده صحيح نوم معلوم نه کړې شو چه د ده نوم قيس بن عبيد دي دا صحيح نه دي
دغه شان ابواحمد حاكم رحمه الله د ده تذکره دهغه صحابه کرامو په فهرست کښې کړې ده د چا نومونه چه معلوم نه دی [۳] علامه واقدی رحمه الله فرمائي چه د واقعه حره نه پس ددوی انتقال شوی دی او اوږدعمر نې وو [۴] واقعه حره په ۶۳ هجری کښې پيښه شوې يوقول دادي چه په ۴۰ هجری کښې ددوی انتقال شوې [۵] حافظ ابن حجر رحمه الله د واقدی رحمه الله قول ته ترجيح ورکړې ده چه دهغوی وفات ۶۳ هجری کښې شوې [۶]
هغوی د رسول الله ﷺ نه درې احاديث روايت کړی دی يود صحيح بخاری هم دغه ترجمة الباب روايت دي او باقی دوه احاديث صحيح مسلم او سنن ابوداؤد کښې نقل دی [۷] علامه عيني رحمه الله ددې سند مختلف خصوصيات بيان کړی دی هغوی فرمائي فيه التحديث بصيغة الجمع فی موضع، وبصيغة الاخبار کذلک فی موضع، وبصيغة الافراد فی موضع، وفيه ثلاثة مدنيون مالک وشيخه وشيخ شيخه، وثلاثة أنصاريونه وهم عبدالله وعباد وأبوبشير. وفيه تابعيان وهما عبدالله وعباد. وفيه أنه ليس لابی بشير فی البخاری غير هذا الحديث الواحد
د روايت په سند کښې په يوځائی کښې تحديث د جمع په صيغه سره دي يوځائی صيغه اخبارسره او يوځائی عنعنه ده او په دې کښې درې راويان مدنی دی امام مالک اودهغه شيخ او د شيخ شيخ دغه شان په دې کښې درې انصار دی يعنی عبدالله عباد او ابوبشير او دوه تابعي دی عبدالله او عباد يوخصوصيت دادي چه په پوره صحيح بخاری کښې د حضرت ابوبشير رضي الله عنه نه ددې روايت نه علاوه بل روايت نقل نه دي [۸]

**قوله** أنه كان مع رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فی بعض أسفاره.
ابوبشيرانصاری رضي الله عنه فرمائي چه هغه رسول الله ﷺ سره په يوسفرکښې وو شراح حديث کښې چاته هم معلومه نه شوه چه ددې نه کوم يوسفرمراد دي [۹]

---

۱) تهذيب الكمال: ۷۹/۳۳ وتهذيب التهذيب لابن حجر: ۲۲/۱۲.
۲) الاستيعاب لابن عبدالبر على هامش الاصابة: ۲٤/٤.
۳) الاصابة فی تمييز الصحابة: ۲۰/٤ وتهذيب الكمال: ۲۲/۱۲.
٤) تهذيب الكمال: ۸۰/۳۳ وتهذيب التهذيب: ۲۲/۱۲.
۵) الاصابة فی تمييز الصحابة: ۲۱/٤.
۶) تهذيب التهذيب: ۲۲/۱۲.
۷) تهذيب الكمال: ۸۰/۳۳.
۸) عمدة القاری: ۲۵۲/۱٤.
۹) فتح الباری: ۱٤۱/۶ عمدة القاری: ۳۵۰/۱٤.

**قوله**: قال عبدالله، حسبت أنه قال: والناس في مبيتهم - عبدالله وائی زما خیال دې چه هغوی دا (هم) ونیلی دی چه هغه وخت خلق د خپل خوب ځایونوکښې وو دَعبدالله نه مراد پخپله راوی حدیث عبدالله بن ابی بکر دې هغوی ته دَ والناس في مبيتهم باره کښې شك دې چه دا جمله دَهغه شیخ عبادبن تمیم ونیلې وه که نه. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا روایت دَ عبدالله په طریق چرته هم مروی دې په هغې کښې دَ شك دا الفاظ موجود دی (۱)

فارسل رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم رسولا: لایبقین فی رقبة بعیر قلادة من وتر- أو قلادة - إلاقطعت رسول اکرم ﷺ دَ یوقاصدپه ذریعه پیغام اولیګلو چه دَ یواوښ په غاړه کښې امیل یا (اوفرمائیل) امیل پاتې نه شی هغه پرې کړئی. حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه دا قاصد دَ رسول الله ﷺ آزاد کړې شوې غلام حضرت زیدبن حارثه رضی الله عنه وو. (۲) دلته لفظ او دَ شك یا تنویع دپاره دې. (۳)

دَ ابوداؤد په روایت کښې اوقلادة په ځائی ولاقلادة ذکردې داعطف دَ عام علی الخاص دَ قبیل نه دې. (۴) راجح أو قلادة دې. علامه مهلب رحمه الله هم دَدې تائید کړې دې. (۵)

**قلادة**:- دَ قاف کسره سره دَدې معنی ده امیل دَ څاروی دَ غاړې پټئی. انعامی تمغه کومه چه په غاړه کښې اچولې شی. په هغې باندې هم دَ قلادة اطلاق کیږی. (۶)

**وتر**:- دَ واؤ اوتازبرسره دَ لندې پټې ته وائی. (۷) دَدې جمع اوتار او وتار راځی. (۸) وتربه ټولو روایاتوکښې تاء مثناة سره منقول دې. (۹) بعض حضرات دَ تاء په ځائی باء سره وبر روایت کړې دې. علامه ابن التین وائی داؤدی په دې باندې جزم کړې دې چه دا لفظ هم وبردې وبرد اوښ نه ویستلې شوې ویښتوته وائی کوم چه دَ وړئی په شان وی. علامه ابن التین وائی چه دا دَ داؤدی تصحیف دې. صحیح هم وتر دې. (۱۰) علامه ابن جوزی رحمه الله دَخپل مزاج مطابق دلته

---

[۱] ) فتح الباری:۶/۱٤۱.

[۲] ) التمهیدلابن عبدالبر:۱۷/۱۶۱.

[۳] ) فتح الباری:۶/۱٤۱ وعمدة القاری: ۱٤/۳۵۰.

[٤] ) فتح باری: ۶/۱٤۱وعمدة القاری:۱٤/۳۵۰.

[۵] ) فتح باری: ۶/۱٤۱وعمدة القاری:۱٤/۳۵۰.

[۶] ) قال العلامة الفیروز آبادی القلادة ما جعل فی العنق انرر القاموس المحیط ص: ۲۸۲ باب الدال فصل القاف وفی المعجم المحیط (القلادة): ما جعل فی العنق من خلی ونحوه ووسام یجعل فی العنق نمسحه الدولة لمن تشاء تقدیر أله ص: ۷۵٤و ماده (قلد)

[۷] ) فتح الباری:۶/۱۷۵.

[۸] ) فتح الباری:۶/۱۷۵.

[۹] ) فتح الباری:۶/۱۷۵ وعمدة القاری:۱٤/۳۵۰.

[۱۰] ) فتح الباری:۶/۱۷۵ وعمدة القاری:۱٤/۳۵۰.

هم سخت الفاظ استعمال کړی دی هغه فرمائی ربما صحف من لا علم له بالحدیث فقال. وبر
[۱] یعنی چاته چه علم حدیث سره مناسبت نه وی هغه تصحیف کولو سره وتر وبر لولی
**قلاده تړلونه دممانعت وجه**: په حدیث باب او نورو روایاتو کښې د خاروو په غاړه کښې قلاده
تړلو چه کوم ممانعت واردشوې دې شراح حدیث د دې ممانعت مختلف توجیهات کړی دی:
① امام مالک رحمه الله فرمائی چه د جاهلت په زمانه کښې د خلقو دا عقیده وه چه د تانت قلاده د
بدنظرنه محفوظ ساتی په دې وجه به هغوی اوښان د بد نظر اوبیمارو وغیره نه د بچ کیدو
دپاره په غاړه کښې قلاده تړله اودا به نې مؤثربالذات ګنړله په دې وجه رسول الله ﷺ دامنع
اوګرخوله چه قلاده قطعاً مؤثرنه ده هغه دالله تعالی هیڅ یوحکم نه شي روستوکولې [۲] الله
تعالی چه په تقدیرکښې څه لیکلي وی په قلاده کښې داسې هیڅ اثرنشته چه هغه بدل کړی
د دې تائید د عقبه بن عامر د مرفوع حدیث نه کیږی د کوم الفاظ چه دادی من علق تمیمة فلا أتم
الله له. [۳] تعویذ په قلاده کښې تړلوسره په عام توګه د بد نظر نه د بچ کیدو دپاره په غاړه کښې
زوړندولې شی. د دې روایت نه معلومیږی چه قلاده د ځناور وغیره نظر بدنه بچ کولو دپاره
غاړو کښې زوړندیدلو.

حافظ ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی: إذا اعتقد الذی قلدها أنها ترد العین فقد ظن أنها ترد القدر وذلك لا یجوز
اعتقاده. [۴] یعنی چه کوم سړی قلاده په دې عقیده د ځناور په غاړه کښې زوړند کړه چه هغه د
بدنظرنه محفوظ شی نو د هغه به ضرور دا عقیده هم وی چه قلاده تقدیر اړه وی اوبنکاره خبره
ده چه دا عقیده جائزنه ده چه قلاده تقدیر بدلوی.
② امام محمد رحمه الله فرمائی چه د قلاده تړلونه ځکه منع کړې شوې ده چه کله خاروې تیزې
منډې وهی نو د قلاده د وجه نه د هغه مرنی خفه وی. [۵] حافظ ابن حجر رحمه الله اوعینی رحمه الله
فرمائی چه د امام محمد رحمه الله د دې توجیه تائید د ابوعبیده رحمه الله په قول سره هم کیږی
ابوعبیده رحمه الله فرمائی قلاده تړلونه ځکه منع شوې ده چه په دې سره د ځناورو مرنی خفه کیږی
او په خرن کښې ورته تکلیف محسوس کیږی اوچه کله دا چرته ونې پورې اوتړلې شی نو
مرنی خفه کیږی یا په تګ کښې ورته بندیزپیدا کیږی. [۶]
③ دریم قول د علامه خطابی رحمه الله دې هغه فرمائی رسول اکرم ﷺ د قلاده تړلو ممانعت ځکه

---

[۱] ) فتح الباری: ۱۷۵/۶ وعمدة القاری: ۳۵۰/۱۴.
[۲] ) موطا امام مالک: ۹۳۷/۷ والتمهید لابن عبدالبر: ۶۰/۱۷ وفتح الباری: ۱۷۵/۶.
[۳] ) رواه أحمد فی مسنده: ۱۵۴/٤ والحاکم فی المستدرک: ۲۱۶ والطبرانی فی معجمه: ۸۲۰/۱۷ من حدیث عقبة بن عامر رضی الله عنه وماقال الحافظ فی الفتح: ۱۷۵/۶ أخرجه أبوداؤد أیضًا فقد أخطأ. لم نعز علیه فی سنن أبی داؤد ولا فی الصحاح.
[۴] ) فتح الباری: ۱۷۵/۶.
[۵] ) عمدة القاری: ۳۵۰/۱۴ فتح الباری: ۱۷۵/۶.
[۶] ) فتح الباری: ۱۷۵/۶ وعمدة القاری: ۳۵۰/۱۴.

کړې دي چه په دې کښې جرس زوړندولې شي (۱) د امام بخاري رحمه الله ترجمة الباب هم د دې قول تائيدکوی ځکه چه په حديث باب کښې د جرس لفظ نه دې واردشوې صرف د قلادې ذکردې خو امام بخاري رحمه الله په ترجمه کښې د جرس تصريح کړې ده د علامه خطابي رحمه الله چه کومه توجيه ده چه په حديث کښې قلاده ځکه منع کړې شوې ده چه په دې کښې به جرس زوړندولې شو د دې تائيد سنن نسائي او سنن ابوداؤد کښې د ام المؤمنين حضرت ام حبيبه رضي الله عنها د دې مرفوع روايت نه کيږي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دى: لاتصحب الملائكة رفقة فيها جرس (۲) هم دغه حديث امام نسائي رحمه الله د ام سلمه رضي الله عنها نه هم روايت کړې دې (۳) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه په ظاهره دامعلوميږي چه په ترجمة الباب کښې لفظ جرس نه امام بخاري رحمه الله د حديث باب د دويم طريق طرف ته اشاره کړې ده په کوم کښې چه د جرس تصريح ده. داروايت امام دارقطني رحمه الله د عثمان بن عمر په طريق باندې نقل کړې دې د کوم الفاظ چه دادى: لاتبقين قلادة من وتر ولا جرس في عنق بعير الا قطع (۴)

**د قلاده ممانعت تحريمي دې که تنزيهي؟**: - علامه نووي رحمه الله فرمائي چه جمهور وعلماؤ په نيز دا نهى کراهت تنزيهي باندې محمول ده (۵) يوقول دادې چه دا نهى تحريمي ده (۶) دريم قول دادې چه ضرورت وى نوقلاده تړل جائز دى د ضرورت نه کيدو په وخت کښې ناجائزدى (۷) امام مالک رحمه الله فرمائي چه داکراهت صرف د تانت نه جوړې شوې قلاده دې کومه قلاده چه د تانت نه وى جوړه په هغې کښې کراهت نشته. خودا جواز هم په دې شرط دې چه کله په دې کښې د بدنظر نه د بچ کيدلو نيت نه وى. د بدنظر نه د بچ کيدو د پاره خو د هغه قلادې استعمالول هم ناجائزدى کومه چه د تانت نه نه وى جوړه. (۸)

په حقيقت کښې دا نهى د هغه قلادو اوتعويذونو سره متعلق ده په کوم کښې چه د قرآن کريم وغيره آياتونه نه وى ليکلې شوې. خو چه په کومو قلادو او تعويذونوکښې قرانى اياتونه او مسنون دعاګانې ليکلې شوى وى هغه د څاروو په غاړوکښې زوړندول بلاکراهت جائزدى ځکه چه د دې نه د الله تعالى پناه اود برکت حاصلول وى. (۹) د دغه شان قلاده د ښائست د پاره زوړندولوکښې هم څه حرج نشته په دې شرط چه په دې کښې اسراف او تبذير نه وى اوخان

---

(۱) فتح الباري: ۱۷۵/۶.
(۲) سنن أبى داؤد ۲۴۶/۱ كتاب الجهاد باب فى تعليق الاجراس رقم: ۵۲۵۴.
(۳) سنن نسائى: ۲۹۰/۲ كتاب الزينة باب الجلالة.
(۴) فتح الباري: ۱۷۵/۶.
(۵) شرح صحيح مسلم للنووي: ۲۰۲/۲ كتاب اللباس باب كراهة قلادة الوتر فى رقبة البعير.
(۶) عمدة القاري: ۳۵۰/۱۴ فتح الباري: ۱۷۵/۶.
(۷) عمدة القاري: ۳۵۰/۱۴ فتح الباري: ۱۷۵/۶.
(۸) عمدة القاري: ۳۵۰/۱۴- ۳۵۱ فتح الباري: ۱۷۵/۶.
(۹) عمدة القاري: ۳۵۱/۱۴ فتح الباري: ۱۷۶/۶.

خو دل یه مقصود نه وی [1]

**ذ جرس زوړندولو حکم** - په دې کښې مختلف اقوال نقل دې ① یو قول دادې چه تعلیق جرس مطلقا ناجائز دې [2]

② بعض حضراتو وئیلی دی چه بغیر ذ ضرورت نه تعلیق جرس ناجائز دې البته ذ ضرورت په وخت جائز دې [3]

③ دریم قول دادې چه وړوکې جرس زوړندول جائز دی خو لوئی جرس یعنی غټه ټلنی زوړندول جائز نه دی [4] والله اعلم

**ذ جرس ذ ناخوښه کیدووجه** - جرس ولې ناخوښه ګرځولې شوې دې؟ ذ دې دوه توجیهات دی:

① په صحیح مسلم کښې علاء ابن عبدالرحمن عن ابی هریره په طریق سره مرفوعا داروایت نقل دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی: **الجرس من مزامیر الشیطان** [5] یعنی ټلنی ذ شیطان شپیلنی ده. شارحین حدیث ذدې نه استدلال کولوسره وائی: هذا یدل علی ان الکراهة فیه لصوته، لان فیه شبهابصوت الناقوس وشکله [6] یعنی ذ صحیح مسلم مذکوره روایت په دې خبره باندې دلالت کوی چه داکراهت ذ جرس ذ آواز ذ وجه نه دې ځکه چه ذجرس آواز او ظاهری صورت دواړه ذ ناقوس ذ آواز او صورت په شان دی

② جرس په عام توګه ذ اوښ او اس په غاړه کښې زوړندولې شی په هغه زمانه کښې په جهاد کښې ذ اس او اوښ نه ذ سورلئی کاراخستې شو په دې وجه بعض حضراتو فرمائیلی چه ذ سورلئی په ټګ سره ذ ټلنی غږیدو آواز پیداکیږی نو په دې سره به دښمن ته ذ مجاهدینو ذ راتلو پته لګی. په دې وجه رسول اکرم ﷺ ذ تعلیق جرس نه منع اوفرمائیله [7]

**ترجمة الباب نه تطبیق** - په باب کښې امام صاحب رحمه الله لفظ جرس ذکرکړې دې خو په حدیث باب کښې ذ جرس تصریح نشته. په دې وجه دلته اشکال کیدې شی چه په ترجمه کښې ذجرس تصریح شته او په حدیث باب کښې هیڅ یو لفظ داسې نشته چه ذ ترجمه په دې لفظ باندې دلالت اوکړی؟

ذعلامه خطابی رحمه الله قول شاته تیرشو چه جرس به په قلاده وغیره کښې زوړندولې شو په دې وجه تعلیق قلاندباره کښې چه کومه نهی په حدیث کښې راغلې ده دغه نهی په حقیقت کښې هم ذ دغه جرس ذ وجه نه راغلې ده. علامه عینی رحمه الله دې قول ته ترجیح ورکړې ده اود مذکوره اشکال جواب ورکولوسره ئی فرمائیلی دی: **وما قیل فی وجه المطابقة یقول الخطابی أوجه،**

---

[1] ) عمدة القاری:۶/۳۵۱ فتح الباری:۶/۱۷۶.
[2] ) عمدة القاری:۶/۳۵۱ فتح الباری:۶/۱۷۶.
[3] ) عمدة القاری:۶/۳۵۱ فتح الباری:۶/۱۷۶.
[4] ) عمدة القاری:۶/۳۵۱ فتح الباری:۶/۱۷۶.
[5] ) صحیح مسلم: ۲/۲۰۲ کتاب اللباس باب کراهة الکلب والجرس.
[6] ) فتح الباری: ۶/۱۷۵ وعمدة القاری: ۱۴/۳۵۰.
[7] ) إعلاء السنن:۱۲/۶۸۵.

لأن الجرس لایعلق فی أعناق الابل إلا بعلاقة، وهی الوتر ونحوه، فذکر البخاری الجرس الذی یعلق بالقلادة، فاذا ورد النهی عن تعلیق القلائد فی أعناق الابل یدخل فیه النهی عن الجرس بالضرورة، والاصل هو النهی عن الجرس ألاتری أنه ورد، أن الملائکة لاتصحب رفقة فیها جرس (۱)

یعنی جرس د اوبښ په غاړه کښې د څه واسطې نه بغیرنه شي زوړندولې اوهغه واسطه بنکاره خبره ده چه د تانت قلاده وغیره وی په دې وجه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د جرس ذکرکړې دې کوم چه د قلاده په ذریعه زوړندولې شی لهذا د اوبښ په غاړه کښې چه د قلاده تړلو متعلق کومه نهی په حدیث کښې راغلې ده هغه نهی بهرصورت هم د جرس متعلق هم ده اوحقیقت دادې چه دانهی هم د جرس باره کښې ده. په حدیث شریف کښې دی چه فرښتې د داسې جماعت ملگرتیانه کوی کوم کښې چه جرس وی

## باب ۱۳۸: من اکتتب فی جیش فخرجت امرأته حاجة، وکان له عذر، هل یؤذن له

اکتتب:- باب افتعال نه معروف ومجهول دواړه شان لوستل صحیح دی

حاجة:- دا فخرجت امرأته نه حال واقع کیدو د وجه منصوب دې (۲)

أوکان:- د ابوذر په نسخه کښې هم دغه شان ضبط شوې دې (۳) بعض نسخو کښې د او په ځائې واو مذکوردې (۴)

**د ترجمة الباب مقصد:-** مطلب داچه د یوسړی نوم د جهاد په لښکرکښې لیکلې شوی وی اوبل طرف ته د هغه بی بی د حج په سفرباندې ځی یاهغه ته بل څه عذر پیښ شو. آیا داسې سړی ته به په جهاد کښې د شرکت اجازت ورکولې شی؟

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د باب لاندې امام بخاری رحمه الله کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې د دې جواب راغلې دې (۵)

[حدیث نمبر ۲۸۴۴] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «لاَ يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ، وَلاَ تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلاَّ وَمَعَهَا مَحْرَمٌ». فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، اكْتُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَكَذَا، وَخَرَجَتِ امْرَأَتِي حَاجَّةً. قَالَ «اذْهَبْ فَحُجَّ مَعَ امْرَأَتِكَ». [ر: ۱۷۶۳]

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/۳۴۹.

(۲) عمدة القاری: ۱۴/۳۵۱.

(۳) إرشاد الساری: ۶/۴۷۶.

(۴) إرشاد الساری: ۶/۴۷۶.

(۵) عمدة القاری: ۱۴/۳۵۱.

په روايت كښې دى چه رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل سړې دې يواجنبى ښځې سره خلوت نه كوى نه دې يوه ښځه د محرم نه بغيرسفركوى دې اوريدوسره يوسړې اودريدوونى ونيل فلانكى جهاد كښې زما نوم ليكلې شوې دې خوزما ښځه حج له روانه ده

**قوله قال: إذهب، فحج مع امرأتك** حضورپاك ﷺ اوفرمائيل زه خپلې ښځې سره حج اوكړه. **فحج** په دې كښې ادغام دې بعض نسخوكښې احجج فك ادغام سره مذكوردې (۱) مطلب دا كه په ښځه باندې حج فرض وى اوجهادفرض عين نه وى نوښځې سره د حج د سفرد پاره د خاوند تلل ضرور دى. اوهغه ته به په جهاد كښې د تللو اجازت نه شى وركولې ځكه چه په جهاد كښې بل سړې د هغه په ځائى كيدې شى.

په روايت كښې رسول اكرم ﷺ خاوندته ښځې سره د حج كولوحكم وركړو اود جهادنه ئى منع كړو ځكه چه په ښځه باندې حج فرض وو او د حج په سفركښې د هغې د پاره محرم ضرورى وو خوجهاد دغه وخت فرض عين نه وو لكه چه د جهادپه مقابله كښې حج ډير اهم وو په دې وجه رسول اكرم ﷺ اوفرمائيل ته جهادپريږده او ښځې سره حج ته لاړ شه. (۲)

**ترجمة الباب سره مناسبت:**- علامه عينى رحمه الله فرمائى **مطابقة للترجمة تؤخذ من قوله: إذهب فحج امرأتك،** لانه اكتتب فى جيش وأرادت امرأته أن تحج الفرض، فاذن له صلى الله تعالى عليه وسلم، أن يحج مع امرأته، لانه اجتمع له مع حج التوع فى حقه تحصيل حج الفرض لامرأته، فكان اجتماع ذلك له أفضل من مجردالجهاد الذى يحصل المقصود منه بغيره. (۳)

يعنى ترجمة الباب سره د حديث داجمله مطابقت لرى إذهب فحج مع امرأتك د كوم خلاصه چه داده چه دې سړى خپل نوم د جهاد په لښكركښې ليكلې وو اود هغه بى بى فرض حج اداكول غوښتل نورسول الله ﷺ هغه ته د ښځې سره د حج كولو حكم په دې وجه وركړو چه هغه ته به په يووخت كښې دوه فائدې حاصليدلې د ښځې فرض حج اداكيدل او ښځې سره د خپل ځان د پاره نفلى حج اداكول دا دواړه فائدې جمع كول د هغه د پاره يوازې د جهاد د تللونه غوره وې. ځكه چه د جهاد مقصد خو د هغه نه علاوه د بل چا په تللوسره هم حاصليدې شو

**د حديث نه مستنبط فوائد:**- د حديث باب نه دوه فائدې معلوميږى ① يودا چه د جهادپه لښكركښې شامل د ټولو كسانونومونه دې اوليكلې شى (۴)② بل دا چه حاكم وخت ياامیروغيره د خپل رعايا په مصالح او ضروريات باندې نظر اوساتى (۵)

---

۱) حواله بالا وإرشاد السارى:۶/۳۷۶.

۲) فتح البارى:۶/۱۷۶ وإرشاد السارى:۶/۳۷۶.

۳) عمدة القارى: ۱۴/۳۵۱.

۴) فتح البارى:۶/۱۷۶.

۵) فتح البارى:۶/۱۷۶.

## باب ۱۳۹: الجاسوس

وقول الله تعالى: ﴿لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ﴾ (الممتحنة). اَلتَّجَسُّسُ: اَلتَّبَحُّثُ

**دَ ترجمة الباب مقصد** دَ جاسوس دوه قسمونه دي يو دا چه دَ كافرانو دَ طرف نه وي او دويم دا چه دَ مسلمانانو دَ طرفه وي په دې ترجمة الباب سره امام بخاري رحمه الله دواړه احكام خودل غواړي

**الجاسوس** دا دَ فاعول په وزن باندې دې او دَ تجسس نه دې دَ تجسس معنى ده دَ پټو كارونو پته لګول. تفتيش كول يو قول دا دې چه تجسس (جيم سره) معنى ده دَ بل چا دپاره سراغ او پته لګول او تحسس (حا سره) معنى ده خپل ځان دَ پاره پته لګول [١]

ترجمة الباب كښې امام بخاري رحمه الله دَ ابوعبيده قول نقل كولو سره دَ تجسس تشريح تبحث سره كړې ده تبحث دَ باب تفعل نه دې دَ دې معنى ده پته لګول او تفتيش كول بحث الفقيه ده دَ دې نه اخستې شوې دې ځكه چه فقيه هم دَ مسائلو تفتيش كوي دَ هغې پته لګوي [٢]

وقول الله تعالى ﴿ لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ ﴾ وقول جاسوس باندې عطف كيدو دَ وجې مجرور دې

علامه عيني رحمه الله فرمائي دلته دَ آيت ذكر كولو مناسبت دا دې چه دَ دې نه دَ جاسوس حكم مستنبط شوې دې. دا حكم دَ حاطب بن ابى بلتعه رضي الله عنه دَ قصه نه معلوميږي [٣] حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلى دى چه په حديث باب كښې كومه قصه ذكر شوې ده هم دغه دَ دې آيت سبب نزول دې. په دې وجه دَ آيت دَ ذكر كولو مناسبت دا هم كيدې شى. [٤]

**دَ جاسوس حكم:-** دَ جاسوس مختلف قسمونه دى مثلاً كافرحربى. معاهد. ذمى. مسلمان او مستامن علامه نووى رحمه الله وائى چه كافرحربى جاسوس قتل كول په اجماع سره جائز دى [٥] معاهد او ذمى كه چرې دَ مسلمانانو خلاف جاسوسى اوكړى نو دَ جمهورفقهاؤ په نيز جاسوسى كولو دَ وجه دهغه عهد نه ختميږى. شرح السير الكبير كښې علامه سرخسى رحمه الله دَ دې دا وجه بيان كړې ده لكه چه دَ جاسوسئى كولو دَ وجه نه دَ مسلمان جاسوس ايمان نه ختى دغه شان دَ ذمى عهد هم نه ختميږى. [٦]

احناف او شوافع وائى دا سره دَ دې چه نقض عهد نه دې ليكن حاكم وخت له پكار دى چه ده ته سخته سزا وركړى او قيد كښې اوساتى. [٧] شوافع وائى چه دَ ذمى يا معاهد نه دَ جاسوسئى نه

---

[١] ) النهاية لابن الاثير: ١/٢٦٦.

[٢] ) عمدة القارى: ١٤/٣٥٢.

[٣] ) عمدة القارى: ١٤/٣٥٢.

[٤] ) فتح البارى: ٦/١٧٧.

[٥] ) شرح للنووى على صحيح مسلم: ٢/٣٠٢ كتاب الفضائل باب فضائل أهل بدر. وفتح البارى: ٦/٢٩٠٧ وإعلاء السنن: ١٤/٥٦.

[٦] ) وإعلاء السنن ١٤/٥٧.

[٧] ) وإعلاء السنن: ١٤/٥٦.

کولو په شرط باندې معاهده شوې وی نو بیا دا نقض عهد دې او دې قتل کول جائز دی. (۱) امام مالک رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله وائی چه د جاسوسئ د وجه نه معاهد او ذمی عهد باقی نه پاتې کیږی نو دې قتل کول جائز دی (۲)

که چرې د اهل اسلام خلاف جاسوسی کونکې مسلمان وی نو د احنافو شوافع او جمهور فقهاؤ په نیز به هغه ته سزا (تعزیر) ورکولې شي قتل کول نی جائز نه دی (۳) بیا په تعزیر کښې دې حضراتو تفصیل کړې دې امام شافعی رحمه الله د روایت الباب نه استدلال کولو سره فرمائی که چرې مسلمان جاسوس صاحب حیثیت وی نو هغې دې معاف کړې شی (۴) امام ابوحنیفه رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله فرمائی چه یعزر ویطال حبسه هغه ته دې سزا ورکړې شي او د اوږدې مودې پورې دې قید کښې اوساتلې شی (۵) امام مالک رحمه الله فرمائی یجتهد فیه الامام (۶) حاکم وخت دې دهغه باره کښې اجتهاد اوکړی مطلب دا چه هغه ته د تعزیر او قتل کولو دواړو اختیار دې که غواړی نو سزا دې ورکړی پریږدې دی یا دې قتل کړی. د دې نه معلومه شوه چه د امام مالک رحمه الله په نیز د مسلمان جاسوس قتل کول جائز دی

علامه سرخسی رحمه الله فرمائی که مستامن سره د معاهدې په وخت دا شرط کیخودې شی چه هغه به د مسلمانانو جاسوسی نه کوی خو که د دې باوجود هغه جاسوسی اوکړه نو د هغه په قتل کولو کښې هیڅ حرج نشته بلکه بهتره دا ده چه هغه قتل کړې شی دې د پاره چه د نورو د پاره د عبرت نشان اونښه جوړ شی. (۷)

[حدیث نمبر ۲۸۴۵] (۸) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ سَمِعْتُهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ قَالَ أَخْبَرَنِي حَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا - رضى الله عنه - يَقُولُ بَعَثَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَا وَالزُّبَيْرَ

---

۱) شرح للنوى على صحيح مسلم: ۳۰۲/۲ كتاب الفضائل باب فضائل أهل بدر.
۲) فتح البارى: ۲۰۷/۶ إعلاء السنن: ۵۶/۱۴.
۳) شرح صحيح مسلم للنووى: ۳۰۲/۲ وعمدة القارى: ۳۵۶/۶.
۴) شرح صحيح مسلم للنووى: ۳۰۲/۲ وعمدة القارى: ۳۵۶/۶.
۵) شرح صحيح مسلم للنووى: ۳۰۲/۲ وعمدة القارى: ۳۵۶/۶.
۶) شرح صحيح مسلم للنووى: ۳۰۲/۲ وعمدة القارى: ۳۵۶/۶.
۷) وإعلاء السنن: ۵۷/۱۴.
۸) الحديث أخرجه البخارى فى الجهاد باب إذا اضطر الرجل إلى النظر فى شعور أهل الذمة والمؤمنات إذا عصين الله وتجريدهن رقم: ۳۰۸۱ وفى المغازى. باب فضل من شهد بدراً رقم: ۳۹۸۳ وباب غزوة الفتح رقم: ۴۲۷۴ وفى التفسير سورة الممتحنة. باب لاتتخوا عدوى وعدوكم أولياء رقم ۴۷۹۰. وفى الاستئذان باب من نظر فى كتاب يحذ على المسلمين ليستبين أمره رقم: ۶۲۵۹ وفى استتابة المرتدين والمعاندين وقتالهم. باب ماجاء فى المتاولين رقم ۶۹۲۹ ومسلم فى فضائل الصحابة. باب من فضائل حاطب بن أبى بلتعة وأهل بدر رضى الله عنهم رقم ۶۳۰۱ والترمذى فى التفسير. باب ومن سورة الممتحنة رقم: ۳۳۰۵ وأبوداؤد فى الجهاد. باب فى حكم الجاسوس إذاكان مسلما رقم: ۲۶۵۰. ۲۶۵۱.

وَالْمِقْدَادَ بْنَ الأَسْوَدِ قَالَ «انْطَلِقُوا حَتَّى تَأْتُوا رَوْضَةَ خَاخٍ، فَإِنَّ بِهَا ظَعِينَةً وَمَعَهَا كِتَابٌ، فَخُذُوهُ مِنْهَا». فَانْطَلَقْنَا تَعَادَى بِنَا خَيْلُنَا حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى الرَّوْضَةِ، فَإِذَا نَحْنُ بِالظَّعِينَةِ فَقُلْنَا أَخْرِجِي الْكِتَابَ. فَقَالَتْ مَا مَعِي مِنْ كِتَابٍ. فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ أَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ. فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا، فَأَتَيْنَا بِهِ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَإِذَا فِيهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ أَبِي بَلْتَعَةَ إِلَى أُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِينَ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ، يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «يَا حَاطِبُ، مَا هَذَا». قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، لاَ تَعْجَلْ عَلَىَّ، إِنِّي كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا فِي قُرَيْشٍ، وَلَمْ أَكُنْ مِنْ أَنْفُسِهَا، وَكَانَ مَنْ مَعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ لَهُمْ قَرَابَاتٌ بِمَكَّةَ، يَحْمُونَ بِهَا أَهْلِيهِمْ وَأَمْوَالَهُمْ، فَأَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِي ذَلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيهِمْ أَنْ أَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا يَحْمُونَ بِهَا قَرَابَتِي، وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَلاَ ارْتِدَادًا وَلاَ رِضًا بِالْكُفْرِ بَعْدَ الإِسْلاَمِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَقَدْ صَدَقَكُمْ». قَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ دَعْنِي أَضْرِبْ عُنُقَ هَذَا الْمُنَافِقِ. قَالَ «إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا، وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يَكُونَ قَدِ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ، فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ». قَالَ سُفْيَانُ وَأَيُّ إِسْنَادٍ هَذَا. [۲۹۱۵، ۳۷۶۲، ۴۰۲۵، ۴۶۰۸، ۵۹۰۴، ۶۵۴۰]

## رجال الحديث

① **على ابن عبدالله**:- داامیرالمؤمنین فی الحدیث ابوالحسن علی ابن عبدالله بن جعفر رحمه الله دي چه دَ ابن المدینی په نوم سره مشهوردې. دَدوی تذکره تیره شوې ده. (١)

② **سفیان**.- دا ابومحمدسفیان بن عیینه کوفی رحمه الله دې. دَدوی تذکره دکتاب العلم لاندې تیره شوې ده. (٢)

③ **عمرو بن دینار**:- داعمرو بن دینار مکی رحمه الله دې. دَدوی تذکره هم کتاب العلم کښې تیره شوې ده (٣)

④ **حسن بن محمد**:-داحسن بن محمد رحمه الله دې دَدوی حالات هم تیرشوی دی.

⑤ **عبیدالله بن ابی رافع**:- دادَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم آزادکړې شوې غلام ابورافع اسلم خوئی دې دحضرت علی رضی الله عنه کاتب وو (٤) دَهغوی خطونه وغیره به ئی لیکل. ابن سعد دَدوی شمیر په مکثرین فی الحدیث کښې کړې دې (٥) دَ جرح او تعدیل ټولو ائمه حضراتو دَدوی توثیق کړې

---

١) كشف البارى: ٣/٢٩٧.

٢) كشف البارى: ٣/١٠٢.

٣) كشف البارى: ٤/٣٠٩.

٤) تهذيب الكمال: ١٩/٣٤.

٥) طبقات: ٥/٦٨١.

دي (۱) هغه دخپلې مور ام رافع سلمی او د رسول اکرم ﷺ آزادکړې شوی غلام شقران حضرت علی اوحضرت ابوهریره رضی الله عنهما نه احادیث روایت کړی دی (۲) اودهغوی نه ابراهیم بن عبیدالله بن ابی رافع، بسر بن ابی رافع، بسربن سعد جعفربن محمدبن علی الحسین، حسن بن محمد بن الحنیفة، حکم بن عتبه، سالم ابوالنضر، عاصم بن عبیدالله، عبدالله بن الفضل الهاشمی، علی بن الحسین زین العابدین، ابوجعفر محمدبن علی بن الحسین، محمدبن المنکدر، معاویه بن عبدالله بن جعفربن ابی طالب (۳)

⑥ **علی** رضی الله عنه - داعلی بن ابی طالب رضی الله عنه دي د دوی حالات دکتاب العلم لاندې تفصیل سره تیرشوی دی سمعت علیا رضی الله عنه یقول بعثنی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم أنا والزبیر والمقدادبن الاسود، قال: انطلقوا حتی تأتوا روضة خاخ، فان بها ظعینة، ومعها کتاب فخذوه منها.....الخ.
راوی وائی چه ما حضرت علی رضی الله عنه په دې ویناکولوسره واورېدو چه رسول الله ﷺ زه زبیراومقدادبن اسود اولیګلو. وئی فرمائیل چه روضه خاخ ته لاړشئ هلته به تاسو ته په اوبن باندې سوره یوه ښځه ملاوشی هغې سره خط دې هغه دې نه واخلئ.

روضة خاخ :- دادمکې اومدینې ترمینځه د یوځائی نوم دې اود مدینې نه دولس میله لرې واقع دې (۴) علامه سهیلی رحمه الله فرمائی چه هشیم تصحیف کولوسره به خاخ خاج لوستلو. دهشیم په شان د ابوعوانه نه هم دغه تلفظ نقل دې. (۵)

ظعینة :- د دې معنی ده د اوبن په کجاوه کښې ناسته سفرکونکې ښځه. دا د ظعن نه مشتق دې د کوم معنی چه تګ او د سفرکولوده بیادې اطلاق هودج یعنی د اوبن کجاوه اوپه دې کښې ناستې مسافرې ښځې دواړو باندې کیدلې شو (۶) یوقول دادې چه دهغې نوم ساره وو (۷) دویم قول دادې چه دهغې نوم کنود وو (۸) رومبې قول راجح دې. (۹) علامه نووی علامه کرمانی اوعلامه نسفی وغیره دې ته ترجیح ورکړې ده. (۱۰)
**ساره مسلمانه وه که مشرکه؟**: حافظ ابونعیم رحمه الله، ابن منده رحمه الله (۱۱) او حافظ ابن حجر رحمه الله (۱۲)

---

(۱) ثقات ابن حبان:۶۸/۵ تهذیب الکمال:۳۵/۱۹ طبقات:۲۸۲/۵.
(۲) تهذیب الکمال:۳٤/۱۹.
(۳) تهذیب الکمال:۳۵/۱۹.
(۴) إرشاد الساری:۴۷۸/۶.
(۵) عمدة القاری:۳۵۳/۱٤.
(۶) القاموس المحیط باب النون، فصل الطاء وشرح النووی علی صحیح مسلمک ۳۰۲/۲.
(۷) عمدةالقاری:۳۵۳/۱٤ وإرشاد الساری:۴۷۸/۶.
(۸) عمدة القاری:۳۵۳/۱٤ وإرشاد الساری:۴۷۸/۶.
(۹) إرشاد الساری:۴۷۸/۶.
(۱۰) إرشاد الساری:۴۷۸/۶.
(۱۱) شرح صحیح مسلم للنووی:۳۰۲/۲ فی فضائل أهل بدر، وعمدةالقاری:۳۵۳/۱٤ وشرح الکرمانی:۱۹/۱۳
(۱۲) الاصابة فی تمییز الصحابة:۳۲۳/٤.

دا په جمله صحابیات کښې شامل کړې ده قاضی اسماعیل رحمه الله کتاب الاحکام کښې حاطب بن ابی بلتعه د قصه په ضمن کښې کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې دی قال الذین أرسلهم: إن بها امرأة منه المسلمین معها کتاب إلی المشرکین، وأنهم لما أرادوا ان یخلعوا ثیابها. قالت: أولستم مسلمین؟ (۱) یعنی رسول الله ﷺ چه د ساره د گرفتارولود پاره کوم صحابه کرام لیکلي وو هغوی ته نی فرمائیلی وو چه روضه خاخ سره یوه مسلمانه ښځه ده کومې سره چه دمشرکانو په نوم خط دې کله چه صحابه کرامو ساره لباس کوزول غوښتل نو هغې دوی ته غیرت ورکولو سره اوونیل آیاتاسو مسلمانان یئی؟ خو علامه عینی رحمه الله چه کوم تاریخی شهادتونه پیش کړی دی د هغې نه معلومیږی چه ساره مسلمانه نه وه نو بیا هغه د صحابیاتو په فهرست کښې شامل کول عجیبه خبره ده مثلاً علامه عینی رحمه الله وانی چه حاکم رحمه الله په خپل کتاب الاکلیل کښې لیکی دی وکانت مغنیة نواحة تغنی بهجاء رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فامر بها یوم الفتح، فقتلت. (۲) یعنی ساره مغنیه (سندرغاړې) اونوحه کونکې وه د رسول الله ﷺ په سپکاوی کښې به نی اشعاروئیل په دې وجه حضورپاک د فتح مکه په ورځ د هغې د قتل حکم ورکړې وو نو هغه قتل کړې شوه

دغه شان ابو عبیده البکری په روایت کښې دی فان بها امرأة من المشرکین الفاظ وارد دی په دې روایت کښې پخپله د رسول الله ﷺ په مبارکه ژبه تصریح ده چه هغه مشرکه وه (۳) د حاطب ابن ابی بلتعه د مذکوره واقعه باره کښې دا آیت نازل شوې وو ﴿ يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾ علامه واحدی رحمه الله فرمائی:

إن هذه الایة نزلت فی حاطب ابن بلتعة، وذلك أن سارة مولاة أبی عمرو بن صیفی بن هاشم بن عبد مناف أتت رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم إلی المدینة من مکة وهو یتجهز لفتح مکة، فقال: ماجاءبك؟ قالت: الحاجة. قال: فأین أنت عن شباب أهل المکة؟ وکانت مغنیة، قالت: ماطلب منی شئ بعد وقعة بدر، فکساها وحملها، وأتاها حاطب بن أبی بلتعة کتب معها کتابا إلی أهل مکة، وأعطاها عشرة دنانیر، وکتب فی الکتاب إلی أهل مکة: إن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم یریدکم فخذوا حذرکم. فنزل جبریل علیه السلام بخبرها، فبعث علیا وعمارا وعمر والزبیر وطلحة والمقداد بن الاسود وأبامرثد، وکانوا کلهم فرسانا، وقال: انطلقوا حتی تأتوا روضة خاخ، فان بها ظغینة معها کتب إلی المشرکین فخذوه وخلوا سبیلها فان لم تدفعه إلیکم فاضربوا عنقها. (۴)

---

۱) عمدة القاری: ۳۵۳/۱۴.
۲) عمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۳.
۳) عمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۳.
۴) عمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۳.

داآيت د حاطب بن بلتعه باره كښې نازل شوې د دې واقعه سبب داوو چه عمرو بن صيفي بن هاشم آزده كړې شوې وينځه ساره د مكې نه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې د حاضريدو د پاره مدينې ته راغله هغه وخت حضورپاك د فتح مكه تيارى كوله حضورپاك ساره ته اوفرمائيل ولې راغلې؟ د څه ضرورت د وجه نه راغلې يم حضورپاك اوفرمائيل مكې خوانان چرته دې اوته چرته؟ ساره سندرغاړې وه خه حضورپاك داسې الفاظ استعمال كړل ساره جواب وركړو د بدر د واقعه نه پس مانه چا د (كانې وغيره) مطالبه نه ده كړې دې نه پس حضورپاك ساره ته د تن د پاره لباس اود سورلئى د پاره اس وركړو بياهغې له حاطب بن بلتعه راغلو حاطب بن بلتعه هغې له د اهل مكې په نوم باندې خط وركړو دې نه علاوه ئې لس ديناره هم وركړل خط كښې ئې ليكلې وو رسول الله ﷺ ستاسو خلاف د جنګ اراده لرى نوتاسو د بچاؤ اسباب اوكړئى په دې موقعه باندې حضرت جبرائيل عليه السلام راغلو اود واقعه متعلق خبر ئې وركړو دې اوريدو سره رسول الله ﷺ حضرت على عمار عمر زبير طلحه او مقداد بن اسود اوابومرثد چه دعربو ښه د اس سورلى كونكى وو ساره پسې شاته وراوليګل وئې فرمائيل چه روضه خاخ ته لاړشئ هلته په اوښ په يوه ښځه سوره وى هغې سره د مشركانو په نوم يوخط دې خط واخلئى اوهغه بغير د مزاحمت نه پريږدئى اوكه د خط وركولونه انكار اوكړى نو قتل ئې كړئى

دغه شان په تفسيرنسفى كښې يوروايت دې: أنت ساره من مكة إلى المدينة بعد بدر بسنين ورسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم يتجهز لفتح مكة. فقال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم:أمسلمة جئت؟قالت: لا. قال: أمهاجرة جئت؟ قالت: لا يعنى د جنګ بدرنه څوكاله پس ساره د مكې نه مدينې منورې ته راغله د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه هغه وخت حضورپاك د فتح مكه په تيارى كښې مصروف وو حضورپاك د ساره نه تپوس اوكړو چه آيا ته مسلمانه شوې راغلې؟ ساره وئيل نه. حضورپاك اوفرمائيل آيا هجرت دې كړې راغلې؟ هغې وئيل نه.

د علامه واحدى او علامه نسفى مذكوره دواړه روايات اكثرمفسرينو نقل كړى دى (۱) د دې روايتونونه هم دغه معلوميږى چه ساره مسلمانه نه وه . علامه عينى رحمه الله هم دا روايات نقل كړى دى د هغه د صنيع نه معلوميږى چه پخپله د هغه رحجان هم دغه دې چه ساره مسلمانه نه وه. والله اعلم.

**قوله: فانطلقنا تعادى بنا خيلنا، حتى انتهينا إلى الروضة، فإذا نحن بالظعينة:**

راوى وائى اسونوپه منډه مونږ ترلرې پورې يوړو كله موچه اوكتل نو واقعى مونږ په اوښه باندې سوره يوې ښځې سره وو. مونږ هغې ته اووئيل خط راوباسه هغې وئيل ماسره څوڅه خط نشته مونږ ورته اووئيل چه خط راوباسې كه كپړې درنه اوباسو هغې مجبوراً د خپلې جوړې نه خط راوويستلو هغه مونږ واخستو اود رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشو نوپه هغې كښې تحرير وو. د حاطب بن بلتعه د طرف نه د اهل مكه د يوڅومشركانو په نوم په كوم كښې چه حاطب خپل متعلقينوته د رسول الله ﷺ بعض ارادو خبرور كړې وو. رسول الله

(۱) تفسير القرطبي:۵۱/۱۸ والتفسير الكبير للامام الرازى:۲۹۶/۲۹.

ﷺ تپوس اوکړو حاطب داځه قصه دهٔ؟ حاطب اوونیل تاسو تندی مه کوئی زه یو داسې سړی یم چه قریشوله راغلم ملاؤشوم حالانکه زه اصلا د قریشونه نه یم دا تاسو سره چه کوم مهاجرین دی د دوی ټولو مکې والاسره خپلولئی دی دهغوی دوجه نه دهغوی بال بچ او مالونه محفوظ دی زما دوسره خو خپلولی ده نه ما نه داکار د کفرد وجه کړې اونه د ارتداد د وجه نه د اسلام راوړلونه پس د کفرد خوښولو وجه نه رسول الله ﷺ اوفرمائیل حاطب تاسو خلقوته رښتیااوونیل حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړو یارسول الله! ماپریږده یعنی ماته اجازت راکړه چه زه خودي منافق کارخلاص کړم حضور پاك اوفرمائیل دي د بدریه جنګ کښې شریك شوی تاته معلومه نه ده چه الله تعالی د بدرخلقوته کتلوسره اوفرمائیل چه څنګه مو عمل کوئی ماستاسو بخښنه کړې ده

**قوله** إلى أناس من المشركين - راوی د مکتوب الیهم نوم ذکرکولوپه ځائی الی أناس مشركين اوونیل علامه کرمانی رحمه الله فرمائی هوکلام الراوی وضع موضع: الى فلان وفلان المذكورين في الكتاب. (۱) دا د راوی کلام دې هغه په خط کښې ذکر فلانکې اوفلانکې یعنی د نومونو د تصریح په ځائی الی اناس من المشرکین اوونیل او علامه عینی رحمه الله په دې باندې تعریض کولوسره وائی لم يطلع الكرماني على أسماء المكتوب إليهم، فلذلك قال هكذا، والذين كتب إليهم هم: صفوان بن أمية، وسهل بن عمرو، وعكرمة بن ابي جهل (۲) مطلب دادې چه پخپله علامه کرمانی رحمه الله ته هم د مکتوب الیهم نومونه معلوم نه شو په دې وجه هغه فلانکې فلانکې اوونیل اوکه چرې معلوم وو نو تصریح به ئی کړې وه علامه عینی رحمه الله وائی چه حاطب بن بلتعه د چاپه نوم خط لیکلې وو هغه صفوان بن امیه. سهل بن عمرو او عکرمه بن ابوجهل وو

**قوله** قال سفيان: وأي إسناد هذا - سفیان اوونیل څه ښکلې اوښائسته سند دې دا سفیان بن عیینه رحمه الله د روایت باب په صحت سند او ثقاهت باندې د رشك اظهار کړې دې ځکه چه د روایت ټول راویان اکابر ثقات عدول اوحفاظ دی او په سند کښې چرته هم انقطاع نشته (۳)

**د حدیث نه مستنبط فوائد:** ① حاطب بن ابی بلتعه واقعه نه د رسول الله ﷺ د نبوت تصدیق شوې دې د دې خفیه واقعې ټول تفصیلات رسول الله ﷺ ته د وحې په ذریعه معلوم شو (۴)
② جاسوس که ښځه وی اوکه سړې د راز ښکاره کولو د پاره د هغه نه خط وغیره اخستل ضروری دی. (۵)

---

۱) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۲.
۲) عمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۳.
۳) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۲۱ وفتح الباری: ۶/ ۱۷۷ وعمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۶.
۴) عمدة القاری: ۱۴/ ۳۵۶ شرح مسلم للنووی: ۱۴/ ۳۰۲.
۵) شرح مسلم للنووی: ۱۴/ ۳۰۲.

③ د حدیث باب نه یوه خبره دا معلومه شوه چه جاسوسي کول مسلمانان د ایمان د دائري نه نه وځي [1]

④ د ضرورت په وخت ښځه بې لباسه کول جائز دي [2]

⑤ حضرت عمر رضی الله عنه حاطب بن ابي بلتعه رضی الله عنه د قتل کولو اراده اوکړه نو حضور ﷺ منع کړو ددې نه معلومه شوه چه د امام د اجازت نه بغیر څوک نه دي قتل کول پکار [3]

⑥ دحکم وخت به مخکي گناهگار سړي په سخته لهجه کښي خبره کول او ده لره د قتل اجازت غوښتل جائز دي [4]

⑦ الله تعالى د اهل بدر د گناهونو بخښش کړي دي ددې نه معلومیږي چه الله تعالى خپل وعیدونه نافذ کول او نه نافذ کولو اختیار دي [5]

**ترجمة الباب سره مطابقت** - په حدیث باب کښي لفظ ښعینه مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دې امام بخاري رحمه الله باب د جاسوس قیم کړې دې د حاطب بن ابي بلتعه دا خط اوړونکي ښځه هم جاسوسه وه [6]

## باب ۱۴۰: الکسوة للاساری

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې ترجمة الباب نه امام بخاري رحمه الله د قیدیانو حکم څودل غواړي که د قیدي په بدن باندې لباس نه وي نو هغه دې په کپړه باندې پټ کړې شي هغه بې لباس پرېښودل صحیح نه دي د ستر په حکم کښي مسلم او غیر مسلم برابر دي لکه څنګه چه د مسلمان سترته کتل جائز نه دي دغه شان د غیر مسلم سترته کتل هم جائز نه دي [7]

احدیث نمبر ۲۸۴۶ [8] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمَ بَدْرٍ أُتِيَ بِأُسَارَى، وَأُتِيَ بِالْعَبَّاسِ وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ ثَوْبٌ، فَنَظَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - لَهُ قَمِيصًا فَوَجَدُوا قَمِيصَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُبَيٍّ يَقْدُرُ عَلَيْهِ، فَكَسَاهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - إِيَّاهُ، فَلِذَلِكَ نَزَعَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - قَمِيصَهُ الَّذِي أَلْبَسَهُ. قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يَدٌ فَأَحَبَّ أَنْ يُكَافِئَهُ. [ر: ۱۲۱۱]

---

[1] شرح مسلم للنووي: ۲/۳۰۲ وعمدة القاري: ۱۴/۴۵۶.
[2] شرح مسلم للنووي: ۲/۳۰۲ وعمدة القاري: ۱۴/۴۵۶.
[3] شرح مسلم للنووي: ۲/۳۰۲ وعمدة القاري: ۱۴/۴۵۶.
[4] شرح ابن بطال: ۵/۱۶۳.
[5] شرح ابن بطال: ۵/۱۶۳.
[6] عمدة القاري: ۱۴/۲۵۴.
[7] فيض الباري: ۳/۴۴۲.
[8] مر تخرجه في الجنائز باب الكفن في القميص يكف أولا يكف.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد** - دا ابوجعفر عبدالله بن محمد جعفي رحمه الله دي دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده (۱)

② **ابن عيينه** - دا سفيان بن عيينه ابومحمد الكوفي رحمه الله دي دَ دوى حالات وړاندې تيرشوي دي (۲)

③ **عمرو** - دا عمرو بن دينار رحمه الله دي دَدوى تذكره وړاندې تيره شوې ده

④ **جابربن عبدالله** رضي الله عنهما - دَدوى حالات هم تيرشوي دي. (۳)

**لما كان يوم بدر، أتي بأسارى، وأتي بالعباس، ولم يكن عليه ثوب، فنظر النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قميصًا فوجدوا له قميص عبدالله بن أبي يقدر عليه فكساه النبي صلى الله تعالى عليه وسلم إياه.**

حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنهما وائي چه دَ بدر ورځ وه اودَ كافرانو قيديان راوستلي شو و حضرت عباس رضي الله عنه هم راوستلې شو دَهغوى په بدن باندې هيڅ لباس نه وو رسول الله ﷺ دَ هغوى دَپاره قميص اولټولو. صحابه كرامو رضي الله عنهم دَ عبدالله بن ابى قميص دَهغه دَ بدن برابر كړو حضورپاك هغوى ته هم هغه قميص واچولو.

يقدرعليه......:- دَحضرت عباس رضي الله عنه باره كښې راځي چه هغه دَ اوچتې خيمې په شان اوږدقدوالا وو. په قدكښې هغه دَ خپل پلارپه شان وو. دَهغوى پلار عبدالمطلب دَهغوى نه زيات اوږدوو. پخپله دَحضرت عباس ځوئى عبدالله رضي الله عنه هم اوږدقدوالاوو. كله چه به هغه نوږو خلقو سره تللو نوكتونكى به داسې محسوس كوله چه لكه عبدالله رضي الله عنه سور وى او نور خلق پياده روان وى. (۴) حضرت عباس رضي الله عنه خودهغوى نه هم دَ اوږدقدوالاوو (۵) هم دغه وجه وه چه دَهغوى دَ قدبرابر قيمص نه ملاويدلو. عبدالله بن ابى بن سلول دَ اوږد قد والاوو په دې وجه دَهغوى قميص برابرشو نورسول الله ﷺ هغه واخستو او حضرت عباس رضي الله عنه ته ئې واغوستلو

**قوله**: فلذلك نزع النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قميصه الذي ألبسه - هم په دې وجه رسول اكرم ﷺ خپل قميص كوز كړو او عبدالله بن ابى ته ئې واغوستلو مطلب دا چه كله عبدالله بن ابى بن سلول وفات شو نورسول الله ﷺ خپل قميص كوز كړو اوهغه ته ئې واغوستلو ځكه چه په جنګ بدر كښې كله حضرت عباس رضي الله عنه قيديانوسره اونيولې شو نو دَهغه په بدن باندې دَهغه قميص ناكافى وو په دې وجه دَعبدالله بن ابى نه قميص واخستلې شو او

---

(۱) كشف البارى: ۶۵۷/۱.

(۲) كشف البارى: ۲۳۸/۱.

(۳) كتاب الوضوء باب صب النبي الوضوء على المغمى عليه.

(۴) عمدة القاري: ۴۵۷/۱۴.

(۵) عمدة القاري: ۳۵۷/۱۴.

هغه ته ورواغوستلې شو دا په رسول الله ﷺ د عبدالله بن ابی احسان وو د دې بدله حضورپاك داسې ورکړه کله چه عبدالله بن ابی مړشو نوحضورپاك خپل قمیص هغه ته واغوستو ددې روایت متعلق څه تفصیل کتاب الجنائزکښې هم تیرشوې دې

**د حدیث نه مستنبط فوائد:-** ① علامه مهلب رحمه الله فرمائی چه د روایت باب نه معلومه شوه چه قیدیانوسره په ښه سلوك سره مخ کیدل پکاردی کله هغه بې لباس وی یا د هغه په تن باندې لباس ناکافی وی نوهغوی ته لباس ورکول پکاردی بربنډې نه شی پریخودې ځکه چه د مسلمان په شان د غیرمسلم سترته کتل هم ګناه ده (۱)

② لکه څنګه چه په ژوندکښې د چاد احسان بدله په احسان سره ورکولې شی په روایت باب کښې د رسول الله ﷺ د طرزعمل نه ثابته شوه چه د مرګ نه پس هم د احسان بدله ورکولې شی. (۲)

## باب ۱۴۱: فضل من أسلم علی يديه رجال

**د ترجمة الباب مقصد:-** ددې ترجمة الباب نه امام بخاری رحمه الله د هغه سړی فضیلت بیانول غواړی د چاپه لاس چه څوك اسلام قبول کړی (۳)

[حدیث نمبر ۲۸۴۷] (۴) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيُّ عَنْ أَبِي حَازِمٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَهْلٌ - رضی الله عنه يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - يَوْمَ خَيْبَرَ «لأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلاً يُفْتَحُ عَلَى يَدَيْهِ، يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ، وَيُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ».

فَبَاتَ النَّاسُ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَى فَغَدَوْا كُلُّهُمْ يَرْجُوهُ فَقَالَ «أَيْنَ عَلِيٌّ». فَقِيلَ يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ، فَبَصَقَ فِي عَيْنَيْهِ وَدَعَا لَهُ، فَبَرَأَ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ، فَأَعْطَاهُ فَقَالَ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا. فَقَالَ « انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ، ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الإِسْلاَمِ، وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ، فَوَاللَّهِ لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ بِكَ رَجُلاً خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ». [ر: ۲۷۸۳]

## رجال الحدیث

① **قتیبه بن سعید:-** دا ابورجاء قتیبه بن سعید ثقفی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی. (۵)

---

(۱) شرح ابن بطال: ۱۶۶/۵ عمدة القاری: ۳۵۷/۱۴.

(۲) شرح ابن بطال: ۱۶۶/۵ عمدة القاری: ۳۵۷/۱۴.

(۳) عمدة القاری: ۳۵۷/۱۴.

(۴) الحدیث أخرجه البخاری فی التفسیر باب کنتم خیر أمة أخرجت للناس رقم: ۷۵۵۷ وأبوداود فی الجهاد باب الاسیر یوثق رقم: ۲۶۷۷.

(۵) کشف الباری: ۱۸۹/۲.

② **يعقوب بن عبدالرحمن** - دايعقوب بن عبدالرحمن بن محمدبن عبدالله بن عبدالقارى القرشي الاسكندرانى رحمه الله دې د دوى حالات وړاندې تيرشوى دى [1]

③**ابوحازم** - داابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دې ددوى تذكره هم وړاندې تيره شوې ده

④**سهيل ابن سعد** رضي الله عنه - ددوى حالات هم وړاندې تيرشوى دى [2] دا روايت هم كتاب الجهاد كښې باب دعاء الرسول صلى الله تعالى عليه وسلم إلى الاسلام والنبوة لاندې په تفصيل سره تيرشوى دى

**ترجمة الباب سره مناسبت** - په حديث باب كښې دى لان يهدى الله بك رجلا خيرلك من أن يكون لك حمرالنعم په خدائى كه ستاسو د وجه نه الله تعالى يوسړى ته هدايت ايمان نصيب كړى نودا ستاسو د پاره د سرو اوښانونه زيات بهتردى ترجمة الباب سره ددې مناسبت واضح دې

## باب ۱٤۲: ألاسارى فى السلاسل

**د ترجمة الباب مقصد** - شرعًا تعذيب خلق الله حرام دې ځكه چه دا وهم كيدې شو چه قيدى په زنځيرونوكښې تړل د دغه قاعدې لاندې حرام كيدل پكاردى. شيخ الحديث مولانا محمدزكريا رحمه الله فرمائيلى امام بخارى رحمه الله ددې وهم ترديدفرمائيلې دې اوداثې ثابت كړى دى چه قيديان په زنځيرونو تړل جائزدى اوداخلق الله تعذيب نه دې [3] هم دغه رائې د امام ابوداؤد رحمه الله هم ده. هغه كتاب الجهاد باب الاسيريوثق لاندې ثمامه بن اثال او حارث بن برصاء واقعات نه استدلال كړې دې. د حارث بن برصاء د واقعه متعلق د سنن ابى داؤد روايت د حضرت جندب بن مكيث رضي الله عنه نه مروى دې روايت داسې دې **بعث رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم عبدالله بن غالب الليثى فى سرية، وكنت فيهم، وأمرهم أن يشنوا الغارة على بنى الملوح بالكديد فخرجنا، حتى إذاكنا بالكديد، لقينا الحارث إلى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم، فقلنا: إن تك مسلما لم يضرك رباطنا يوما وليلة، وأن تكن غيرذلك نستوثق منك، فشددناه وثاقا** [4]

حضرت جندب بن مكيث رضي الله عنه وائى رسول الله صلى الله عليه وسلم عبدالله بن غالب رضي الله عنه د ټولګى اميرجوړكړو د بنوالملوح سره د جنګ د پاره اودكديدمقام طرف ته ئى اوليګلو كله چه مونږ سفرله اووتلو او كديدمقام ته اورسيدو نوهلته زمونږ ملاقات حارث بن برصاء ليثى سره اوشو مونږ هغه راؤنيولو نوهغه اوونيل چه زه خو هم د اسلام په اراده سره راغلې يم اوپه حقيقت كښې هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې د حاضريدودپاره راوتلې يم مونږ هغه ته اوونيل چه كه ته مسلمان شوې ئې نو زمونږ ستاد يوې ورځې اويوې شپې دپاره تړل به تاته هيڅ نقصان درنه

---

[1] ) كتاب الجهاد باب الخطبة على المنبر رقم:۹۱۷.

[2] ) ابوحازم او سهيل بن سعيد دواړو تذكره دپاره اوګورئى كتاب الوضوء باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه رقم:۲٤۳.

[3] ) الابواب والتراجم للمحدث زكريا الكاندهلوى ص:۲۰۱.

[4] ) سنن أبى داؤد:۲/۷ امداديه.

کړی او که ته اسلام نه وی راوړی نو بیا مونږ ته نه اطمینان غواړو نو مونږ هغه اوتړلو
اود ثمامه بن اثال رضی الله عنه سره متعلق د سنن ابوداؤد د روایت راوی حضرت ابوهریره رضی الله عنه دې

روایت دادې بعث رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم خیلا قبل نجد، فجاءت برجل من بنی حنیفة یقال له ثمامة بن أثال سید أهل الیمامة فربطوه بساریة من سواری المسجد، فخرج إلیه رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم، فقال: ماذا عندك یا ثمامة؟ قال: عندی یا محمد خیر، ان تقتل تقتل ذا دم، وان تنعم تنعم علی شاکر، وان کنت ترید المال فسل تعط منه ماشئت، فترکه رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم حتی إذا کان الغد، ثم قال له: ماعندك یا ثمامة؟ فاعاد مثل هذا الکلام، فترکه رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم، حتی إذا کان بعد الغد، فذکر مثل هذا، فقال رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم: أطلقوا ثمامة، فانطلق إلی نخل قریب من المسجد، فاغتسل فیه ثم دخل المسجد، فقال: أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا عبده ورسوله [۱]
حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم یو تولکې د نجد طرف ته اولیږلو نو هغه سریه د قبیله بنوحنفیه یو سړې اونیولو اوستلو د هغه نوم ثمامه بن اثال وو چه د اهل یمامه سردار وو دې خلقو هغه مدینې ته راوستلو او په مسجد نبوی کښې یو ستنې پورې اوتړلو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه سره تیرشو نو حضور پاک اوفرمائیل ثمامه ستا په ذهن کې څه دی؟ ثمامه عرض اوکړو ای محمد: ما سره خیر دې (یعنی د اسلام راوړلو اراده ده) که چرې تاسو ما قتل کړې نو تاسو به یو داسې سړې قتل کړنی چه ذودم دې که تاسو په ما باندې انعام کونې نو تاسو به په یو داسې سړی باندې انعام اوفرمایئی چه ستاسو شکرګذار به وی که تاسو مال غواړنی نو چه څومره غواړئ درکولې به شی حضور پاک هغه پریخودو اولاړو په صباله هم دغه سوال جواب اوشو نو حضور پاک اوفرمائیل ثمامه پریږدئی ثمامه د هتکرو نه خلاصیدو سره جمات سره نیزدې یو باغ ته لاړو چرته چه اوبه وې هلته ئی غسل اوکړو او بیا جمات ته راغلو کله شهادت ئی اوونیله امام ابوداؤد رحمه الله د دې دواړو روایاتونه ربط الاسیر په جواز باندې استدلال کړې دې

[حدیث نمبر ۲۸۴۸] [۲] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلی الله علیه وسلم - قَالَ « عَجِبَ اللَّهُ مِنْ قَوْمٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ فِي السَّلاَسِلِ ».

## رجال الحدیث

① **محمدبن بشار** دا محمدبن بشار عبدی بصری رحمه الله دې د دوی تذکره کتاب العلم باب العلم قبل القول والعمل لاندې تیره شوې ده [۳]

---

[۱] سنن أبی داؤد: ۱/۷ — ۸ باب الاثیر یوثق.
[۲] أخرجه البخاری أیضًا: ۶۵۷/۲ فی کتاب تفسیر باب کنتم خیر أمة أخرجت للناس رقم: ۵۸۸۷ وعند أبی داؤد فی سننه: ۲/۷ فی کتاب الجهاد باب الاسیر یوثق رقم: ۲۶۷۷.
[۳] کشف الباری: ۲۵۸/۳.

④ **غندر** - دا ابوعبدالله محمد بن جعفر هذلی دې دَ غندر په لقب سره مشهوردې ددوی حالات کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم لاندې تیر شوی دی (۱)

③ **شعبه** - دا شعبه بن الحجاج واسطی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې وړاندې تیرشوی دی (۲)

④ **محمدبن زیاد** - دا ابوالحرث محمدبن زیاد حجمی مدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۳)

⑤ **ابوهریرة** رضی الله عنه - دَ دوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تیرشوی دی کشف الباري: ۶۵۹/۱.

**قوله: عجب الله من قوم یدخلون الجنة فی السلاسل** - الله تعالی په داسې قوم باندې تعجب اوفرمائیلو چه په زنځیرونو کښې تړلې به جنت کښې داخلیږی. تعجب دَلته دَ رضا اوخوشحالئی په معنی کښې دې اومطلب دادې چه دَ داسې خلقو نه به الله تعالی راضی اوخوشحاله وی چه په زنځیرونوکښې تړلې شوی جنت ته داخلیږی. دَ حدیث اکثر شارحینو وئیلی دی چه دې نه هغه کافران مراد دی کوم چه مسلمانانو قیدیان جوړکړی په زنځیرونوتړلې دارالاسلام ته راوستې دی اوهم په دغه حال کښې هغوی مسلمانان شوی دی. دَ جنت نه مراد بعض خلقو اسلام مراد اخستې دې. ځکه چه اسلام دَ جنت دَداخلیدو سبب دې په دې وجه علی سبیل المجاز سبب وئیلوسره مسبب مراد واخستلې شو (۴)

علامه ابن جوزی رحمه الله وضع سلاسل په مجازباندې محمول کولوسره وئیلی دی "یدخلون الجنة فی السلاسل" مطلب دا نه دې چه هغه خلق به په زنځیرونوکښې تړلې شوې اسلام کښې داخلیږی بلکه دا ذکراه نه کنایه ده اومطلب دادې چه هغه خلق قیدی جوړیدوسره دارالاسلام ته راوستې شی خو چه کله دَ اسلام دَ حقانیت معترف کیږی نو په خپله خوشحالئی به په اسلام کښې داخلیږی (۵)

علامه کرمانی رحمه الله اودَهغوی په اتباع کښې علامه برماوی رحمه الله فرمائیلی چه دَ قوم نه دلته هغه مسلمانان قیدیان هم مراد کیدې شی چه کافرانوسره په زنځیرونوکښې تړلې وی او بیا په تړلوکښې وفات شی یاقتل کړې شی نو د حشر په ورځ به هغوی هم دغه شان راوچتولې شی. دَ داسې خلقو جنت کښې داخلیدل یقینی دی په دې وجه په حدیث کښې دَ حشر په ورځ راوچتیدلو تعبیر دخول جنت سره اوکړې شو (۶)

---

(۱) کشف الباري: ۲/۲۵۰ – ۲۵۱.
(۲) کشف الباري: ۶۷۸/۱.
(۳) کتاب الوضوء باب غسل الاعقاب.
(۴) عمدة القاري: ۴۸۲/۶ إرشاد الساري: ۴۸۲/۶.
(۵) فتح الباري: ۱۷۹/۶ وإرشاد الساري: ۴۸۲/۶.
(۶) شرح الکرماني: ۲۲/۱۳ عمدة القاري: ۳۵۸/۱۵ إرشاد الساري: ۴۸۲/۶.

خلاصه دا چه دَدې حضراتو په نیز "یدخلون الجنة فی السلاسل" حشر نه کنایه ده
لیکن علامه عینی رحمه الله فرمانیلی دی چه دکرمانی داتوجیه دمجازد قبیل نه ده کله چه لفظ جنت دَهغې په حقیقی معنی محمول کولې شی نودا په مجاز باندې دَ محمول کولوڅه ضرورت دې اوڅه مانع هم نشته چه دَ جنت نه دلته مصداق حقیقی مراد وی او یدخلون الجنة فی السلاسل تقدیر وی یدخلون الجنة، وکانوا فی الدنیا فی السلاسل. (۱)
علامه طیبی رحمه الله فرمانی دلته دَ سلاسل نه مراد دَ جذب هغه کیفیت دې چه دَ الله تعالی منتخب بندیګان دَ ضلالت نه هدایت طرف ته راکاږی اودَ قعرمذلت نه ښکته پریوتلو نه درجات عالیه طرف پورته راکاږی ښکاره خبره ده چه دَدې توجیه په صورت کښې دَحدیث الفاظ په حقیقت باندې محمول نه دی په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمانیلی دی چه دَعلامه طیبی رحمه الله دا توجیه هم دَ مجازدَ قبیل نه ده (۲) حقیقت دادې چه لفظ جنت نه دلته حقیقی معنی مراد اخستل راجح دی لکه چه دَعلامه عینی رحمه الله رائې ده اودَدې جملې مطلب دادې چه کله کافران مسلمانان په میدان جهادکښې راګیرکړی او په زنځیرونو کښې اوتړی او قتل ئې کړی نوهغوی به هم په هغه حال کښې جنت ته داخلولې شی دابه دَهغوی دپاره دَاعزاز سبب وی چه هغوی داسې تکلیفونه او سختئی برداشت کولو ـ ره دَالله تعالی په لارکښې خپل ځان قربانی کړو والله اعلم
دغه شان وضع سلاسل هم په حقیقت باندې محمول دې. هم دغه رائې دَ حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله هم ده. دَ حافظ ابن جوزی رحمه الله په نیزدې نه اکراه اوعلامه طیبی رحمه الله په نیزدې نه دَ جذب کیفیت مراددې. دا صحیح نه ده. حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائیلی دی چه وړاندې په کتاب التفسیرکښې حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت نه ددې تائیدکیږی چه وضع سلاسل په حقیقت باندې محمول دې. حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ تفسیر داسې کړې دې. خيرالناس للناس ياتون بهم في السلاسل في أعناقهم حتى يدخلوا في الاسلام. (۳)
حافظ ابن حجر رحمه الله دَ یوبل روایت نه هم استدلال کړې دې چه دَ ابوالطفیل رضی الله عنه دَ طریق نه امام بخاری رحمه الله مرفوعًا نقل کړې دې. روایت دادې: رایت ناسا من امتی یساقون إلی الجنة فی السلاسل کرهًا، قلت یارسول الله من هم؟ قال: قوم من العجم یسبیهم المهاجرون فیدخلونهم فی الاسلام مکرهین. (۴)
**ترجمة الباب سره مناسبت:-** علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی که دَ روایت نه حقیقتًا وضع سلاسل مرادوی نوبیاخو ترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښکاره دې. ځوکه دا په حقیقت باندې

(۱) عمدة القاری ۳۵۸/۱۵.
(۲) فتح الباری:۱۷۹/۶ عمدة القاری:۳۵۸/۱۵.
(۳) صحیح بخاری:۶۵۴/۲ کتاب التفسیر باب کنتم خیر أمة أخرجت للناس رقم:۵۸۸۷.
(۴) فتح الباری:۱۷۱/۶.

محمول نه وى بلكه دَ اكراه نه كنايه وى نو بيابه په دواړو كښې هيڅ مناسبت نه وى. ان كان المراد حقيقة وضع السلاسل فى الاعناق فالترجمة مطابقة، وان كان المراد المجاز عن الاكراه فليست مطابقة [1]، خو علامه قسطلانى رحمه الله فرمائيلى دى چه دا هم په حقيقت باندې محمول دې او ددې تائيد دَ سورت آل عمران آيت ﴿ كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ﴾ لاندې دَ حضرت ابوهريره رضى الله عنه ددې قول نه كيږى خيرالناس للناس ياتون بهم فى السلاسل مكرهين [2]. لهٰذا په ترجمة الباب او حديث كښې مناسبت موجود دې.

## باب ۱۴۳: فضل من أسلم من أهل الكتابين

**دَ ترجمة الباب مقصد** - اهل كتابين يعنى يهود او نصارىٰ كتابين تثنيه ده او ددې نه تورات او انجيل مراد دې دَ ترجمة الباب مقصد دا دې كه چرې يهود او نصارىٰ ايمان راوړى نو دوى ته به دوچنده ثواب ملاويږى.

احديث نمبر ۲۸۴۹ [3] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ حَيٍّ أَبُو حَسَنٍ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ يَقُولُ حَدَّثَنِي أَبُو بُرْدَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ « ثَلاَثَةٌ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ الرَّجُلُ تَكُونُ لَهُ الأَمَةُ فَيُعَلِّمُهَا فَيُحْسِنُ تَعْلِيمَهَا، وَيُؤَدِّبُهَا فَيُحْسِنُ أَدَبَهَا، ثُمَّ يُعْتِقُهَا فَيَتَزَوَّجُهَا، فَلَهُ أَجْرَانِ، وَمُؤْمِنُ أَهْلِ الْكِتَابِ الَّذِي كَانَ مُؤْمِنًا، ثُمَّ آمَنَ بِالنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَلَهُ أَجْرَانِ، وَالْعَبْدُ الَّذِي يُؤَدِّي حَقَّ اللَّهِ وَيَنْصَحُ لِسَيِّدِهِ ». ثُمَّ قَالَ الشَّعْبِيُّ وَأَعْطَيْتُكَهَا بِغَيْرِ شَيْءٍ، وَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يَرْحَلُ فِي أَهْوَنَ مِنْهَا إِلَى الْمَدِينَةِ. [ر: ۹۷]

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله** - دا على بن عبدالله بن جعفر ابن المدينى رحمه الله دې دَدوى حالات كتاب العلم باب الفهم فى العلم لاندې مخكښې تيرشوى دى [4].

② **سفيان** - دا ابو محمد سفيان بن عيينه الكوفى دې دَدوى حالات كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبانا لاندې تيرشوى دى [5].

③ **صالح بن حي ابوالحسن** - دا صالح بن صالح بن حيان ثورى همدانى رحمه الله دې دَدوى حالات كتاب العلم باب تعليم الرجل امته واهله لاندې مخكښې تيرشوى دى [6].

---

[1] ) فتح البارى: ۶/ ۱۷۹ إرشاد السارى: ۶/ ۴۸۲.
[2] ) إرشاد السارى: ۶/ ۴۸۲.
[3] ) قدمر تخرجه الحديث فى كتاب العلم باب تعليم الرجل أمته وأهله.
[4] ) كشف البارى: ۳/ ۲۹۷.
[5] ) كشف البارى: ۳/ ۱۰۲ – ۱۰۶.
[6] ) كشف البارى: ۳/ ۵۹۳.

④ **شعبى** دا ابوعمرو عامر بن شراحيل شعبى كوفى رحمه الله دې دده حالات كتاب الايمان باب امور الايمان لاندې تيرشوى دى (١)

⑤ **ابوبرده** . دا عامر ياحارث بن موسى اشعرى رضي الله عنه دې دده حالات كتاب الايمان باب أي الإسلام افضل لاندې تيرشوى دى (٢)

⑥ **انه سمع اباه** . ددې نه د ابوبرده پلار حضرت ابوموسى اشعرى رضي الله عنه مراد دې د ده حالات بدء الوحى لاندې تيرشوى دى (٣)

**ثلثة يؤتون أجرهم مرتين: الرجل تكون له الامة، فيعلمها فيحسن تعليمها، ويؤدبها فيحسن أدبها، ثم يعتقها فيتزوجها، فله أجران** د ثلاثه تقديرعبارت دې ثلاثه من الرجال دا مبتداء دې يؤتون أجرهم مرتين ددې خبردې الرجل دا د مرفوع لوستلو په حالت كښې دوه صورتونه دى ياخو د ثلاثة نه بدل واقع وى يا بيا مبتداء محذوف خبروى او تقديرعبارت وى أولهم الرجل (٤) په روايت كښې دى چه دريو سړوته به دوه چنده ثواب ملاويږى يوهغه سړې چه دهغه وينځه وى اوهغه دې ته تعليم وركړو اوپه ښه شان سره ئې ورته تعليم وركړو. هغه دې ته ادب اوخودلو او په ښه شان سره ئې ورته اوخودلو بيائې هغه آزاده كړه اوبيائې هغې سره نكاح اوكړه نوده ته به دوچنده اجرملاويږى

علامه كرمانى رحمه الله فرمائيلى چه دتعليم تعلق شرعى اموروسره دې اودتاديب تعلق د دنيا امورو سره دې (٥) مطلب دادې چه داحكام آخرت تعليم ئې هم وركړو او د دنيا د اوسيدو تگ راتگ اوتهذيب اوتمدن طور طريقې ئې ورته هم اوخودلې اوبيائې آزاده كړه اوهغې سره نكاح اوكړه نوده ته به ډبل ثواب ملاويږى رق اوحريت دوه متنافي امور دى د هرو دواړو جدا جدا تقاضې دى په دې لحاظ به دغه سړى ته ډبل اجرملاويږى (٦) علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى د اجران نه اعتاق او تزويج مراد دې يعنى يواجر د وينځې په آزادولو او دويم اجرهغې سره په نكاح كولو (٧)

**ومومن أهل الكتاب الذى، كان مؤمنا، ثم آمن بالنبى صلى الله تعالى عليه وسلم فله أجران** دويم مومن اهل كتاب چه د اول نه (په خپل پيغمبرباندې) ايمان لرلو بيائې په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راوړلو نوده ته به هم دوچنده اجرملاويږى

**د اهل كتاب مصداق:** - اهل كتاب نه عموما يهود اونصارى مراددى خودلته ابوعبدالملك رحمه الله

---

(١) كشف البارى: ١/٦٧٩.
(٢) كشف البارى: ١/٦٩٠.
(٣) كشف البارى: ١/٢٩٠.
(٤) إرشاد السارى: ٦/٤٨٣.
(٥) شرح الكرمانى: ٢/٨٩.
(٦) شرح الكرمانى: ٢/٨٩.
(٧) إرشاد السارى: ٦/٤٨٦.

او علامه توريشتى رحمه الله فرمائى چه دې نه صرف عيسايان مراد دى. هم دغه روايت په دويم طريق سره وړاندې امام بخارى رحمه الله كتاب احاديث الانبياء لاندې هم نقل كړې دې په هغې كښې دا الفاظ هم وارد دى: وإذا آمن بعيسى ثم آمن بى [1] دَ دغه حضراتو استدلال دَ روايت هم دغه الفاظ دى په كوم كښې چه په عيسى عليه السلام او بيا په رسول اكرم ﷺ باندې دَ ايمان راوړلو تصريح ده. دويم دليل دادې چه يهوديت دَعيسائيت دَ وجه نه منسوخ شوې دې په منسوخ دين باندې ايمان راوړل نافع نه دى لهذا په روايت باب كښې دَ اهل كتاب نه هم عيسايان مراد دى. [2]

علامه طيبى علامه كرمانى حافظ ابن حجر اوملاعلى قارى رحمهم الله فرمائى دَ اهل كتاب نه دلته يهود او نصارىٰ دواړه مراد دى. [3] ځكه چه په كتاب او سنت كښې دَاهل كتاب اطلاق په يهودو اونصارىٰ دواړوباندې كيږى. پخپله دَ امام بخارى رحمه الله رحجان هم دغه دې په كتاب الباب كښې كتابين تثنيه واردشوې ده دَ باب لاندې چه كوم روايت امام صاحب نقل كړې دې "ومؤمن أهل الكتاب الذى كان مؤمنا ثم آمن بالنبى فله أجران" دَدې نه معلوميږى چه پخپله هم دَهغوى په نيز هم روايت باب كښې دَ اهل كتاب مصداق يهود او نصارىٰ دواړه دى او هم په دې وجه په ترجمة الباب كښې دَ تثنيه صيغه راوړلې شوه كه چرې په روايت كښې دَاهل كتاب نه دَهغوى په نيزصرف عيسايان مرادوې نو په ځائې دَ تثنيه به دَ مفردصيغه ذكركولې شوه. والله اعلم.

**دَفله أجران مطلب** :- دادې چه دَ رسول الله ﷺ دَ بعثت نه وړاندې يابيا دَ بعثت نه روستو اهل كتاب ته چه تركومې پورې دَ رسالت پيغام نه وو ملاؤشوې په حضرت عيسى عليه السلام باندې ايمان لرلو اودَ يونبى تكذيب ئې نه دې كړې. چه كله رسول الله ﷺ مبعوث كړې شو نو په هغوى باندې ئې ايمان راوړو. په دې وجه اوفرمائيلې شوچه دوى ته به ډبل ثواب ملاويږى

**ثم قال الشعبى: وأعطيتكها بغيرشئ وقدكان الرجل يرحل فى أهون منها إلى المدينة** بيا شعبى رحمه الله اوفرمائيل چه مونږ تاسو ته دا روايت مفت دركړې دې. سره دَدې چه وړاندې به سړى دَدې نه هم دَ كم دپاره دَ مدينې سفركولو. په يوروايت كښې واعطيتكها په ځائې صيغه دَ استقبال سره واعطيكها وارد شوې دې. [4] دلته په ظاهره دَ عامرشعبى رحمه الله دَخبرې انداز خطاب دَ صالح طرف ته دې علامه كرمانى رحمه الله هم صالح دَ شعبى شاګرد ګرځولوسره هم په هغه باندې جزم كړې دې. [5]

ليكن حقيقت دادې چه دلته خطاب دَ صالح طرف ته نه دې بلكه دَ يوخراسانى سړى طرف ته دې هم دَ صحيح بخارى يو روايت كښې پخپله صالح تصريح كړې ده.

---

[1] ) صحيح بخارى: ۴۹۰/۱ كتاب أحاديث الانبياء باب واذكر فى الكتاب مريم.... رقم:۳۴۴۶.

[2] ) فتح البارى:۱۹/۱.

[3] ) شرح للطيبى:۱۲۶/۱ شرح الكرمانى:۸۸/۲ فتح البارى:۱۹۱/۱ المرقاة:۷۸/۱.

[4] ) عمدة القارى: ۳۵۹/۱۴.

[5] ) شرح الكرمانى:۹۰/۲.

ان رجلا من أهل خراسان قال للشعبي فقال الشعبي أخبرنا أبوبردة عن أبي موسى رضي الله عنه [۱]

**فائده** . علامه عيني رحمه الله فرمائي چه په دې كلام سره د امام شعبي رحمه الله غرض طلب علم حرص اوجذبه پيدا كول مقصود دى خصوصا چه معلم حاضر وى [۲] مطلب داچه كله معلم موجود وى نو دغه موقع غنيمت اوګڼړلو سره د معلم نه استفاده كول پكار دى

## باب ۱۴۴ : أهل الدار يبيتون، فيصاب الولدان والذراري

بَيّتاً (الاعراف: ۴) لَيلاً (لَنُبَيِّتَنَّهُ) (النمل: ۴۹) لَيلاً، (يُبَيِّتُ) (النساء: ۸۱) لَيلاً.

**حل لغات** أهل الدار - دې نه اهل حرب مراد دى. **يبيتون** دا تبييت باب تفعيل نه د مجهول صيغه ده بيت العدو معنى ده په دښمن باندې د غفلت په وخت ناڅاپى حمله كول يلغار كول د تبييت معنى د نيت كولو د شپې غور اوفكر كول هم راځى [۳] د سنن نسائى په يو روايت كښې دى لاصيام لمن لم يبيت الصيام [۴] **الوالدان:** د فعيل په څانى د وليد جمع ده د دې معنى ده نوې پيدا شوې ماشوم يا غلام [۵] د مؤنث د پاره وليدة استعماليږى د دې جمع ولائد ده [۶] علامه ابن اثير رحمه الله فرمائي وقد تطلق الوليدة على الجارية والامة، وإن كانت كبيرة. [۷] د وليد د اطلاق په نوكرو او وينځه باندې كيږى سره د دې كه هغه د زيات عمر وى. **الذراري** د يا په تشديد سره د ذرية جمع ده په معنى د انسانى نسل ښځې اوسړى دواړه شامل دى د دې اصل ذرئة دى عربو به دا هم غيرمهموز استعمالولو په دې وجه د تخفيف د وجه نه همزه حذف كړې شو [۸] يو قول دا دى چه د دې اصل ذر دې د دې معنى د تفريق اوخوريدو ده انسانى نسل هم الله تعالى په مخ د زمكې خوركړو په دې وجه دې ته ذرية وائى [۹]

**د ترجمة الباب مقصد** - د امام بخارى رحمه الله مقصد دادې چه په كافرانو باندې د شپې په وخت په بې خبرئې كښې ناڅاپى حمله كول جائز دى كه تبعاً ښځې اوماشومان قتل شى نو دا معفو عنه دې خو قصداً د دوى قتل كول جائز نه دى امام بخارى رحمه الله باب قايم كړې دې أهل الدار يبيتون

---

[۱] صحيح البخاري: ۱/۴۹۰ كتاب أحاديث الانبياء باب واذكر في الكتاب مريم.... رقم: ۳۴۴۶.
[۲] عمدة القاري: ۱۴/۳۵۹.
[۳] النهاية لابن الاثير: ۱/۱۷۲.
[۴] سنن النسائي كتاب الصيام باب ذكر اختلاف النافلين رقم: ۲۳۳ وأخرجه الدارمي في كتاب الصوم باب من لم يجمع الصيام: حديث: ۲/۷.
[۵] النهاية لابن الاثير: ۲/۸۷۸ والقاموس الوحيد ص: ۱۷۹۷ مادة: ولد.
[۶] النهاية لابن الاثير: ۲/۷۸۹.
[۷] النهاية لابن اثير: ۲/۷۸۹.
[۸] النهاية: ۱/۶۰۲ قال ابن الاثير رحمه الله الذرية اسم يجمع نسل الانسان من ذكر وأنثى. وأصلها الهمز. وتجمع على ذريات وذرارى مشدداً.
[۹] النهاية: ۱/۶۰۲.

فیصاب الوالدان والذراری. شارحینو ونیلي چه دلته عبارت محذوف دې تقدیر عبارت دې هل یجوز ذلك أم لا؟ یعنی په اهل حرب باندې اچانك حمله اوکړې شی اوددې په نتیجه کښې ماشومان اوښځې هلاك شی نودا جائزدی که نه؟ ددې مسئلې حکم په حدیث باب کښې تصریح سره د راغلي دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب کښې تصریح نه ده کړې [۱]

**بیاتا لیلا** دَ امام بخاری رحمه الله عادت دې چه دَحدیث څه لفظ د قرآن مجید په آیت کښې واردشوی لفظ سره دَ یوې معنې وی نودهغې تفسیر هم په هغه آیت کښې واردشوی لفظ سره کوی [۲] دَ خپل عادت مطابق دلته هم امام بخاری رحمه الله هم داسې کړی دی چه دَ بیاتا تفسیر ئې سره کړې دَدې دَپاره چه دَ قرآن مجید په کومو آیاتونوکښې دا ماده وارد ده هغه هم دَ لیل په معنی کښې استعمال شوې ده په حدیث باب کښې لفظ **یبیتون** واردشوې دې دلته امام بخاری رحمه الله دَ قرآن مجید درې آیاتونه نقل کړی دی چه لفظ **یبیتون** کښې دَ حدیث باب موافق دی بیاتا نه دَ سورت اعراف آیت ﴿ وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنٰهَا فَجَآءَهَا بَأْسُنَا بَيَاتًا أَوْ هُمْ قَآئِلُوْنَ ﴾ [۳] مراد دی [۴] دَ آیت ترجمه ده څومره کلی مونږ هلاك کړی دی په کومو چه زمونږ عذاب دَ شپې راغلو یا په داسې حالت کښې چه دَ غرمې اوده کیدونکی وو

**دَعلامه ابن منیر رحمه الله تسامح**: علامه ابن منیر رحمه الله بیاتا په ځائی نیاما نقل کړې دې دَدوی په نیز دَترجمة الباب عبارت داسې دې فیصاب الولدان والذراری نیاما لیلا. دَدوی خیال دې چه نیاما لیلا الفاظ هم دَ ترجمة الباب حصه ده په امام بخاری رحمه الله باندې اعتراض کولوسره علامه ابن منیر رحمه الله وائی داعجیبه خبره ده چه امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې نیاما اضافه کړې ده حالانکه په حدیث باب کښې دَ نیاما تصریح نشته سره ددې چه ضمناً ذکرنی راغلي دې ښکاره خبره ده چه تبییت یعنی دَ شپې دَ حملې په وخت اکثرخلق اوده وی نولکه چه دَ نیام ذکردَ **یبیتون** په ضمن کښې راغلو خودَ نوم قیدلګولو آخرڅه ضرورت وو؟ مشرکان که نیام یعنی اوده کیږی یا **أیقاظ** یعنی ویښیږی په دواړو صورتونوکښې په هغوی باندې دَ حمله کولو هم یوحکم دې. نودَ **تقیید بالنوم** هډوضرورت نشته

خلاصه دا چه علامه ابن منیر رحمه الله نه دلته دوه هیرې شوی یودا چه هغه دَ بیاتا په ځائی نیاما نقل کړې دې حالانکه صحیح هم بیاتادې یاخوداپخپله دَهغه تصحیف دې یا بیادا چه هغه سره د صحیح بخاری کومه نسخه وه هغه مصحف وو. دویمه هیره دَهغه نه داشوې چه هغه

---

[۱] ) فتح الباری:۶/۱۸۱ وعمدة القاری:۱۴/۳۵۹ وإرشاد الساری:۶/۴۸۵.
[۲] ) فتح الباری:۶/۱۸۱.
[۳] ) سورة اعراف:۴.
[۴] ) إرشادالساری:۶/۴۸۵.

بیاتا لیلا د ترجمه جز ګرځولې حالانکه دا د ترجمة الباب جزنه دې بلکه د قرآن آیت دې [۱]
علامه ابن منیر رحمه الله د دې دا جواب ورکړې دې چه د په وینه مقابله کښې د خوب په حالت کښې حمله کول او ناڅاپې حمله کول په دهوکه او فریب کښې راځي په دې وجه د نیاما نه امام بخاری رحمه الله د دې د جواز طرف ته اشاره کړې ده چه د خوب په حالت کښې خو حمله کول د دهوکې په ذیل کښې راځي ولې دا سې کولو کښې هیڅ حرج او بدیت نشته [۲]
لنبیتنه دې نه د سورت نمل آیت ﴿ قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ أَهْلِهِ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴾ [۳] مراد دې د آیت ترجمه ده هغوی اوونیل په خپل مینځ کښې په الله باندې قسم اوخوړنې چه صالح او د هغه په کور والا باندې حمله اوکړنی بیا د هغه وارث ته اووائی چه مونږ د هغې د خاندان د هلاکت په وخت موجود نه وو او بیشکه مونږ رښتونی یو
د ابوذر په روایت کښې دالفظ د هغه شان بغیرد اضافه دې خو بیاهم په نورو نسخو کښې دی لنبیتنه لیلا په دې کښې د لیلا اضافه هم ده [۴]
بیت - دې نه د سورت نساء آیت ﴿ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ﴾ [۵] مراد دې [۶] د آیت ترجمه ده نو د هغوی نه یوه ډله د شپې راجمع کیدو سره ستا د خبرو خلاف مشوره کوی

احدیث نمبر ۲۸۵۰ [۷] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ رضي الله عنهم قَالَ مَرَّ بِيَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم بِالأَبْوَاءِ - أَوْ بِوَدَّانَ - وَسُئِلَ عَنْ أَهْلِ الدَّارِ يُبَيَّتُونَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَيُصَابُ مِنْ نِسَائِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ قَالَ «هُمْ مِنْهُمْ» وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ «لاَ حِمَى إِلاَّ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ صلى الله عليه وسلم».

---

[۱] ) عمدة القاري: ۱۴/ ۳۶۰.
[۲] ) قال العيني رحمه الله وقال بعض الشراح. موضع بياتًا. نياما. بنون وميم. من النوم وجعل هذه اللفظة من الترجمة. فقال: والعجب لزيادته في الترجمة نياما. وماهو في الحديث إلاضمنا. لان الغالب أنهم إذا أوقع بهم في الليل لم يخلوا من نائم. وما الحاجة إلى كونهم نياما أو أيقاظ وهما سواء؟ وكان هذا القائل وقعت له نسخة مصحفة أو تحصف عليه: بيا بنيامًا. عمدة القاري: ۱۴/ ۳۶۰.
وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله وأغرب ابن المنير فصحف بياتًا فجعلها نياما بنون وميم ن النوم فصارت هكذا: فيصاب الولدان والذراري نياماليلا. ثم تعقبه فقال: الجعب من زيادته في الترجمة نياما وما هو في الحديث الا ضمنا. إلا أن الغالب أنهم إذا وقع بهم ليلا كان أكثر هم نيامًا. ولكن ماالحاجة إلى التقييد بالنوم. والحكم سواء نياما كانوا أو أيقاظًا؟ إلا أن يقال:إن قتلهم نيامًا أدخل في الاغتيال من كونهم أيقاظا. فنبه على جواز ذلک غانتهى. وقدصحف ثم تكلف. فتح الباري:۶/ ۱۸۱.
[۳] ) سورة النمل:۴۹.
[۴] ) فتح الباري:۶/ ۱۸۱.
[۵] ) سورة النساء:۸۱.
[۶] ) فتح الباري:۶/ ۱۸۱.
[۷] ) مرتخرجه الحديث في كتاب المساقاة. باب لايحمى إلا الله ولرسوله صلى الله تعالى عيه وسلم رقم: ۲۳۷۰

وَعَنِ الزُّهْرِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا الصَّعْبُ فِي الذَّرَارِيِّ كَانَ عَمْرٌو يُحَدِّثُنَا عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَسَمِعْنَاهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الصَّعْبِ قَالَ «هُمْ مِنْهُمْ» وَلَمْ يَقُلْ كَمَا قَالَ عَمْرٌو «هُمْ مِنْ آبَائِهِمْ». [ر: ۲۲٤۱]

## رجال الحديث

① **علی بن عبدالله** - دا علی بن عبدالله بن جعفربن نجیح سعدی بصری رحمه الله دی. د دوی حالات کتاب العلم باب الفهم فی العلم لاندې مخکې تیرشوی دی.[1]

② **سفیان** - دا ابومحمد سفیان بن عیینه الکوفی دی. د دوی حالات کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبانا لاندې تیرشوی دی.[2]

③ **زهری** - دا مشهورمحدث عبدالله بن شهاب زهری رحمه الله دی. د دوی حالات بدء الوحی لاندې تیرشوی دی.[3]

④ **عبیدالله** - دا عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود رحمه الله دی. د دوی حالات هم بدء الوحی لاندې تیرشوی دی.[4]

⑤ **ابن عباس** رضی الله عنهما - دا مشهورصحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دی. د دوی حالات هم بدء الوحی لاندې تیرشوی دی.[5]

⑥ **صعب بن جثامه** - دا صحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت صعب بن جثامه لیثی رضی الله عنه دی. د دوی حالات وړاندې تیرشوی دی.[6]

**قوله**: مربی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بالابواء - أو ودان . لفظ او دلته: شك دپاره دې راوی ته یاد نه دی په دې وجه ئی د شك اظهار کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ابواء یا ودان کښې ماسره تیرشو.

أبواء - ابواء فُرع (د فاء ضمه او راء سکون سره) زیرانتظام یوه علاقه وه.[7] لکه چه د ضلع تحصیل وی او هغه په انتظامی توګه باندې د ضلع ماتحت وی. دا د مدینې منورې مضافات

---

[1] کشف الباری: ۳۰۲/۳.
[2] کشف الباری: ۱۰۲/۳.
[3] کشف الباری: ۳۲۶/۱.
[4] کشف الباری: ٤٦٦/۱.
[5] کشف الباری: ٤۳٥/۱.
[6] کتاب جزاء الصید، باب إذا أهدی للمحرم حمارًا وحشیالم یقبل.
[7] معجم البلدان للحموی: ۲٥۲/٤.

کښې یوه کولاؤ او مالدار کلې وو انصار قریش اومزینه دلته آبادوو (۱) فرع کښې ربض او نجف په نوم باندې دوه چینې وې یاقوت حموی لیکی په دې سره به شل زره د کهجورو ونې خروب کیدې (۲)

**دَ تبوأ المکان وبه**:- معنی ده حصاریدل، مقیم کیدل خائی جوړول (۳) چونکه په دې مقام باندې به دَ سیلاب اوبه حصاریدې او جمع کیدې په دې وجه ددې نوم ابواء شو (۴) دَ رسول الله ﷺ دَ مورپې بی انتقال هم په دې مقام شوې وو (۵)

**ودان**:- ودان دَ یولوئی کلی نوم دې چه دَ ابواء نه اته میله فاصله باندې واقع دې داهم دَ فرع زیرانتظام وو (۶)

**قوله**: فسئل عن أهل الدار یبیتون من المشرکین فیصاب من نسائهم وذراریهم، قال: هم منهم:- دَ رسول الله ﷺ نه دَ اهل حرب دَ مشرکینو باره کښې تپوس اوکړې شو چه په هغوی باندې حمله اوکړې شی نودَهغوی ماشومان اوښځې به هم هلاك شی مطلب ئې دا وو چه ددې څه حکم دې. رسول الله ﷺ اوفرمائیل ښځې اوماشومان هم دَهغوی نه دی.

**فسئل**:- دَ رسول اکرم ﷺ نه سوال کونکې څوك وو؟ حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه اول زه دَهغه دَ نوم نه واقف نه ووم بیا په صحیح ابن حبان کښې ماته دَ محمدبن عمرو بن الزهری په طریق سره دَصعب بن جثامه دا روایت ملاؤشو په کوم کښې چه هغه وائی: سئلت رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم عن أولاد المشرکین أنقتلهم معهم؟ قال نعم. (۷) ما دَ رسول اکرم ﷺ نه دَمشرکانودَ بچو باره کښې پوښتنه اوکړه چه مشرکانوسره دَهغوی بچې هم مونږ قتل کولې شو؟ حضورپاك اوفرمائیل اوقتل کولې شئی. ددې روایت نه معلومه شوه چه راوی پخپله سوال کونکې دې (۸)

**هم منهم مطلب**:- رسول الله ﷺ اوفرمائیل ښځې اوماشومان هم دَهغوی نه دی. ددې مطلب هیڅ کله دانه دې چه ښځې اوماشومان په طریقه دَ قصد سره قتل کول مباح او جائزدی. بلکه مطلب دادې چه دَ بچودَپاسه ختلونه بغیردَهغوی پلارانوته رسید ممکن نه وی اوکه دَ اختلاط

---

(۱) معجم البلدان للحموی: ۲۵۲/٤.
(۲) معجم البلدان للحموی: ۲۵۲/٤.
(۳) القاموس الوحید ص: ۱۸۵.
(۴) عمدة القاری: ۳۶۱/۱٤ وإرشاد الساری: ۴۸۵/۶ – ۴۸۶.
(۵) عمدة القاری: ۳۶۱/۱٤.
(۶) عمدة القاری: ۳۶۱/۱٤ وإرشاد الساری: ۴۸۵/۶ – ۴۸۶.
(۷) مجمع الزائد للهیثمی: ۳۱۵/۵.
(۸) فتح الباری: ۱۸۱/۶ وإرشاد الساری: ۴۸۶/۶.

د وجه نه ماشومان هم وژلې شي نو تبعا دهغوی بچی قتل کول جائزدی (۱) گنی اصالتا د قدرت نه باوجود ماشومان اوښځې په طريقه د قصد سره قتل کول جائزنه دی ځکه چه په نورو صريح رواياتوکښې د ماشومانواوښځود قتل کولوممانعت راغلې دې.

**دحديث باب او دې سره معارض رواياتو کښې تطبيق** - دابحث د اشکال او جواب په شکل کښې اوکورئ کهٔ چا دا اشکال وی چه دصعب بن جثامه روايت باب نه د ښځو او ماشومانو قتل جائزکيدل ثابتيږی خود دې نه وړاندې باب يعنی باب قتل النساء فی الحرب کښې دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په روايت کښې دی نهیٰ رسول الله صلی الله تعالی عليه وسلم عن قتل النساء والصبيان رسول الله ﷺ د ښځو اوبچود قتل نه منع فرمائيلې ده دغه شان په صحيح مسلم کښې د حضرت بريده نه نقل شوی حديث کښې دی: اغزوافلا تقتلوا وليدا، وسيروا ولا تمثلوا (۲)

جامع ترمذی کښې دحضرت سمرة رضی الله عنه روايت دې چه رسول اکرم ﷺ فرمائيلی دی اقتلوا شيوخ المشرکين واستبقوا شرخهم (۳)

يعنی دمشرکانو لوئی يعنی خوانان قتل کړئ اوماشومان پريږدئ د لفظ شيخ استعمال د شاب اوصبی دواړو په مقابله کښې وی يعنی چه دا دصبی په مقابله کښې استعمال وی نودې نه هم شاب يعنی خوان مراد وی لکه چه په دې روايت کښې لفظ شيخ صبی په مقابله کښې وارد شوې دې. شرخ د شارخ جمع ده شارخ معنی صبی او صغيرده (۴)

د رباح بن ربيع رضی الله عنه په روايت کښې دی په يوه غزوه کښې رسول الله ﷺ خالدبن وليد ته يوسړې اوليګلو اووئې فرمائيل قل لخالد: لا تقتلن امرأة ولا عسيفا (۵)

عسيف هغه اجير اوخادم چه د مجاهدخدمت کوی يعنی خالدته اووايه چه نه يوه ښځه اونه د مجاهد خوک خادم دې هيڅ کله قتل نه کړی.

د حضرت ابوسعيدخدری رضی الله عنه په روايت کښې دی نهیٰ رسول الله صلی الله تعالی عليه وسلم عن قتل النساء والصبيان (۶) دغه شان دحضرت انس رضی الله عنه په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی لا تقتلوا شيخا فانيا، ولا طفلا، ولا صغيرا، ولا امرأة. (۷)

---

(۱) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله هم منهم أی فی حکم تلک الحالة. وليس المراد إباحة قتلهم بطريق القصد إليهم. بل المراد إذا لم يمکن الوصول إلی الاباء إلا بوط الذرية فاذا أصيبوا لاختلاطهم بهم جاز قتلهم. فتح الباری:۶/۱۸۱.

(۲) صحيح مسلم ۲/۸۲ کتاب الجهاد. باب تامير الامام الاخراء علی البعوث رقم:۱۷۳۱.

(۳) جامع الترمذی:۱/۲۸۵ کتاب السير باب ماجاء فی النزول علی الحکم. وقال حديث حسن صحيح غريب. رقم:۱۵۸۳ وسنن أبی داوٗد:۲/۶۶ کتاب الجهاد باب: فی قتل النساء رقم:۲۶۷۰.

(۴) النهاية لابن الاثير:۱/۸۵۳ دار المعرفة.

(۵) أخرجه أبوداوٗد فی سننه:۲/۶ فی الجهاد باب فی قتل النساء رقم:۲۶۶۹.

(۶) مجمع الزوائد للحافظ نور الدين الهيثمی:۵/۳۱۸. باب مانهی عن قتله من النساء وغير ذلک.

(۷) أبوداوٗد کتاب الجهاد باب دعاء المشرکين رقم:۲۶۱۴.

په دې ټولو روایاتو کښې د ښځو اوماشومانو د قتل کولو ممانعت راغلې دې خود روایت باب الفاظ "هم منهم" نه جواز ثابتیږي
علامه خطابي رحمه الله ددې اشکال جواب ورکولو سره فرمائیلی دی هم منهم مطلب دادې ښځې اوماشومان د دین او مذهب په اعتبار سره د مشرکانو سره په حکم کښې دی ځکه چه د کافر خونې د دین اومذهب په لحاظ حکماً د خپل پلار تابع وی په دې قول سره د رسول الله ﷺ منشاء ښځې اوماشومان مباح الدم علی طریق القصد د هغوی قتل کول جائزګرځول نه وو بلکه منشاء ئې داوه چه کله د مشرکانو سره پوره رسیدو کښې د ښځو او ماشومانو د قتل کولونه بل څه لاره نه وی نو تبعاً ښځې اوماشومان قتل کولو کښې څه حرج نشته په دې وجه که اختلاط بالاباء د وجه نه ماشومان اووژلې شی نو دمجاهدینو به شرعاً څه مواخذه نه کیږی د نهی والا روایتونه اصالةً بالقصد د هغوی د وژلو متعلق دی (۱) لهذا د هم منهم مطلب دې چه دمشرکانو ښځې او ماشومان په دې صورت کښې هم د مشرکانو سره په حکم کښې دی اودا ممانعت د نهی والا روایاتو د وجه نه اوس هم موجود دې خود اممانعت بالقصد د هغوی د قتل سره متعلق دې نه چه د حمله سره متعلق بلکه په دې صورت کښې تبعاً د هغوی وژل معفوعنه دی **دحملې کولو حکم:-** یودی حمله کول د دې په جواز کښې د چاهم اختلاف نشته امام احمد رحمه الله فرمائی **لاباس بالبیات ولا أعلم أحدًا یکرهه** (۲) یعنی په حمله کولو کښې هیڅ خرابی نشته دې ته مکروه ویونکی زما په علم کښې نشته بل دی په حمله کولو کښې ښځې اوماشومان وژل په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې امام مالك رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله فرمانی د ښځو اوماشومانو قتل کول مطلقًا ناجائزدی تردې چه جنګ کونکی سرې هغوی ډهال جوړولو سره استعمال کړی یا په قلعه کښې پناه واخلی یا په کشتئی کښې سواره وی اوهغوی سره ښځې اوبچې هم وی نو بیاهم هغوی په غشی سره وژل جائزدی اونه ئې تحریق جائزدې (۳) ددوی استدلال داحادیث نهی نه دې کوم چه شاته په تفصیل سره تیرشو
ابن حبیب مالکی رحمه الله فرمائیلی **لایجوز القصد إلی قتلها إذا قاتلت، إلا إن باشرت القتل وقصدت إلیه، وکذلك الصبی المراهق** (۴) مطلب دادې که چرته ښځه جنګیږی نو دهغې د قتل قصد او اراده کول

---

(۱) قال الخطابی: قوله ((هم عنهم)) یرید فی حکم الدین. فان ولدالکافر محکوم له باکفرو ولم ئیرد بهذا القول إباحة دمائهم تعمدا لها. وقصداً إلیهاو وإنما هوإذا لم یمکن الوصول إلی الاباء إلا بهم. فاذا أصیبوا لاختلاطهم بالاباء لم یکن علیهم فی قتلهم شئ. اوګورئی عمدة القاری: ۳۶۳/۱۴.
(۲) المغنی لابن قدامه: ۴۹۵/۱۰ رقم الفصل: ۷۵۷۵.
(۳) قال مالک والاوزاعی: لایجوز قتل النساء والصیبان بحال حتی لوتترس أمن المغرب بالنساء والصیبان أو تحصنوا بحصن أو سفینه وجعلوا معهم النساء والصیبان لم یجزرمیهم وتحریقهم. انظر فتح الباری: ۱۸۲/۶. وعمدة القاری: ۳۶۲/۱۴ وأوجز المسالک ۶۲/۹۰.
(۴) وقال ابن حبیب من المالیکة: لایجوز القصد إلی قتلها إذا قاتلت. إلا إن باشرت القتل وقصدت إلیه انظر فتح الباری: ۱۸۲/۶.

جائزنه دی البته که چرته اقدام قتل کوی نو جائزدی او هم دغه حکم د صبی مراهق هم دی جمهور فقهاء امام اعظم ابوحنیفه، امام شافعی، ثوری وغیره رحمهم الله فرمائی که د ښځو او ماشومانو د قتل نه بغیر سرو ته رسیدل ممکن نه وی نو د دوی قتل جائزدی (۱)

د دوی رومبی استدلال د حدیث باب نه دی چه کله د رسول الله ﷺ نه د حملی کولو دوران کښې د ښځو او ماشومانو د قتل د حکم پوښتنه اوکړې شوه نو حضورپاک هم منهم فرمائیلو، د هغوی د قتل اجازت ورکړو. د هغوی دویم استدلال سنن ابوداؤد کښې د رباح بن الربیع رضی الله عنه د روایت نه دی کنامع رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فی غزوة أی الناس مجتمعین علی شیٔ فبعث رجلا فقال انظرعلی ما اجتمع هؤلاء؟ فجاء فقال علی امرأة قتیل فقال ماکانت هذه لتقاتل (۲)

رباح بن ربیع رضی الله عنه وائی چه مونږ رسول الله ﷺ سره په غزوه کښې شریک وو د دې نه غزوة الفتح مراد ده، نو حضورپاک د خلقو یو ګڼړه اولیدله. یوسړې ئې اولیګلوچه اوګوره داخلق ولې راجمع دی. هغه راغلوجواب ئې اوکړو چه یوه ښځه قتل شوې پرته ده. رسول الله ﷺ اوفرمائیل دې خو جنګ نه کولو

شراح حدیث د دې جملې دا مفهوم بیان کړې دې چه د حضورپاک منشاء داوه چه ښځه خو جنګ نه کوی خوکه جنګ کوی نو بیائی وژل جائزدی. (۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه جمهور فقهاؤ جمع بین الحدیثین باندې عمل کړې دې (۴) د ترجمة الباب او سنن ابوداؤد د دې دواړو روایاتونه استدلال کولوسره جمهور فرمائی چه د حملې په دوران کښې که د ښځود قتل کولونه بغیرسروته رسیدل ممکن نه وی نو بیا د دوی قتل جائزدې خو بیاهم چه په کوموروایاتوکښې د ښځو او ماشومانو د قتل ممانعت راغلې دې د هغې په رڼړا کښې د جمهور فقهاؤ په نیزهم جهاد کښې ښځې او ماشومان قتل کول قصداً ناجائزدی. خوکه ښځې اوماشومان د مشرکانوسروسره د مسلمانانو خلاف وسله راوچته کړې نو بیا ترجمة الباب اوسنن ابوداؤد کښې د رباح بن ربیع رضی الله عنه د روایت په رڼړاکښې دا ممانعت باقی نه پاتې کیږی او د هغوی د قتل کولو قصد به جائزشی

علامه باجی رحمه الله فرمائی إن قاتلوافانهن یقتلن، لان العلة التی منعت من قتلهن عدم القتال منهن، فاذا وجد منهن وجدت علة إباحة قتلهن (۵) مطلب دادې چه که چرې ښځې جنګ کوی نو د هغوی قتل به جائزوی. ځکه چه د ښځو د قتل نه کوم ممانعت راغلې دې د دغه ممانعت علت د ښځو د طرف نه جنګ نه کول دی خوکه د ښځو د طرف نه جنګ لیدلې شو نو بیابه د هغوی د قتل کول مباح کیدلو علت هم موجود شی

---

(۱) عمدة القاری:۱۴/۳۶۲ وفتح الباری:۶/۱۸۲ وبذل المجهود:۱۲/۲۰۰ وأوجز المسالک:۹/۶۳.

(۲) سنن أبی داؤد:۲/۶ کتاب الجهاد باب فی قتل النساء.

(۳) فتح الباری:۲/۱۸۲ وبذل المجهود:۱۲/۲۰۰ وأوجز المسالک:۹/۶۳.

(۴) فتح الباری:۶/۱۸۲ والمغنی لابن قدامة:۱۰/۴۹۵ رقم الفصل:۵۷۵.

(۵) أوجز المسالک:۹/۶۳.

**قوله**: وسمعته يقول: لا حمى إلا الله ولرسوله صلى الله تعالى عليه وسلم. دامستقل حديث دې او كتاب الشرب كښې وړاندې په تفصيل سره تيرشوې دې چاته اشكال كيدې شي چه د حديث داجمله ددې باب لاندې په كوم مناسبت سره روايت كړې شوې ده؟ علامه عينى اوعلامه قسطلانى ددې دا جواب وركړې دې چه د محدثينوعادت ووچه هغوى به د خپل شيخ نه څنګه روايت اوريدو بعينه هم هغه شان به ئې نورو ته هم روايت كولو [1] دلته هم راوى چه دخپل شيخ نه څنګه روايت اوريدلې دې هم هغه شان ئې نقل كړې دې

**قوله**: وعن الزهرى أنه سمع عبيدالله عن ابن عباس.... - داروايت د باب رومبى سندسره متصل دې

**قوله**: وكان عمرو يحدثنا عن الزهرى..... - علامه كرمانى رحمه الله فرمائى ددې جملې نه د سفيان بن عيينه رحمه الله مقصددا خودل دى چه داروايت به مونږته عمرو بن دينار د امام زهرى رحمه الله نه مرسلاً روايت كولو [2] روستو مونږ دا روايت د عمرو بن دينار په واسطه سره پريخودو اونيغ په نيغه د امام زهرى رحمه الله نه واؤريدو نوهغوى عن عبدالله عن ابن عباس عن الصعب په طريق سره متصلاً روايت كړو. عمرو بن دينارهم ددوى نه روايت كولوسره هم من آبائهم چه كوم الفاظ نقل كړى وو دهغې په ځائې زهرى رحمه الله هم منهم الفاظ روايت كړل دلته په روايت كښې د الفاظوفرق بيان كړې شو مطلب ددواړو الفاظوهم يو دې

حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه كرمانى رحمه الله رائې وهم ګرځولوسره فرمائى عمرو بن دينار د عن زهرى په طريق د سفيان بن عيينه دې روايت ته مرسل وئيل صحيح نه دى. نورو شراحوهم دې ته مرسل وئيلى دې ته مرسل وئيل غلط دى [3] حافظ ابن حجر رحمه الله د عمرو بن دينار ددې روايت په يوبل طريق سره استدلال كړې دې. دا روايت علامه اسماعيلى رحمه الله د عباس بن يزيدعن سفيان په طريق سره تخريج كړې دې سفيان بن عيينه وائى: كان عمرو يحدثنا قبل أن يقدم المدينة الزهرى عن الزهرى عن عبيدالله عن ابن عباس عن الصعب ابن جثامة. [4] يعنى د ابن شهاب زهرى رحمه الله د مدينې د راتلونه وړاندې عمروبن دينارپه دا روايت مونږ عن الزهري عن ابن عباس عن الصعب ابن جثامة په طريق سره روايت كولو

---

[1] ) عمدة القارى: ۱٤/۳٦۳ وإرشاد السارى: ٦/٤٨٦.

[2] ) شرح الكرمانى: ۱۳/۲٤.

[3] ) قال الحافظ ابن حجر: قوله فى سياق هذا الباب: عن الزهرى عن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم يوهم أن رواية عمروبن دينار عن الزهرى هكذا بطريق الارسال. وبذلک جزم بعض الشراح وليس كذلک فقد أخرج الاسماعيلى من طريق العباس بن يزيدحدثنا سفيان قال: كان عمرو يحدثنا قبل أن يقدم المدينة الزهرى عن الزهرى عن عبيدالله عن ابن عباس عن الصعب. قال سفيان فقدم علينا الزهرى فسمعته يعيده ويبديه. فتح البارى: ٦/۱٨٢.

[4] ) فتح البارى: ٦/۱٨٢.

د حافظ ابن حجر رحمه الله مقصد دا خودل دی چه د عمرو دینار دا روایت هم په یو طریق سره موصولا مروی دې لهٰذا په ترجمة الباب کښې د عمروبن دینار دا روایت هم موصول دې اودنې ته مرسل ونیل غلط دی په دې باندې رد کولو سره علامه عینی فرمائی چه د کرمانی رحمه الله رائې صحیح ده دلته د عمروبن دینار روایت مرسل دې ځکه چه دا دې دا صورت هم د ارسال دې کله چه روایت دلته صورتاً مرسل دې نو بیا د علامه اسماعیلی تخریج کړې شوې طریق سره د ارسال صورت نه شی ختمیدې (١)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - حدیث باب کښې دی وسئل عن أهل الدار يبيتون من المشركين فيصاب من نسائهم وذراريهم، قال هم منهم ترجمة الباب سره د دې مناسبت ظاهر دې (٢)

## باب ۱۴۵: قتل الصبيان فى الحرب

**باب سابق سره مناسبت او د ترجمة الباب مقصد** - باب سابق کښې حمله کولو وران کښې د ماشومانو د قتل کولو حکم بیان کړې شوې وو دلته د جنګ په دوران کښې د هغوی د قتل حکم بیانولې شی

د دې ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دا دې چه د جنګ دوران کښې ماشومان قتل کول منع دی د دې مختلف وجوهات دی یو خو دا چه د هغوی وړوکوالی د وجه نه د کفر د ارتکاب نه عاجز دی دویم دا چه ماشومان ژوندی پریخودو په صورت کښې د هغوی غلامان جوړولو فائده ده دریم دا چه کوم حضرات د ماشومانو په بدله کښې د فدیه اخستلو قائل دی نو د هغوی د قول مطابق د ماشومانو په عوض فدیه اخستلو کښې هم فائده ده (٣)

احدیث نمبر ۲۸۵۱ (٤) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ - رضى الله عنه - أَخْبَرَهُ أَنَّ امْرَأَةً وُجِدَتْ فِي بَعْضِ مَغَازِي النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مَقْتُولَةً، فَأَنْكَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَتْلَ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ. [۲۸۵۲]

---

(١) عمدة القارى: ١٤/ ٣٦٤ وقد تبعه القسطلانى أيضًا. انظر إرشاد السارى ٦/ ٤٨٦ – ٤٨٧.

(٢) عمدة القارى: ١٤/ ٣٦١.

(٣) عمدة القارى: ١٤/ ٣٦٤ قال العينى رحمه الله هذا باب فى بيان النهى عن قتل الصبيان فى الحرب لقصورهم عن فعل الكفر. ولان فى استبقائهم انتفاعا بالرقبة أو بالفداء عند من يجوز أن يفادى بهم. (وتبعه القسطلانى أيضًا. انظر إرشاد السارى: ٦/ ٤٨٧)

(٤) أخرجه البخارى أيضًا (١/ ٤٢٣) حديث فى كتاب المساقاة، باب لاحمى إلا لله ولرسوله صلى الله تعالى فى الجهاد باب قتل النساء فى الحرب رقم ٣٠١٥ وعند مسلم فى صحيحه (٢/ ٨٧) فى كتاب الجهاد باب تحريم قتل النساء والصبيان فى الحرب رقم ٤٥٤٧ وعنده أبى داؤد فى سننه (٢/ ٦) فى كتاب الجهاد باب فى قتل النساء، رقم: ٢٦٦٨ وعند ابن ماجة فى سننه ص: ٢٠٣ فى كتاب الجهاد باب الغارة والبيات وقتل النساء

# رجال الحدیث

① **احمدبن یونس** -دا احمدبن یونس بن یونس یربوعی کوفی رحمه الله دي دَدوی حالات کتاب الایمان باب من قال ان الایمان هوالعمل لاندې وړاندې تیرشوی دی [1]

② **لیث** - داابوالحارث لیث بن سعد بن عبدالرحمن فهمی رحمه الله دي دَدوی حالات بدء الوحی لاندې تیرشوی دی [2]

③ **نافع** - دادَ حضرت ابن عمر رضی الله عنهما آزاد کړې شوې غلام ابوعبدالله نافع عدوی مدنی رحمه الله دي دَدوی دَ حالاتو دَپاره اوګورئی کتاب العلم باب ذکر العلم والفتیا فی المسجد

④ **عبدالله** رضی الله عنه - دا صحابی رسول صلی الله علیه وسلم حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دي دَدوی حالات کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس لاندې تیرشوی دی [3]

أن امرءة وجدت فی بعض مغازی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم مقتولة فانکر رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم قتل النساء والصبیان. حضرت ابن عمر رضی الله عنهما وائی چه دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په یوه غزوه کښې یوه قتل شوې ښځه اولیدلې شوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ښځواو ماشومانودَ قتل کولونه منع اوفرمائیله

**امرءة** - شارحین حدیث وائی چه دَ دغه ښځې نوم معلوم نه شو [4]

**قوله: فی بعض مغازی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم** - دَ امام طبرانی رحمه الله په اوسط کښې تصریح ده چه ددې غزوه نه فتح مکه مراد ده [5] مراسیل ابوداؤدکښې عن عکرمة په طریق سره یو روایت کښې هم دغه شان یوه واقعه نقل ده روایت دا دې أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم رأی امرأة مقتولة بالطائف، فقال: ألم أنه عن قتل النساء؟ من صاحبها؟ فقال رجل: أنا یارسول الله أردفتُها، فارادت أن تصرعنی، فتقتلنی فقتلتها، فامربها أن تواری [6] یعنې رسول الله صلی الله علیه وسلم په طائف کښې یوه قتل شوې ښځه اولیدله نووئې فرمائیل چه ماتاسو دَ ښځودَقتل نه منع کړې نه وئې؟ دَدې قاتل څوک دې؟ یوسړی اووئیل یارسول الله: ما دا په سورلئی باندې شاته کینوله هغې زه دَ سورلئی نه راګذارکړم قتل کول ئې غوښتلم نوما دا قتل کړه. دې اوریدوسره رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ قتل شوې ښځې دَ دفن کولوحکم ورکړو په دې

[1] کشف الباری:۲/۱۵۹.
[2] کشف الباری:۱/۳۲۴ – ۳۲۵.
[3] کشف الباری: ۶۳۷/۱.
[4] إرشادالساری:۶/۴۸۷.
[5] إرشادالساری: ۶/۴۸۷ وأوجزالمسالک:۹/۶۰.
[6] فتح الباری:۶/۱۸۲.

روایت کښې تصریح ده چه د ښځود قتل کولونه ممانعت رسول الله ﷺ د طائف په موقع فرمائیلې وو خو په حدیث باب کښې دی چه دا ممانعت د فتح مکه په موقع باندې وارد شوې وو شارحین حدیث تطبیق ورکولو سره وائی چه دا دواړه جدا جدا واقعات کیدې شی [1]
د تیرشوی باب لاندې د حضرت صعب بن جثامه رضی الله عنه روایت تیرشوې دې هم دغه روایت په صحیح ابن حبان کښې نقل دې او په هغې کښې دا اضافه هم ده **ثم نهی عنهم یوم حنین**. [2] په هغې کښې تصریح ده چه دا ممانعت د غزوه حنین په موقع شوې وو. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا جمله مدرج من الراوی ده [3]

**ایاپه جنګ کښې د ښځواوماشومانو قتل کول جائزدی؟** - د جنګ په دوران کښې د ښځو اوماشومانو قتل کول جائزنه دی علامه ابن بطال رحمه الله په دې باندې اجماع نقل کړې ده [4] خو په دې کښې څه قدرې تفصیل دې. د امام مالک رحمه الله اوامام اوزاعی رحمه الله په نیز د ښځو او ماشومانو قتل مطلقًا ناجائزدې تردې چه که سړی هغوی د ډهال په توګه استعمال کړی یا جنګ کونکی سړی په قلعه کښې پناه واخلی یا کشتئی کښې سواره شی او هغوی سره ښځې او ماشومان وی نوبیاهم د دې حضراتو په نیز ښځې اوماشومان په غشو ویشتل جائزدی نه تحریق جائزدې [5] د هغوی استدلال د دغه روایاتونه دې په کوم کښې چه د ښځو اوماشومانو د قتل ممانعت وارددې. دا ټول روایات تیرشوی باب کښې تفصیلاً تیرشوی دی
د جمهورفقهاؤ په نیز هم په جنګ کښې د ښځو اوماشومانو قتل ناجائزدې. خوداحضرات فرمائی که ښځې اوماشومان سړو سره وسله راواچته کړی اود مسلمانانو خلاف جنګ کوی نوبیادا ممانعت باقی نه پاتې کیږی اودهغوی قتل جائزدې [6] د دوی اول استدلال د سورت بقره دې آیاتونونه دې ﴿ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ ﴾، ﴿ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ﴾ په دې آیاتونو کښې عموم دې چه مسلمانانوسره څوك هم جنګ کوی هغه دې قتل کړې شی بغیرد خبره ده چه په دې عموم کښې ښځې اوماشومان دواړه شامل دی. [7]
د جمهورو دویم دلیل په سنن ابی داؤد کښې د رباح بن الربیع رضی الله عنه روایت دې. دا روایت سابقه باب کښې تیرشوې دې چه رسول الله ﷺ یوه قتل شوې ښځه اولیده نو وئی فرمائیل **ماکانت هذه لتقاتل** [8] شراح حدیث فرمائی دې جملې نه د حضورپاك منشاء دا وه چه ښځې خو جنګ

---

[1] ) فتح الباری:۱۸۲/۶ وأوجز المسالک:۸۰/۹.
[2] ) فتح الباری:۱۸۲/۶.
[3] ) فتح الباری: ۱۸۲/۶.
[4] ) شرح ابن بطال:۱۷۰/۵.
[5] ) فتح الباری:۱۸۶/۶ وعمدة القاری:۳۶۲/۱٤ وأوجز المسالک:۶۲/۹.
[6] ) فتح الباری:۱۸۶/۶ وعمدة القاری:۳۶۲/۱٤ وبذل المجهود:۲۰۰/۱۲ وأوجز المسالک: ۶۳/۹.
[7] ) أحکام القرآن لابی بکر محمدبن عبدالله المعروف بابن عربی:۱۰٤/۱.
[8] ) سنن أبی داؤد:۶/۲ کتاب الجهاد باب فی قتل النساء.

نه کوی خو که جنګ کوی نوبیا دهغوی قتل جائزدي (۱)

دریم دلیل دادي چه رسول الله ﷺ په غزوه بنوقریظه او غزوه خندق کښي د ښځو او ماشومانو دقتل حکم فرمائیلي وو دغه شان د فتح مکه په ورځ د دوو سندرغاړو ښځو چه د رسول الله ﷺ په سپکاوی مشتمل شعرونه به ئی ونیل قتل کړي وي (۲)

علامه ابن عربی رحمه الله فرمائی: وللمرءة آثار عظیمة في القتال. منها الامداد بالاموال. ومنها التحریض علی القتال، فقد کن یخرجن ناشرات شعور هن. نادبات. مثیرات. للثار. معیرات بالفرار. وذلك یبیح قلتهن (۳) مطلب دادي چه په جنګ کښي د ښځي کردار ډیرمؤثر وی لکه مالی امدادکول خپل سړی د دښمن خلاف په جنګ باندي راوچتول د کافرانوښځي به د میدان جنګ طرف ته کولاؤ ویښته راوتلي په خپلو مړوباندي به ئی ژړاګاني اومرثیي کولي اودهغوی د وینه بدله اخستلو مطالبي به ئی کولي او د جنګ نه په تیخته به ئی شرم ورکولو هم دغه امور د ښځودقتل کولودپاره دمباح کیدو سبب دي

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** امام بخاری رحمه الله داترجمة الباب د جنګ په دوران کښي د ماشومانو د قتل ممانعت بیانولو دپاره قایم کړي دي. د حدیث باب لفظ والصبیان مطابقت ترجمة الباب سره ښکاره دي.(۴)

## باب ۱۴۶: قتل النساء فی الحرب

**د ترجمة الباب مقصد:-** دامام بخاری رحمه الله مقصددادي چه په جنګ کښي د ښځوقتل کول جائزنه دی.

[حدیث نمبر ۲۸۵۲] (۵) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي أُسَامَةَ حَدَّثَكُمْ عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ وُجِدَتِ امْرَأَةٌ مَقْتُولَةً فِي بَعْضِ مَغَازِي رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ. [ر: ۲۸۵۱]

## رجال الحدیث

① **اسحاق بن ابراهیم:-** دا مشهورامام فقه او حدیث اسحاق بن ابراهیم بن مخلد حنظلی رحمه الله دي د ابن راهویه په نوم باندي مشهوردي. کتاب العلم باب فضل من علم وعلّم لاندي د دوی حالات تیرشوی دی (۶)

---

۱) فتح الباری:۶/۱۸۶ وبذل المجهود:۱۲/۲۰۰ وأوجزالمسالک ۹/۶۳.

۲) شرح ابن بطال:۵/۱۷۰.

۳) أحکام القرآن لابی بکرمحمدبن عبدالله المعروف بابن عربی:۱/۱۰۵.

۴) عمدة القاری:۱۴/۳۲۴.

۵) مرتخریجه فی الباب السابق.

۶) کشف الباری: ۳/۴۲۸.

③ **ابواسامة** دا ابواسامه حماد بن اسامه بن زید قرشی رحمه الله دې د دوی حالات هم کتاب العلم باب فضل من علم وعلّم لاندې تیرشوی دی (۱)

③ **عبیدالله** دا عبیدالله بن عبدالله بن عمر رحمه الله دې ددوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۲)

④ **نافع** دا د ابن عمر رضی الله عنهما آزاد کړې شوې غلام ابوعبدالله نافع عدوی رحمه الله دې ددوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۳)

⑤ **ابن عمر** رضی الله عنهما ددوی حالات کتاب الایمان لاندې تیرشوی دی (٤)

**قوله قلت لابي أسامة: حدثكم عبيدالله عن نافع......** دلته اسحاق بن ابراهیم رحمه الله وائي چه ما د ابواسامه حمادبن اسامه نه تپوس اوکړو چه ایا عبیدالله ابن عبدالله د عن نافع په طریق باندې د ابن عمر رضی الله عنهما هغه روایت تاسو ته بیان کړې دې په کوم کښې چه هغه فرمائي چه رسول الله ﷺ په یوه غزوه کښې یوه قتل شوې ښځه اولیدله نوحضورپاک د ښځو اوماشومانو د قتل نه منع اوفرمائیله؟ په دې روایت کښې ابواسامه د اسحاق بن ابراهیم نه د سوال جواب ورکولو په ځائې خاموشي اختیار کړې ده

**ایا د شیخ خاموشی د اجازت په حکم کښې ده؟** -علامه کرمانی رحمه الله فرمائی **وفيه أنه إذا قال لشيخه حدثكم أوأخبركم فلان، وقال نعم، أو سكت في جوابه مع قرينة الاجابة جاز الرواية عنه** (۵) یعنی ددې نه معلومه شوه چه که چرې شاګرد د خپل شیخ نه تپوس اوکړی چه فلانکي داحدیث تاسوته روایت کړې؟ ددې په جواب کښې شیخ اقراراوکړی یا د اقرارقرینه موجود کیدو د وجه نه خاموشي اختیارکړی نو په داسې صورت کښې به شاګردته د شیخ د روایت اجازت وی

**په علامه کرمانی رحمه الله باندې د حافظ ابن حجر رحمه الله رد.** - حافظ ابن حجر رحمه الله په علامه کرمانی رحمه الله باندې ردکولو سره فرمائی چه اسحاق بن ابراهیم دا روایت خپل مسند کښې نقل کړې دې د کوم په آخره کښې چه دا اضافه هم ده **فاقربه أبوأسامه وقال: نعم** چونکه په دې روایت کښې د اقرار تصریح ده په دې وجه حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائیلی دی چه روایت باب د علامه کرمانی رحمه الله د رائې دپاره دلیل نه شی جوړیدې چه د اقرار د قرینه په موجود کښې کښې د شیخ خاموشي په اجازت باندې محمول وی ځکه چه دص روایت په دویم طریق کښې د اسحاق بن ابراهیم د سوال په جواب کښې د هغه شیخ ابوسلمه رحمه الله د اقرار تصریح ده (۶)

**ترجمة الباب سره مطابقت** - ترجمة الباب سره عن قتل النساء مطابقت ښکاره دې

---

(۱) کشف الباری: ۳/ ٤١٤.
(۲) کتاب الصلوة باب الحلق والجلوس فی المسجد.
(۳) باب العلم والفتیافی المسجد.
(٤) کشف الباری: ۱/ ۶۳۷.
(۵) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۹۳-۲۵.
(۶) فتح الباری: ۶/ ۱۸۳.

## باب ۱۴۷: لایعذب بعذاب الله

احدیث نمبر ۲۸۵۳ [۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - أَنَّهُ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْثٍ فَقَالَ «إِنْ وَجَدْتُمْ فُلاَنًا وَفُلاَنًا فَأَحْرِقُوهُمَا بِالنَّارِ» ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ أَرَدْنَا الْخُرُوجَ «إِنِّي أَمَرْتُكُمْ أَنْ تُحْرِقُوا فُلاَنًا وَفُلاَنًا، وَإِنَّ النَّارَ لاَ يُعَذِّبُ بِهَا إِلاَّ اللَّهُ، فَإِنْ وَجَدْتُمُوهُمَا فَاقْتُلُوهُمَا».

## رجال الحدیث

① **قتیبه بن سعید**- دا ابو رجاء بن سعیدبن جمیل بن طریف ثقفی رحمه الله دي دَدوی حالات کتاب الایمان باب أفشاء السلام من الاسلام لاندې تیرشوی دی [۲]

② **لیث**- دا ابوالحارث بن سعد فهمی رحمه الله دي دَ دوی حالات بدءالوحی لاندې تیرشوی دی [۳]

③ **بکیر** - دابکیربن عبدالله بن الاشج دي دَدوی حالات وړاندې تیرشوی دی [۴]

④ **سلیمان بن یسار**- دادَحضرت میمونه رضی الله عنها آزادکړې شوې غلام سلیمان بن یسار رحمه الله دي دَدوی حالات وړاندې تیرشوی دی. [۵]

⑤ **ابوهریره** رضی الله عنه - دَدوی حالات هم کتاب الایمان باب أمورالایمان لاندې تفصیل سره تیرشوی دی [۶]

**قوله**: بعثنا رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فی بعث فقال: إن وجدتم فلانا وفلانا فاحرقوهما بالنار .....

حضرت ابوهریره رضی الله عنه وائي چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم یولښکرکښې اولیګلو اوونې فرمائیل چه که تاسو ته فلانکې فلانکې ملاؤ شي نوهغوی په اور کښې واچوئی وئی سوزوئی بیاچه کله مونږ اووتلو نو حضورپاك اُوفرمائیل چه ما تاسو ته حکم درکړے وو چه فلانکې اوفلانکې اوسوزوئی خو په اورسره صرف الله تعالی عذاب ورکوی که تاسو دغه دواړو اولیدل نو هغوی قتل کړئی دَدې واقعه یوراوی حمزه بن عمرو الاسلمی رضی الله عنه هم دې حضرت ابوهریره رضی الله عنه چه دَ کوم لښکرذکرکړې دې حمزه اسلمی رضی الله عنه دَهغې امیروو په سنن ابی داؤد کښې دا روایت

---

[۱] ) مرتخریجه فی کتاب الجهاد باب التودیع.
[۲] ) کشف الباری:۲/۱۸۹.
[۳] ) کشف الباری:۱/۳۲٤.
[۴] ) کتاب الوضوء باب من مضمض من السویق ولم یتوضا.
[۵] ) کتاب الوضوء باب غسل المنی وفرکه.....
[۶] ) کشف الباری:۱/۶۵۹.

نقل دي عن محمد بن حمزة الاسلمی، عن أبیه أن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم أمره علی سریة، قال: فخرجت فیها، وقال: ان وجدتم فلانا فاحرقوه بالنار. فولیت فناداني فرجعت إلیه، فقال: إن وجدتم فلانا فاقتلوه، ولاتحرقوه فإنه لایعذب بالنار إلا رب النار (۱) حمزه بن عمرو اسلمی رضی الله عنه وائی چه رسول الله ﷺ زه د یولښکر امیرجوړکړم وئی لیګلو د تګ په وخت حضورپاك اوفرمائیل که فلانکي سړي مواولیدونو په اور کښې اوسوزوئی کله چه زه روان شوم نو حضورپاك آواز کولوسره راؤغوښتم چه زه واپس راؤګرځیدم نو حضورپاك اوفرمائیل که تاهغه سړي اولیدلو نو قتل ئی کړه په اورکښې مه سوه زوه ځکه چه د اورعذاب هم هغه ورکوی چه د اور خالق دې

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه حدیث حضرت امام بخاری رحمه الله کتاب الجهاد باب التودیع کښې هم ذکرکړې دې په دې روایت کښې چه کومه واقعه بیان کړې شوې ده په هغې باندې تفصیلي بحث په باب التودیع کښې تیرشوې دې. دلته مختصرد ااوګڼړئی چه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه په روایت کښې د دوو سړو د قتل حکم دې د یونوم هباربن اسود او د بل نوم نافع عبدقیس دې رسول الله ﷺ د دوی د قتل حکم ځکه ورکړې وو چه د حضورپاك لوربی بی حضرت زینب رضی الله عنها په اوښه باندې سوره د مکې نه مدینې منورې طرف ته په سفرباندې وه نودې دواړو د حضرت زینب سورلی په نیزه وهلې وه او هغه ئی ترې راغورزولې وه په کوم سره چه د هغې حمل هم ساقط شوې وو. (۲)

**په روایت باب باندې یواشکال اود هغې جواب**:- دلته دا اشکال کیدې شی چه حدیث باب کښې فلانا وفلانا الفاظ ذکردی او په دې کښې د دوو سړو د قتل حکم ورکړې شوې دې خو سنن ابی داؤد کښې حمزه اسلمی رضی الله عنه په روایت کښې صرف د یوسړی د قتل حکم وارددې؟

حافظ ابن حجر رحمه الله په دواړو روایتونوکښې تطبیق کولوسره فرمائی چه د سنن ابی داؤد په روایت کښې فلانا نه هباربن اسودمراد دې اوصرف د هبارذکرئی ځکه اوکړو چه اصل حمله کونکې هم دغه وونافع عبدقیس خوتابع وو. (۳)

**قوله**: وإن النار لایعذب بها إلا الله، فإن وجدتموهما فاقتلوهما:- داخبر په معنی د نهی د قبیل نه دې (۴) په نورو روایاتوکښې د لاینبغی الفاظ تصریح ده. د ابن اسحاق په روایت کښې دی. ثم رأیت، أنه لاینبغي أن یعذب بالنار إلا الله. (۵) دغه شان په سنن ابی داؤد کښې د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په مرفوع روایت کښې دی: إنه لاینبغي أن یعذب بالنار إلا رب النار. (۶)

---

۱) سنن أبی داؤدو: ۷۰۶/۲ کتاب الجهاد باب فی کراهیة حرق العدو بالنار.

۲) نصب الرایة للزیلعي: ۴۰۷/۳.

۳) فتح الباری: ۱۸۵/۶.

۴) فتح الباری: ۱۸۵/۶.

۵) السیرة النبویة لابن هشام: ۲۹۸/۲ وفتح الباری: ۱۸۵/۶.

۶) سنن أبی داؤد: ۷۰۶/۲.

اول رسول الله ﷺ د سوزولوحکم وکړې ووبیاد سوزولو په ځانی د قتل کولو حکم ورکړو حافظ ابن حجر رحمه الله ددې دویم حکم باره کښې فرمانی چه داحکم به حضورپاك د وحی په ذریعه سره ورکړې وی یابه نی په خپل اجتهادسره ورکړې وی بهرحال په دواړو صورتونو کښې د ړومبی حکم دپاره ناسخ دې [1]

**د حدیث فوائد** حافظ ابن حجر رحمه الله د روایت باب نه مختلف فوائد مستنبط کړی دی ① رسول اکرم ﷺ اول د هبار بن اسود او نافع عبدقیس د سوزولوحکم ورکړو روستوحضورپاك دغه فیصله منسوخ کړه اودهغوی د قتل کولو حکم نی اوکړو د دې نه دامعلومه شوه چه د اجتهادی فیصله نه رجوع کول جائزدی [2]

② رسول کریم ﷺ په اورسره دعذاب د حکم نه د رجوع کولودلیل دابیان کړو چه په اور سره عذاب ورکول صرف الله تعالی سره ښائی ددې نه معلومه شوه چه حکم صادرکولووخت کښې د رفع الباس دپاره دلیل پیش کول مستحب دی [3]

③ هباربن اسود او دهغه ملګرې نافع عبدقیس دحضرت زینب رضی الله عنها سورلی په نیزه اووهله نوهغه په زمکه راپریوتله. په دې واقعه باندې ډیره موده تیریدونه پس حضورپاك دهغوی د قتل حکم ورکړو. ددې نه معلومه شوه چه د سزا مستحق سړی په جرم باندې که ډیره موده تیره شی نودې سره هغه سزا کالعدم کیږی نه [4]

④ کیتمل او نور حشرات الارض په اور کښې سیزل مکروه دی [5] دمسندبزار په روایت کښې عثمان بن حبان وائی چه زه ام درداء رضی الله عنها سره ووم ما یوکیتمل اونیولواو په اورکښې مې واچولو په دې باندې هغې اوفرمائیل د ابودرداء رضی الله عنه نه مااوریدلی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی لایعذب بالنار إلا رب النار. [6] ابن ابی شیبه هم خپل مصنف کښې دا روایت ذکرکړې [7]

⑤ یوسنت د بل سنت دپاره ناسخ کیدې شی.

⑥ د مسافرد خپل ښارمشرانوله تلل اورخصت کیدل اود دوستانو ملګرو په سفرباندې تلل او ملګری ته الوداع وئیل جائزدی. [8]

---

[1] فتح الباری:۶/۱۸۶.
[2] فتح الباری:۶/۱۸۶.
[3] فتح الباری:۶/۱۸۶.
[4] فتح الباری:۶/۱۸۶.
[5] فتح الباری:۶/۱۸۶.
[6] نصب الرایة للزیلعی:۳/۴۰۸.
[7] مصنف ابن أبی شیبه:۱۷/۵۸۶ – ۵۸۷.
[8] فتح الباری: ۶/۱۸۶.

[حدیث نمبر ۲۸۵۴] [1] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ عَلِيًّا - رضي الله عنه - حَرَّقَ قَوْمًا، فَبَلَغَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَوْ كُنْتُ أَنَا لَمْ أُحَرِّقْهُمْ، لأَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللَّهِ». وَلَقَتَلْتُهُمْ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ».

## رجال الحديث

① **علی بن عبدالله**: دا علی بن عبدالله بن جعفر بن نجیح سعدی رحمه الله دې. د ابن المدینی په نوم سره مشهور دې. د دوی حالات کتاب العلم باب الفهم فی العلم لاندې تیر شوی دی. [2]

② **سفیان**: دا ابو محمد سفیان بن عیینه الکوفی رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب العلم باب قول المحدث: حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا، لاندې تیر شوی دی. [3]

③ **ایوب**: دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب الایمان باب حلاوة الایمان لاندې تیر شوی دی. [4]

④ **عکرمه**: دا د حدیث او تفسیر مشهور امام ابو عبدالله عکرمه مولی عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دې. د دوی حالات کتاب العلم باب قول النبي صلی الله تعالی علیه وسلم: اللهم علمه الکتاب لاندې تیر شوی دی. [5]

**قوله**: أن عليا حرق قوما: هم دغه روایت په مسند حمیدی کښې هم نقل دې. په دې کښې دی: أن عليا رضي الله عنه حرق المرتدين. [6] په دې کښې د قوم په ځائې د مرتدین تصریح ده. د دې نه عبدالله بن سبا او د هغه منونکي مراد دی کوم چه حضرت علی رضی الله عنه د هغوی د باطل او ډیر زیات خطرناک عقائدو د وجه په اور کښې د اچولو حکم ورکړې وو.

عبدالله بن سبا په اصل کښې یهودی وو [7] تاریخ دانانو لیکلي دي چه عبدالله بن سبا په اسلامي تاریخ کښې هغه ړومبې سړې دې چه د حضرت علی رضی الله عنه امامت فرض کیدو او د هغوی

---

[1] ) أخرجه البخاري أيضاً:۱۰۲۳/۲ في استتابة المرتدين والمعاندين وقتالهم. باب حكم المرتد والمرتدة واستتابتهم رقم:۶۹۲۲ وعند الترمذي في جامعه (۲۷۰/۱). في الحدود. باب ماجاء في المرتد رقم: ۱۴۵۸ وعند أبي داؤد في سننه:۲۵۰/۲ في الحدود. باب الحكم فيمن ارتد رقم:۴۳۱۵ وعند النسائي في سننه: ۱۶۳/۷ في الحاربة. باب الحكم في المرتد رقم:۴۰۶۵.

[2] ) كشف الباري:۲۹۷/۳.

[3] ) كشف الباري:۱۰۲/۳.

[4] ) كشف الباري:۲۶/۲.

[5] ) كشف الباري:۳۶۳/۳.

[6] ) فتح الباري:۱۸۶/۶ وعمدة القاري:۳۶۶/۱۴.

[7] ) البداية والنهاية لابن الكثير:۱۶۲/۷ دار الكتب العلمية بيروت.

د دښمنانو نه د خلاصي اعلان کولوسره هغوی کافر کرخولی (۱). عبدالله بن سبا د خپلو غلطو عقیدو په ښکاره باندې تبلیغ کولوسره د متبعینو یوډله جوړه کړې وه چه د سبائیه فرقې په نوم باندې مشهوره شوه عبدالله بن سبا اوهغه پیروکار په حب علي رضی الله عنه کښې د غلو نه کار اخستلوسره هغه نبي اومنلواو بیا په محبت کښې دومره وړاندې شو چه هغه نې خپل معبود اواله جوړ کړو (۲) ددې ګمراهنې خورونکې عقیدې هغه دومره په زور سره تبلیغ اوکړو چه حضرت علي رضی الله عنه ته دهغه ددې خبرو معلومات اوشو نوهغوی داخلق په دوو کوهیانو کښې په اور کښې د اچولو حکم ورکړو د عبدالله بن سبا په اور کښې د اچولو په نتیجه کښې یوشور او غوغ شروع شوه او د حالاتونو د خرابیدو اندیښنه وه په دې وجه هغه نې جلاوطن کړو او ساباط المدائن ته نې اولیګلو (۳) د بعض حضراتو وینا ده چه حضرت علي رضی الله عنه د عبدالله بن سبا پیروکار په اور کښې نه وو اچولی

چنانچه اسماعیلي د ابن أبي عمر عن سفیان او محمد بن عباد عن سفیان په دوو طریقو سره یو روایت نقل کړې دې په کوم کښې چه سفیان بن عیینه رحمه الله وائي چه ما عمرو بن دینار ایوب او عمار الدهني په یومجلس کښې د دغه خلقو تذکره کولوسره اولیدل کوم چه حضرت علي رضی الله عنه په اور کښې اچولی وو بلکه کندې کړې وې او په هغوی باندې د اور لوګی وریږخې وو په دې باندې عمرو بن دینار دا اشعار اوونیل

لترمني المنايا حيث شاءت — إذا لم ترمني في الحفرتين

إذا ما أججوا حطبا ونارا — هناك الموت نقدا غير دين (۴)

یعنی مرګ چه ما کوم ځائي غواړي اودې غورزوي خو په دوو کندوکښې مې دې نه غورزوي ځکه (هغه دوه کندې دومره وحشت ناکې دی) چه کله لرګی بل کړې شي او اور اولګی نوهلته مرګ قرض نه بلکه نقد وی. شاعرد مذکوره واقعه طرف ته اشاره کړې ده چه کله په کندوکښې لرګی واچولې شو او اور سور کړې شو نوهغوی هم هغه وخت د مرګ خلې ته لاړل

امام بخاري رحمه الله حماد بن زید عن أیوب عن عکرمه په طریق کتاب الحدود کښې کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې هم د تحریق تصریح ده. د روایت الفاظ دا دی أتي علي بزنادقة فأحرقهم (۵)

---

(۱) المرتضی ص:۲۶۲.

(۲) المرتضی ص:۲۶۲.

(۳) المرتضی ص:۲۶۳.

(۴) فتح الباري:۶/۱۸۶ قال الحافظ: وفي رواية ابن أبي عمرومحمدبن عباد عندالاسماعیلي جمیعا عن سفیان قال: رأیت عمروبن دینا وأیوب وعمار الدهني أجتمعوا فتذاکروالذین حرقهم علي. فقال أیوب فذکر الحدیث فقال عمارلم یحرقهم. ولکن حفرلهم حفائروخرق بعضهاألی بعض ثم دخن علیهم. فقال عمر ابن دینار: وقال الشاعر:( لترم بي المنایا حیث شاءت ) وکان عمرو بن دینار.... أراد بذلک الرد علی عمار الدهني في إنکاره أصل التحریق.

(۵) صحیح البخاري:۲/۱۰۲۳ کتاب استتابة المرتدین والمعاندین باب حکم المرتد والمرتدة واستتابتهم رقم:۶۹۲۲.

دغه شان دَ مسند احمدبن حنبل روایت دې: أن علیا أتی بقوم من هؤلاء الزنادقة ومعهم کتب، فأمر بنار فأججت ثم أحرقهم وکتبهم (۱) یعنی حضرت علی رضي الله عنه بعض زنادقه (مرتدین) اونیول چا سره چه کتابونه وو هغوی دَ اور بلولو حکم ورکړو او بیائی هغوی دَ کتابونو سره په اور کښې واچول دغه شان په مصنف ابن ابی شیبه کښې عبدالرحمن بن عبید عن أبیه په طریق سره چه کوم روایت نقل دې په هغې کښې هم دَ تحریق تصریح ده. روایت دا دې:

کان أناس یعبدون الاصنام فی السر، ویاخذون العطاء فأتی بهم علی رضي الله عنه فوضعهم فی السجن، واستشار الناس، فقالوا: اقتلهم، فقال: لا، ولکن أصنع بهم کما صنعوا بابینا إبراهیم، فحرقهم بالنار (۲) یعنی څه خلقو به په پټه باندې دَ بتانو عبادت کولو او هدایات به ئی وصول کول. حضرت علی رضي الله عنه هغوی اونیول په جیل کښې ئی واچول دَ هغوی باره کښې ئی دَ خلقو نه رائې اوغوښتله نو هغوی دا رائې ورکړه چه ټول قتل کړئی هغوی اوفرمائیل نه. بلکه زه به دوی سره هغه عمل کوم کوم چه دوی زمونږ پلار حضرت ابراهیم علیه السلام سره کړې وو نو هغه ټول ئی اور کښې واچول
ابوطاهر المخلص رحمه الله یواوږد روایت عبدالله بن شریك العامری عن أبیه په طریق سره نقل کړې دې. په دې کښې مذکوره واقعه دَ نورو روایاتو په نسبت ډیره په تفصیل سره روایت کړې شوې ده

قیل لعلی إن هنا قوما علی باب المسجد یدعون أنك ربهم! فدعاهم، فقال لهم: ویلکم ما تقولون؟ قالوا: أنت ربنا وخالقنا ورازقنا، فقال: ویلکم! إنما أنا عبد مثلکم اکل الطعام کما تاکلون، وأشرب کما تشربون، إن أطعت الله أثابنی إن شاء، وإن عصیته خشیت أن یعذبنی، فاتقوا الله وارجعوا، فابوا، فلما کان الغد غدوا علیه، فجاء قنبر فقال: قد والله رجعوا یقولون ذلك الکلام! فقال: أدخلهم فقالوا: کذلك، فلما کان الثالث قال: لئن قلتم ذلك لاقتلنکم باخبث قتلة، فابوا إلا ذلك فقال: یا قنبر! ائتنی بفعلة معهم مرورهم فخذلهم أخدودا بین باب المسجد والقصر، وقال: احفروا فابعدوا فی الارض، وجاء بالحطب فطرحه بالنار فی الاخدود قال: انی طارحکم فیها أو ترجعون؟ فابوا أن یرجعوا فقذف بهم فیها حتی إذا احترقوا قال:

إنی إذا رأیت أمرا منکرا  أوقدت ناری، ودعوت قنبرا (۳)

په روایت کښې دی چه حضرت علی رضي الله عنه ته اوخودلې شوچه دَ جمات په دروازه کښې څه خلق تاسو خپل رب او اله وئیلو سره رابلی حضرت علی رضي الله عنه ټول راؤغوښتل ورته ئی اووئیل تاسو تباه شئی دا تاسو څه وایئی؟ هغوی وئیل تاسو زمونږ رب زمونږ خالق او زمونږ رازق ئی

(۱) فتح الباری: ۶/۱۸۶.

(۲) مصنف ابن أبی شیبة: ۱۷/۵۸۹ کتاب السیر باب من رخص فی التحریق فی أرض العدو وغیرها رقم: ۳۳۸۲۱.

(۳) فتح الباری: ۱۲/۲۶۹ – ۲۷۰ کتاب المرتدین والمعاندین وقتالهم باب حکم المرت. ط: دار الفکر وبذل المجهود: ۱۷/۲۸٤ کتاب الحدود باب الحکم فیمن ارتد.

حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل تاسو تباه شئی زه خوستاسو په شان یوبنده یم لکه څنګه چه تاسوخلق خوراك څښاك کوئی هغه شان زه هم خوراك څښاك کوم که زه د الله تعالی اطاعت اوکړم نو د الله تعالی مرضی ده چه ما اوبخښی اوکه د هغه نافرمانی اوکړم نواندیښنه ده چه هغه ماته عذاب راکړی لهذا تاسو هم د الله تعالی نه اوویرېږئی او دې خانی واپس شئی. خوهغوی د هغه خبره منلونه انکاراوکړو صباله سحر هغوی دوباره راغلل قنبرحضرت علی رضی الله عنه له راغلو عرض ئی اوکړو په خدائی چه هغه خلق خوبیا راواپس شوی دی اوهم هغه خبرې کوی هغوی اوفرمائیل دوی دننه راوله کله چه نی هغوی دننه راوستل نوهم هغه خبرې واپس راوګرځولې خو چه په دریم خل هغوی هغه خپله زړه قصه کول شروع کړه نوحضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل که تاسو خلقو هغه زړه خبره اوکړه نوزه به تاسو ډېر په خرابه طریقه سره قتل کړم خودې خلقو اونه منل او په خپل موقف باندې کلك ولاړ ووو حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل قنبر داسې مزدوران راوله چه هغوی سره بیلچې وی نو د جمات او کور په مینځ کښې کندې اوکنستلې شوې بیائی حکم اوکړو چه دغه کندې ښې ډېرې ژورې کړئی لرګی راوړل او په بل کړې شوی اور کښې ورغوزارکړل حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل واپس کیږئی که نه تاسو ټول دې اور کښې واچوم؟ هغوی د تللونه انکاراوکړو نوهغوی دا ټول په هغه کندو کښې په سورشوی اورکښې واچول کله چه هغوی اوسوزیدل او سکاره شو نوحضرت علی رضی الله عنه دا شعراولوستلو: کله چه یوه ناخوښه معامله اووینم نو اور بلولوسره قنبر راغواړم
خلاصه داشوه چه د عبدالله بن سبا پیروکار (راجح هم دغه دی) په اورکښې سوزولې شوی وو. خوبیاهم د عبدالله بن سبا په اورکښې اچولوسره فتنه خورونکوته د چغو صورو موقع ملاویدله د دې خطرې د وجه حضرت علی رضی الله عنه هغه جلاوطن کړواو ساباط المدائن ته ئی اولیګلو.(١)

**فبلغ ابن عباس فقال لوكنت أنا لم أحرقهم لان النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قال لاتعذبوا بعذاب الله** چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته د دې واقعه خبر اوشو نو هغوی اوفرمائیل که د علی په خائی زه ووم نو هغوی به مې کله هم په اورکښې نه وو اچولی څکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی د الله تعالی په عذاب باندې چاته عذاب مه ورکوه

**لوكنت أنا:**- دلته خبرمحذوف دې اوتقدیرعبارداسې دې: لوكنت أنا بدله لقتلتهم جواب شرط دې او په دې کښې لام د تاکیدد پاره دې.(٢) یعنی که زه د هغه په خائی ووم یا د هغه په خائی خلیفه ووم نودوی به مې په اورکښې نه اچول البته قتل کول به مې ضرور حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د حضرت علی رضی الله عنه د طرف نه د بصره والی وو اوهم هلته هغوی ته د تحریق یعنی سوزولو د واقعه خبر رسیدلې وو (٣)
په سنن ابوداؤد کښې دا روایت تفصیل سره نقل دې د تحریق په واقعه باندې ابن عباس رضی الله عنهما د

---

١) المرتضی ص:٢٦٢.
٢) شرح الكرماني:١٣/٢٦وعمدة القاري:١٤/٣٦٦ – ٣٦٧ وإرشاد الساري:٦/٤٨٩.
٣) بذل المجهود:١٧/٢٨٤.

رسول اكرم ﷺ نه روايت كړي شوي حديث پيش كولوسره خپل خفګان ښكاره كړي وو حضرت علي رضي الله عنه چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په خبره باندې خبرشو نووئي فرمائيل ويح ابن عباس يوروايت كښې ويح أم ابن عباس الفاظ واردد ى (١)

د اهل لغت په نيز لفظ ويح بعض مواقعوكښې د مدح اوتعريف په معنى كښې هم استعماليږي دلته هم په دغه معنى كښې استعمال دي بعض رواياتوكښې صدق ابن عباس الفاظ هم منقول دى (٢) لكه چه حضرت علي رضي الله عنه ته د دې خبرې علم نه ووچه رسول الله ﷺ د تحريق نه منع فرمائيلې هغه په خپله رائې او اجتهاد سره سبايان په اور كښې اچولي وو په دې وجه چه كله هغه ته د ابن عباس رضي الله عنهما په ذريعه د دې د ممانعت علم اوشو نود ابن عباس رضي الله عنهما تائيداوتصويب ئې اوكړو. (٣)

**په مسئله تحريق بالنار كښې د مذاهبوتفصيل:-** علامه موفق الدين ابن قدامه رحمه الله فرمائي چه په دښمن باندې قابو موندلونه پس هغوى په اوركښې اچول په اتفاق سره ناجائزدي كه دغه شان د تحريق نه بغيرپه دښمن باندې قابوموندل ناممكن وى نوبياهم تحريق جائزنه دې خوكه د تحريق نه بغيرقابوموندل ناممكن وى نو په دغه صورت كښې د اكثرو علماؤ په نيزتحريق جائزدې. (٤)

په صحابه كرامو كښې د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په نيزتحريق مطلقاً ناجائزدې. كه د دې سبب كفروى كه قصاص وى ياحالت جنګ كښې كيدل وى (٥) حضرت علي اوخالد بن وليد رضي الله عنهما په نيزتحريق جائزدې. هم دغه رائې د معاذبن جبل او ابوموسى اشعرى رضي الله عنهما هم ده.

علامه مهلب رحمه الله فرمائي چه په حديث كښې نهى عن التحريق تحريمى نه ده بلكه دا نهى على سبيل التواضع ده. مطلب دادې چه تعذيب بالنار چونكه د الله تعالى خصوصيت دې په دې وجه تواضعاً لله د دې ممانعت شو. د دې دليل دا دې چه رسول اكرم ﷺ د عرنين په سترګوكښې ګرم سلايان راښكلي دغه شان حضرت ابوبكر رضي الله عنه د صحابه كرامو په موجودګئ كښې زناكارې ښځې په اوركښې اچولې وې اوخالدبن وليد رضي الله عنه د بعض مرتدينو تحريق كړې وو اكثرفقهاء مدينه د قلعه بند دښمنانو تحريق جائزګرځوى اود دښمن د سورلئ د سوزولو هم قائل دى. د دې تفصيل نه معلومه شوه چه په حديث كښې نهى عن التعذيب بالنار تحريمى او وجوبى نه دې بلكه د ندب او استحباب په درجه كښې دې (٦)

---

(١) بذل المجهود:١٧/ ٢٨٤.

(٢) بذل المجهود:١٧/٢٨٥.

(٣) إرشاد الساري:٦/٤٨٩ وشرح الكرماني:٣/٢٦.

(٤) الدرالمنضود:٤/ ٤٠٢ بحواله تراجم بخاري:١٤/ ١٦.

(٥) فتح الباري:٦/١٨٥ وإرشادالساري:٦/٤٨١.

(٦) شرح ابن بطال:٥/١٧٢قال المهلب: ليس نهيه عليه السلام عن التحريق بالنار على معنى التحريم. وإنما هوعلى سبيل التواضع لله. وأن لايتشبه غضبه بغضبه فى تعذيب الخلق. إذا... [بقيه برصفحه آئنده...

## باب ۱۴۸: فاما منا بعد واما فداء/ محمد: ۴/

فیه حدیث ثمامة: ار ۱۴۵۰]

وَقَوْلُهُ عَزَّوَجَلَّ (مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ تَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ (یعنی: یغلب فی الارض) تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا) الآيَةَ. [الانفال: ۶۷/

امام بخاری رحمه الله دَ خپل عادت مطابق اکثرہ قرآن مجید آیت یا حدیث دَباب عنوان جوړه وی. دلته هم امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې دَ سورت محمد دَ ایت یوه حصه دَباب عنوان جوړکړې دې پوره آیت دې ﴿ فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّى إِذَا أَثْخَنْتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّى تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ذَلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَكِنْ لِيَبْلُوَ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَنْ يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴾ (۱)

یعنی چه کله تاسو دَ کافرانو په مقابله کښې راشئی نو دَهغوی ستونه وهئې تردې چه کله دَهغوی ښه وینې اوبهیوئی نوکافران قیدکړئی اوښه کلك ئی اوتړئی بیادې نه پس یا خواحسان اوکړئی معاوضه اخستلوسره پریږدئی ترکومې چه جنګ کونکی خپله وسله اونه غورزوی

**دَ ترجمة الباب مقصد:-** دَدې ترجمة الباب نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصددادې چه دکافرانو قیدیانونه فدیه واخلئې پریږدئی اوفدیه اخستلونه بغیرپریخودل دواړه صورتونه جائزدی. (۲)

دَ سورت محمدپه دې آیت کښې داخودلې شوی دی چه کله اثخان یعنی ښه وینې بهیولونه پس دَ کافرانو همت مات شی اودَهغوی شان اوشوکت باقی پاتې نه شي نو (ښکاره خبره ده چه په هغوی کښې به دَ جنګ حوصله یخه شی په دې وجه) به اوس دَ جنګ لاراختیارولونه بغیرهغوی په رسوباندې کلك اوتړئی اوقیدئی کړئی. بیامسلمانانوته دَ دوو خبرو اختیاردې یاخودې احسان اوکړی پریږدې دی اودَهغوی نه دې څه مالی معاوضه نه وصول کوی یا دې مالی معاوضه واخلی یعنی فدیه سره دې پریږدی

دَ غزوه بدر په موقع مسلمانانوته غیرمعمولی فتح حاصله شوه دَ مسلمانانولاس ته ډیر مال غنیمت راغلو اود کافرانو اویا سردران ګرفتارکړې شو صحابه کرامو دَهغوی نه فدیه اخستلوسره آزادول غوښتل نو په دې باندې دَالله تعالی عتاب نازل شو. په دغه موقع چه دَ سورت انفال کوم آیت نازل شو ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ﴾ په دې کښې

.....بقیه ازحاشیه گذشته] القتل یاتی علی مایاتی علیه الاحراق. والدلیل علی أنه لیس بحرام سمل الرسلو. أعین العرنین بالنار فی مصلی المدینه بحضرة الصحابة. وتحریق علی بن أبی طالب الخوارج بالنار. وأكثر علماء المدینة یجزون تحریق الححصون علی أهلها بالنار. وقول أكثرهم بتحریق المراكب. وهذا كله یدل أن معنی الحدیث علی الحض والندب لا علی الایجاب والفرض. والله أعلم. دې نه علاوه اوګورئی فتح الباری: ۱۸۵/۶ وإرشادالساری: ۴۸۹/۶.

(۱) سورة محمد: ٤.

(۲) عمدة القاری: ٣٦٧/١٤ وإرشا الساری: ٤٨٩/٦.

فرمانيلي شوى دى چه د اسلام په دښمنانو باندې غلبه بيامونده لونه پس دهغوى په شان شوكت او قوت باندې گذارونه مه كوئى اوقيديا آزاد پريخودل د يونبى د شان سره برابر دى بهر حال دسورت انفال په دې آيت كښې د دښمن قيديانونه فديه اخستلوسره د پريخودلو ممانعت راغلې دې اود سورت محمد په آيت كښې داجائز گرځولې شوى دى په ظاهره دواړه حكمونه معارض دى

په دې كښې اختلاف دې چه كوم يو آيت ناسخ اوكوم منسوخ دې عطاء بن ابى رباح شعبى. حسن بصرى. ضحاك او امام ثورى رحمهم الله په نيزد سورت محمد په آيت سره د انفال آيت منسوخ دې [١] دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه هم دغه قول مروى دې [٢] د دې حضراتو په نيزد مسلمانانوامام ته اختياردې چه مالى معاوضه يعنى فديه اخستلوسره پريږدى او يا احسانًا بغيرد فديه اومعاوضه اخستلو دې پريږدى ياهغه مسلمانان چه د دښمن په قيد كښې دى دهغوى بدلون اوكړى البته قتل ئې جائزنه دې. خو عبدالله بن عباس قتاده مجاهد سدى ابن جريج عوفى اواكثر اهل كوفه په نيزد سورت محمد آيت د سورت انفال د آيت ﴿ اقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ ﴾ او ﴿ فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِمْ مَنْ خَلْفَهُمْ ﴾ سره منسوخ دې [٣]

د صاحبين اويه يوروايت كښې د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله قول مشهورهم دغه دې [٤] د دې حضراتو په نيزد سورت محمدآيت د منسوخ كيدو وجه نه جنگى قيديان احسانًا يا فديه اخستلوسره آزادول جائزنه دى خومشهورحنفى فقهى مفسر ثناء الله پانى پتى رحمه الله فرمائى

فهذه الاية ناسخة لقوله تعالى ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ۚ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴾ فانها نزلت فى غزوة بدر سنة اثنين، وقد من رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم على الاسرى بعد ذلك فى الحديبية سنة ست، وغيرذلك. [٥]

يعنى د سورت انفال آيت منسوخ دې اود سورت محمد آيت ناسخ دې. ځكه چه د سورت انفال آيت دبدر په موقع سن هجرى دويم كال نه پس نازل شوې اورسول اكرم ﷺ د حديبيه په موقع ٦هجرى باندې بعض قيديان بغيرد معاوضه احسانًا آزادكړى وو. صحيح مسلم كښې د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې چه وسله بند د دښمن اتياكسان د كوه تنعيم نه راكوزشواو په رسول الله ﷺ او صحابه كرامو رضي الله عنهم باندې ئې ناڅاپى حمله كول غوښتل رسول اكرم ﷺ هغه ټول گرفتاركړل او آزادئې كړل. په دې موقع باندې د سورت فتح آيت ﴿ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ۚ ﴾ [٦]

---

[١]) الجامع الاحكام القرآن للقرطبي:٢٢٧/١٦. وعمدة القارى: ٣٦٧/١٤.
[٢]) عمدة القارى: ٣٦٧/١٤.
[٣]) الجامع الاحكام القرآن للقرطبي: ٢٢٧/٢١٦.
[٤]) فتح القدير: ٥/٢١٩ – ٢٢٠كتاب السير.
[٥]) التفسير المظهرى: ٣٣٤/٦.
[٦]) صحيح مسلم ١١٤/٢ كتاب الجهاد باب قول الله تعالى: ﴿ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ﴾ رقم: ٤٤٤٣.

د قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله او بعض مفسرينو په نيزد سورت انفال آيت اول اوسورت محمد آيت پس نازل شوي چونكه متاخرد متقدم دپاره ناسخ وى په دې وجه دسورت محمد آيت ناسخ اود سورت انفال آيت منسوخ دې اوهم دغه د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مختار مسلك هم دې د امام اعظم رحمه الله نه دوه قوله نقل دى يودا چه قيديانونه فديه اخستل او آزادول جائزنه دى اودويم قول امام محمد رحمه الله سيركبيركښې د جواز نقل كړې دى اوهم دغه قول راجح اواظهردې (١) اود امام طحاوى رحمه الله رائې هم دغه دده اوهغوى په ډير ښكلي طرز د استدلال سره هم دا مذهب راجح ګرځولې دې (٢)

حقيقت دادې چه دمضمون اومفهوم په اعتبارسره په دواړو آياتونوكښې تعارض نشته او دواړوكښې يوايت هم ناسخ اومنسوخ نه شى ګرځولې كيدې ابن زيد او ابوعبيدبن سلام رحمه الله فرمائيلي دا دواړه آياتونه محكم دى اوهم دغه قول د امام مالك امام شافعي امام احمدابوثور او امام اوزاعى رحمهم الله هم دې (٣) حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائى په غزوه بدركښې د مسلمانانوتعدادكم ووهغه وخت د من وفداء ممانعت راغلو دهغې نه پس چه كله دمسلمانانو شميرزيات شو اودهغوى په شوكت او سلطنت كښې اضافه اوشوه نود من وفدا اجازت وركړې شو (٤) ددې روايت نه معلومه شوه چه په غزوه بدركښې من وفداء د ممانعت او اثخان حكم سره د كفرشان اوشوكت ختمول مقصودوو په دې وجه الله تعالى ته دامنظورنه شوه چه كافران دې د فديه په عوض ژوندى پريخودې شى خوچه كله د كفرشان اوشوكت ختم شو اواهل اسلام ته غلبه حاصله شوه اودهغوى شوكت او سرلوړى قايمه شوه نوداثخان ضرورت باقى نه پاتې كيدودوجه نه دمن اوفديه اجازت وركړې شو نولكه چه دواړه آياتونه محكم دى كوم وخت چه داهل اسلام مفاد په اثخان او وينې تويولوكښې مضمروو اود حالاتوتقاضاهم دغه وه نود من اوفداء ممانعت اوشو اوداثخان حكم راغلو خوچه كله اقتضاء حال بدله شوه اود اثخان ضرورت پاتې نه شو نودمن اوفداء اجازت وركړې شو په دې وجه دلته يوآيت ته هم منسوخ وئيلوضرورت نشته د نسخ ضرورت هغه وخت وى كله چه په آيات او جمع كښې تطبيق ممكن نه وى (٥)

هم په دې وجه جمهورفقهاؤ فرمائيلي دى چه دوخت امام ته د وخت او مصلحت لاندې په احسان فداء او ترقيق كښې په يوباندې د فيصله عمل كولواختيار حاصل دې پخپله د رسول

---

١) السيرالكبيرمع شرحه لمحمدبن أحمد السرخسي رحمه الله: ٢٩٦/٤ باب: من الفداء. دارالكتب العلمية بيروت الطبعة الاولى: ١٤١٧هجرى.

٢) د تفصيل دپاره اوګورئى شرح مشكل الاثار للامام طحاوى: ٣٨٦/١٠ — ٣٨٨باب بيان مشكلمراوى عن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم من قوله ((ولوكان معطعم ابن عدى حيا وكلمنى فى هولاء النتنى يعنى أسرى بدر لاطلقتهم له)) و: ٣٩٩/١٠باب بيان مشكل ماورى عن رسول الله صلى الله تعالى عليهخ وسلم فى الاوسارى هل جائزأن يقتلوا أم لا؟

٣) تفسير الامام البغوى: ١٧٨/٤ وعمدة القارى: ٣٦٨/١٤.

٤) تفسيرالامام الطبرى: ٢٦/٢٧ وتفسيرالبغوى: ١٧٨/٤ والجامع الاحكام القرآللقرطبى: ٢٢٨/١٦.

٥) جامع البيان فى تفسير القرآن للامام الطبرى: ١٧٨/٤. والجامع الاحكام القرآن للقرطبى: ٢٢٨/١٦.

الله ﷺ په مبارکه زمانه کښې ددې ټولو مثالونه موجود دی ابوعبیدبن سلام رحمه الله فرمائی

والقول فی ذلك عندنا أن الآيات جميعا محكمات لامنسوخ فيهن، وذلك أنه — صلى الله تعالى عليه وسلم — عمل بالآيات كلها من القتل والاسر والفداء حتى توفاه الله تعالى على ذلك، فكان أول أحكامه فيهم يوم بدر، فعمل بها كلها يومئذ، بدأ بالقتل فقتل عقبة بن أبي معيط والنضر بن الحارث فى قفوله، ثم قدم المدينة فحكم فى سائر هم بالفداء، ثم حكم يوم بنى قريظة سعد ابن معاذ رضى الله عنه، فقتل المقاتلة وسبى الذرية، فنفذه رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وأمضاه، ثم كانت غزاة بنى المصطلق رهط جويرية بنت الحارث — فاستحياهم جميعا وأعتقهم، ثم كان فتح مكة فامر بقتل ابن خطل والقينتين وأطلق الباقين، ثم كانت حنين فنسبى هوازن ومن عليهم وقتل أباغرة الجمحى يوم أحد وقد كان من عليه يوم بدر، وأطلق ثمامة بن أثال. فهذه كانت أحكامه — عليه السلام — بالمن والفداء، والقتل، فيس شئ منها منسوخا، والامرفيهم الى الامام وهو مخير بين القتل والمن والفداء، يفعل الافضل فى ذلك للاسلام وأهله. (۱)

زمونږ په نیزصحیح قول دادې چه دا ټول آیاتونه محکم دی اویه دې کښې يوهم منسوخ نه دې خکه چه رسول اکرم ﷺ د خپل وفات پورې د قتل فدیه او قیدد احکاموولا ټولو آیاتونوباندې عمل کړې دې اود مشرکانو باره کښې په دې احکامو باندې د عمل کولوشروع رسول الله ﷺ د بدر په موقع اوکړه. د غزوه بدر د (اویاؤ قیدیانونه) حضورپاك صرف عقبه بن ابی معیط او نضربن حارث قتل کړو بیامدینې ته په رسیدوباندې ئی د مشرکانو ټول قیدیان د فدیه په عوض خلاص کړل بیا رسول الله ﷺ په غزوه بنی قریظه کښې حضرت سعدبن معاذ رضی الله عنه ته د فیصله اختیار ورکړو. سعد رضی الله عنه جنګی سړی قتل او ماشومان اوښځې ئی د قیدکولوفیصله اوکړه نوحضورپاك دهغوی فیصله نافذکړه دې نه پس غزوه بنی مصطلق پیښه شوه بنومصطلق د جویریه بنت الحارث قبیله وه حضورپاك هغه ژوندئی پریخودې او آزاده ئی کړه دې نه پس فتح مکه پیښه شوه نوحضورپاك د ابن خطل او ددوو وینځو دقتل حکم اوکړواو باقی ټول ئی آزادکړل بیاد حنین معرکه مخې ته شوه رسول الله ﷺ د هوازن خلق د قیدکولونه پس احسانا آزاد کړل. د احد په ورځ رسول الله ﷺ ابوغره جمحی (څوك چه په بدرکښې احسانا آزادکړې شوې وو) قتل کړو او ثمامه بن اثال رضی الله عنه ئی آزادکړې وو. بهرحال د من فداء ترقیق اوقتل ټول احکام حضورپاك جاری کړی په دې کښې یوحکم هم منسوخ نه دې. دا احکام دامام په رائې باندې موقوف دی هغه ته د قتل من فداء نه په هریوباندې دعمل کولواختیاردې چه داسلام او اهل اسلام په مفادکښې وی اوکوم حکم هغه زیات بهترګنړی په هغې باندې عمل کولې شی.

هم دغه رائې د شیخ الاسلام علامه شبیراحمدعثمانی رحمه الله هم ده د سورت محمد د مذکوره آیت په ذیل کښې هغوی فرمائی:

د حق اوباطل معرکه خو به وی خوچه کوم وخت هم د مسلمانانو اوکافرانو په مینځ کښې

---

(۱) فتح البارى: ۱۸۸/۶.

جنګ اوشي نومسلمانانو له پوره طاقت او بهادرئي نه کار اخستل پکار دی کله چه د باطل زور مات شي نولوني لوني شيطانان به مړه شي او دهغوى ذلي به ماتې کړې شي په دې وجه په ميدان جنګ کښې سستي بزدلي شاته کيدل او تردد ته لارمه ورکوه او د الله تعالى د دښمنانو په سټ وهلو کښې هيڅ باك مه کوه د پوره جنګ نه پس چه کله ستاسو رعب قايم شي او دهغوى زور مات شي هغه وخت قيد کول هم کافي کيږى قال تعالى ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ﴾ داقيداوبند ممکن دي دهغوى دپاره به دعبرت اوسبق کاروړکوى او مسلمانانو سره اوسيدو سره به ستاد حالت نه د خبريدو او په اسلامي تعليماتو کښې د غورکولو موقع به ورته ملاؤ شي ډيرخلق به په کښې د حق لاراختيار کړى ياکه مصلحت اوګنړى نو بغير د معاوضه په هغوى باندې احسان کولو سره د قيدنه خلاصي ورکړه. په دې صورت کښې ډيرکسان ممکن دى چه ستاسو د احسان اوښه سلوك نه متاثر شي اوستاسو طرف ته راغب شي اوستاسو دين سره محبت اوکړى اودا هم کولې شئي چه دولت فديه اخستلو سره د مسلمانانو قيديانو په تبادله کښې دهغوى قيديان پريږدئي په دې کښې مختلف قسم فائدې دى. بهرحال که دا جنګى قيديان دهغوى د وطن طرف واپس کړئي نو هم دوه صورتونه دى: په معاوضه کښې پريخودل يا بغيرمعاوضه پريخودل په دې کښې چه کوم صورت هم د امام په نيز صحيح وى اختيارولې شى. د احنافو په نيزهم فتح القدير او شامى وغيره کښې داسې روايات موجود دى.(١)

**فيه حديث ثمامة بن أثال:-** حضرت ثمامه بن اثال رضى الله عنه صحابه کرامو ګرفتارکړو او جمات کښې يوې ستنې پورې اوتړلو بيايوڅو ورځې پس رسول اکرم ﷺ هغه آزاد کړو په روايت کښې دى چه حضورپاك اوفرمائيل **أطلقوا ثمامه** ثمامه پرانيزئي خلاص ئي کړئي امام بخارى رحمه الله هم د دې واقعه طرف ته اشاره کړې ده چه ثمامه رضى الله عنه قيدى وو رسول الله ﷺ هغه احسانا آزاد کړو. ترجمة الباب سره د دې الفاظو مطابقت هم ښکاره دې. د ثمامه بن اثال رضى الله عنه دا واقعه وړاندې کتاب المغازى کښې تفصيلاً راروانه ده.

**ماكان لنبى أن يكون له أسرى حتى يثخن فى الارض – حتى يغلب فى الارض – تريدون عرض الدنيا:-** امام بخارى رحمه الله د ابوعبيد رحمه الله قول نقل کړې دې (٢) ابوعبيده يثخن تفسير په يغلب سره کړې دې يعنى اهل اسلام چه ترکومې دښمن سره د جنګ او په کثرت قتل سره په ملك کښې غلبه حاصله نه کړى ترهغه وخته پورې قيدى کافران باقى ساتل مناسب نه دى مجاهد رحمه الله د اثخان معنى قتل سره کړې ده. (٣) يعنى ترکومې چه په زمکه کښې قتل اونه کړې شى بعض حضراتوئيلى چه د اثخان معنى په قتل کښې د مبالغه ده په غزوه بدرکښې الله تعالى مسلمانانوته غيرمعمولى فتح ورنصيب کړه د قريشو ډيرزيات مال مسلمانانوته په غنيمت

---

١) تفسيرعثمانى ص:٦٧٢.
٢) فتح البارى:١٨٨/٦ وإرشاد السارى:٤٩٠/٦.
٣) فتح البارى:١٨٨/٦ وإرشاد السارى:٤٩٠/٦.

کښې ملاؤشو اوډېرو اوياسرداران قيدکړې شو هم دغه قيديانو باره کښې سوال پيداشوچه دوی سره څه سلوك اوکړې شی رسول الله ﷺ صحابه کرامو سره مشوره اوکړه حضرت عمر رضي الله عنه رائې ورکړه: هم أئمة الكفر، والله أغناك عن الفداء فاضرب أعناقهم. دا د کفر مشران دی الله تعالی ته د فديه نه موړکړې ئې نوبس تاسو دوی ستونه والوزوئی. حضرت ابوبکر رضي الله عنه رائې ورکړه: هم قومك وأهلك، لعل الله أن يتوب عليهم، خذ منهم فدية تقوى بها أصحابك يعنی دا ستاسو د قوم اوخاندان خلق دی کيدې شی چه الله تعالی دوی ته د توبه توفيق ورکړی تاسو د دوی نه فديه وصول کړئی په کوم سره چه به ستاسو ملګروته طاقت ملاؤشی. رسول الله ﷺ د حضرت ابوبکر رضي الله عنه رائې قبوله کړه اود ټولونه ئې فديه وصول کړه اومعاف ئې کړل په دې باندې د سورت انفال مذکوره آيت د عتاب په توګه نازل شو چه د يونبی د شان لائق نه ده چه هغه سره کافران قيديان وی اوهغه پريږدی بلکه د هغوی طاقت ختمولو د پاره وينه تويول پکاردی دې د پاره چه په اهل اسلام باندې د حمله کولو په دوی کښې حوصله پاتې نه شی.[1]

**د سورت انفال ايت ذکرکولومقصد:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه د سورت انفال آيت ذکرکولوسره امام بخاری رحمه الله د امام مجاهد رحمه الله مذهب طرف ته اشاره کړې ده د هغوی په نيزد کافرانو قيديانونه فديه اخستل جائزنه دی.[2] د دې جواب سورت محمد او سورت انفال په آياتونوکښې تطبيق او مذاهبو تفصيل په ضمن کښې مونږ تفصيلاً ذکرکړې دې

## باب ۱٤۹: هل للاسير أن يقتل ويخدع الذين أسروه حتى ينجو من الكفرة

فيه المسور، عن النبي صلى الله عليه وسلم. [ر: ۲۵۸۱]

**د ترجمة الباب مقصد:-** مقصد دادې چه آيا د مسلمانانو د قيديانو د راخلاصولو اوکافرانونه نجات حاصلولو د پاره قتل يا دهوکه اوفريب کولې شی؟ شراح فرمائيلی دی چونکه دا اختلافی مسئله ده په دې وجه امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې د حکم تصريح نه ده کړې.[3]

کافران چه کله يومسلمان ګرفتارولوسره قيدکړی نولکه چه دا معاهده کيږی چه اوس به ستاسو خلاف وسله نه راوچتوو نوآيا په دې صورت کښې د مسلمان قيدی د پاره د دغه معاهده خلاف ورزی کول جائزدی؟ امام مالك رحمه الله فرمائی د هغه د پاره د کافرانو د قيد نه تختيدل جائزنه دی.[4] هم دغه قول د سحنون او ابن مواز هم دې.[5] خود مالکيه نه اشهب مالکی رحمه الله فرمائی که چرې کافرانويومسلمان په دې غرض سره قيدکړې وی چه د هغه په بدله کښې هغوی يوکافرقيدی خلاص کړی نو په دې صورت کښې مسلمان قيدی د کافرد

---

[1] ) إرشاد الساري: ٦/ ٤٩٠.

[2] ) فتح الباري: ٦/ ۱۸۸.

[3] ) فتح الباري: ٦/ ۱۸۸ وعمدة القاري: ۱٤/ ۳٦۹ وإرشاد الساري: ٦/ ٤٩١.

[4] ) فتح الباري: ٦/ ۱۸۸ وشرح ابن بطال: ٥/ ۱۷۸.

[5] ) شرح ابن بطال: ٥/ ۱۷۸.

قيدنه خلاصی حاصلولو دپاره قتل هم جائزدي (۱)
امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او امام طبری رحمه الله فرمائی که یومسلمان قیدی د څه قسم عهدوپیمان کړې وی او تسلی ئی ورکړې وی چه ستاسو په وینا به خم نودامعاهده باطل ده اوده دپاره دغه وعده ماتول جائزدی (۲) مطلب دا چه قتل اودهوکه دواړه جائزدی دامام بخاری رحمه الله مسلك هم دغه معلومیږی د باب لاندې هغوی د مسور بن مخرمه د روایت حواله ورکولوسره د حضرت ابو بصیر رضی الله عنه دواقعه طرف ته اشاره کړې ده چه دمشرکانو دقید نه راتختیدلې مدینې ته راغلې وو او رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه باندې هیڅ نکیرنه وو فرمائیلې دامام بخاری رحجان دې طرف ته دې چه د قیدنه دخلاصی دپاره دهوکه وغیره ورکول جائزدی والله اعلم
امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی چه عهداوپیمان په صورت کښې تختیدل خوجائزدی خود کافرانو خان اومال سره تعارض جائزنه دې خوکه څه عهدنه وی شوې نوبیا ده له د کافرانونه د خلاصی دپاره قتل تحریق او اخذ مال نه یولاز اختیارولواجازت دې د مسوربن مخرمه روایت والا واقعه کښې د ابوبصیر رضی الله عنه اومشرکین مکه په مینځ کښې د هیڅ یومعاهدې تصریح نشته. په دې وجه ابوبصیر رضی الله عنه اقدام قتل اوکړو دمشرکانو یوسړې هغه قتل کړو او دویم په تختیدوکښې کامیاب شو. (۳)
ابن قاسم او ابن مواز وغیره فرمائیلی دی مسلمان د کافرانو په قیدکښې راتلونه پس مکره کیږی په حالت اکراه کښې عهدوپیمان باطل دې. نوکه هغه کافرانو سره عهدوپیمان اوکړی اوهغوی له تسلی ورکړی چه ستاسود مرضئي نه خلاف به هیڅ کارنه کوم یاقسم ئی خوړلې وی نو هغه به باطل وی که هغه کافرانو دامن په حالت کښې ساتلې وی اوکه دویړې اوداعهداوحلف ځکه باطل دې چه الله تعالی په مسلمانانوباندې د کافرانود احکامو اطاعت نه کول فرض ګرځولوسره په داسې حالاتوکښې په هغوی باندې هجرت واجب کړې دې نومسلمان قیدی له د تیختې دپاره هرقسم حربه ا ستعمالولواجازت دې. دې حضراتو د حضرت ابوبصیر رضی الله عنه د واقعه نه استدلال کړې دې چه هغه د مکې دکافرانود قیدنه اوتختیدو اومدینې ته راغلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه تصویب اوفرمائیلو اودهغه په دې عمل باندې د رضامندئی اظهاراوکړو. (۴)

**د ابوبصیر رضی الله عنه واقعه:-** د حدیبیه په موقع چه دمکې مشرکانو سره په کوموشرائطو صلح شوې وه په هغې کښې یودا هم ووکه د قریشو نه څوك سړې دخپل آقا او ولی د اجازت نه بغیر مدینې ته لاړشی نوهغه به واپس کولې شی که هغه مسلمان وی اوکه کافر ابوبصیر رضی الله عنه اسلام راوړو دمکې نه مدینې ته راغلو د اهل مکه د طرف نه دوه کسان دهغه د بوتلودپاره راغلل

(۱) شرح ابن بطال:۱۷۸/۵ فتح الباري:۱۸۸/۶ وعمدة القاري:۳۶۹/۱٤.
(۲) شرح ابن بطال:۱۷۸/۵ فتح الباري:۱۸۸/۶ وعمدة القاري:۳۶۹/۱٤.
(۳) فتح الباري:۱۸۸/۶ وعمدة القاري:۳۶۹/۱٤.
(۴) شرح ابن بطال: ۵/ ۱۸۸ وعمدة القاري:۳۶۹/۱٤.

رسول الله ﷺ د شرط مطابق هغه واپس کړو په واپسئ کښې په مقام ذوالحليفه کښې ابوبصير رضي الله عنه هغه دواړو کښې يو کس قتل کړو اودويم تختيدوسره بچ اووتلو او مديني ته راغلو د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو حضورپاک چه هغه اوليدو نو وئې فرمائيل چه ضرور څه خطرناکه خبره شوې ده هغه ونيل چه زما ملګرې خوقتل شوې دې زه هم قتل کيدونکې يم دې نه پس ابوبصير رضي الله عنه اورسيدو اوعرض ئې اوکړويارسول الله ﷺ ستاسو چه کومه ذمه واري وه هغه خوالله تعالى پوره کړه تاسو زه واپس کړم بيا الله تعالى ماته دهغوى نه خلاصې راکړو حضورپاک اوفرمائيل چه دا خو د جنګ تيزولو والاکاردې افسوس چه د ده پوهه کونکې څوك وې دې اوريدوسره ابوبصير رضي الله عنه پوهه شو چه حضورپاك به ما واپس کوى په دې وجه هغه د مديني منورې نه اووتلو او سمندر سره ئې ډيره واچوله ابوجندل رضي الله عنه ته معلومه شوه نوهغه هم ابوبصير رضي الله عنه له لاړو د قريش مکه نه چه به څوك مسلمان کيدو ابوبصير رضي الله عنه ته به ئې خان رسولو تردې چه د سمندر په غاړه يوه ډله جوړه شوه د قريشو کومه قافله چه به د شام طرف ته تلله دې خلقو به هغه رامنع کوله د قافله والا به ئې مړه کړل او مال به ئې ترې واخستو کله چه دامعامله مخې ته شوه نو قريش مکه حضورپاك ته پيغام اوليګلو چه تاسو دغه خلق خپل خان له راوغواړئې مونږ دغه شرط واپس اخلو چه زمونږ کوم سړې تاسوله درشي نوهغه به واپس کوئې کوم سړې هم چه زمونږ نه تاسو ته درشي دهغوى د واپس کولوذمه وارى به په تاسو نه وى په دې خبره رسول الله ﷺ هغه ټولو ته پيغام اوليګلو چه واپس راشئ.(۱) خوابوبصير رضي الله عنه ته چه د حضورپاك پيغام رسيدلونوهغه د دې دنيا نه رخصت کيدلو په دې وجه مديني ته رانغللې شو (۲)

## باب ۱۵۰: إذا حرق المشرك المسلم هل يحرق

**د ترجمة الباب مقصد:-** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى دا باب باب لايعذب بعذاب الله نه پس متصلاً ذکرکول زيات مناسب وو کيدې شى چه دا د ناقلينو تصرف وى چه دا باب ئې لايعذب بعذاب الله نه دوه ابواب روستو ذکرکړې دې د دې تائيد د نسفى د نسخې نه هم کيږى په کوم کښې چه زيرنظر باب، باب لايعذب بعذاب الله متصلاً روستودې او په مينځ کښې دواړه ابواب ساقط دى. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى د دې باب نه د امام بخارى رحمه الله مقصددادې چه په ماقبل باب کښې تعذيب بالنار کوم ممانعت واردشوې دې هغه دې صورت سره خاص دې کله چه تحريق بالنار على سبيل القصاص نه وى خو که بيا هم على سبيل القصاص د تحريق

---

(۱) صحيح بخارى:۱/۳۸۰كتاب الشروط باب الشروط فى الجهاد مع أهل الحرب.

(۲) رسول اکرم ﷺ د ابوبصير رضي الله عنه په نوم خط ليکلې وو چه مديني ته راشه کله چه خط مبارك اورسيدو نو هغه وخت هغه د دنيا نه رخصت کيدو روح ئې په داسې حال کښې لاړو چه د رسول الله ﷺ مبارك خط ئې په لاس کښې وو ابوجندل رضي الله عنه دهغوى تدفين اوکړو اوهلته ئې يوجمات هم جوړ کړو. فتح البارى:۵/۳۵۱.

نوبت راشي نو په دې کښې څه بدی نشته (۱) ليکن علامه عينی رحمه الله په دې باندې رد کولو سره وائي چه دا باب باب لايعذب بعذاب الله سره متصلاً ذکر څه مهم امر نه دې لهذا موجوده ترتيب د ناقلين تصرف طرف ته منسوب کولو هيڅ ضرورت نشته حافظ ابن حجر رحمه الله د علامه نسفی د نسخې ترتيب په توګه د تائيدحواله ورکړې ده علامه عينی رحمه الله وائی د دې نسخه د ترتيب نه د حافظ رحمه الله د رائې تائيدنه کيږي ځکه چه ساقط څيز د معدوم په درجه کښې وی او يو معدوم څيز د تائيد په توګه نه شی پيش کولې (۲)

خوحقيقت دادې چه هم د حافظ ابن حجر رحمه الله رائې صحيح ده او د علامه عينی رحمه الله رد د تکلف او تعصف نه خالی نه ده. والله اعلم

[حديث نمبر ۲۸۵۵] (۳) حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رضی الله عنه- أَنَّ رَهْطًا مِنْ عُكْلٍ ثَمَانِيَةً قَدِمُوا عَلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَاجْتَوَوُا الْمَدِينَةَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، ابْغِنَا رِسْلاً. قَالَ «مَا أَجِدُ لَكُمْ إِلاَّ أَنْ تَلْحَقُوا بِالذَّوْدِ». فَانْطَلَقُوا فَشَرِبُوا مِنْ أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا حَتَّى صَحُّوا وَسَمِنُوا، وَقَتَلُوا الرَّاعِيَ، وَاسْتَاقُوا الذَّوْدَ، وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلاَمِهِمْ، فَأَتَى الصَّرِيخُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم-، فَبَعَثَ الطَّلَبَ، فَمَا تَرَجَّلَ النَّهَارُ حَتَّى أُتِيَ بِهِمْ، فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ، ثُمَّ أَمَرَ بِمَسَامِيرَ فَأُحْمِيَتْ فَكَحَلَهُمْ بِهَا، وَطَرَحَهُمْ بِالْحَرَّةِ، يَسْتَسْقُونَ فَمَا يُسْقَوْنَ حَتَّى مَاتُوا. قَالَ أَبُو قِلاَبَةَ قَتَلُوا وَسَرَقُوا وَحَارَبُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ -صلى الله عليه وسلم- وَسَعَوْا فِي الأَرْضِ فَسَادًا. [ر: ۲۳۱]

## رجال الحديث

① **معلی**:- دامعلی اسد رحمه الله دي. د دوی تذکره وړاندې تيره شوې ده. (۴)

② **وهيب**:- دا وهيب بن خالد بن عجلان باهلی بصری رحمه الله دي. د دوی تذکره کتاب الايمان باب تفاضل أهل الايمان فی الاعمال لاندې تيره شوې ده (۵)

③ **ايوب**:- داايوب بن ابی تميمه کيسان سختيانی رحمه الله دي د دوی حالات کتاب الايمان باب حلاوة الايمان لاندې تيرشوی دی. (۶)

④ **ابوقلابه**:- دامشهورتابعی عبدالله بن زيد جرمی رحمه الله دي. اوهم په دې کنيت سره مشهوردي.

---

(۱) فتح الباری: ۱۸۹/۶.

(۲) عمدة القاری: ۲۷۰/۱٤.

(۳) مرتخريجه فی کتاب الوضوء باب أبوال الابل ولدواب والغنم ومرابضها رقم: ۲۳۳.

(۴) کتاب الحيض باب المرأة تحيض بعدالافاضة.

(۵) کشف الباری: ۱۱۸/۲ – ۱۱۹.

(۶) کشف الباری: ۲۶/۲.

دَ دوی تذکره هم مذکوره کتاب او باب لاندې تیره شوې ده.[1]

⑤ **انس بن مالک** - دَ انس بن مالک رضی الله عنه تذکره کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده

**دَاهل عرینه واقعه** - د باب لاندې امام بخاری رحمه الله چه کوم روایت نقل کړې دې په دې کښې دَعرنیین مشهوره واقعه ذکرده. دا روایت امام بخاری رحمه الله دَ مختلفو بابونولاندې ذکرکړې دې واقعه دا اوشوه چه دَ قبیله عرینه څه کسان مدینې ته راغلل او اسلام ئې قبول کړو اوهغه هلته اوسیدل دَمدینې آب وهوا برابرنه راتلو په وجه ټول بیماران شو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته دَمدینې نه بهرخپلو اوښانوسره دَتللوهدایت اوکړو اوونې فرمائیل چه دَ اوښانو پیښې اومتیازې اوڅکئی نو ټیك به شئی دَ پیښواومتیازو په څکلوسره هغه ټول روغ جوړشو هغوی دَ اوښانو ساتونکې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم راعی حضرت یسار رضی الله عنه قتل کړو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ددې واقعه خبراوشو نوهغوی یوڅوکسان صحابه دَهغوی دَ گرفتارولودپاره اولیګل کله چه هغوی گرفتارکړې شو او راوستلې شو نوحضورپاك دَهغوی دَ قتل کولو حکم ورکړو اودهغوی په سترګوکښې په اور سورکړې شوی سلایان رابنکلې شو اودهغوی خپې لاسونه پرې کولوسره حره (کانړیزه زمکه) باندې اوغورزولې شو.[2] ددې واقعه نه استدلال کولوسره امام بخاری رحمه الله دا ثابت کول غواړی چه علی سبیل القصاص تحریق بالنار جائزدې

**دَامام بخاری رحمه الله په استدلال باندې اشکال** - لیکن په دې استدلال باندې اشکال کیدې شی چه په حدیث باب کښې خوددې خبرې تصریح نشته چه عرنیین دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ راعی په سترګوکښې سلائی رابنکلې وه دَ کوم په نتیجه کښې چه قصاصاً هغوی سره هم دغه عمل اوکړې شو.

**دَ حافظ ابن حجر رحمه الله جواب:** - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی[3] چه امام بخاری رحمه الله دَدې روایت دویم طرق طرف ته اشاره کړې ده په کوم کښې چه دَ دې خبرې تصریح ده چه عرنیین دَ راعی په سترګوکښې سلائی رابنکلې وو. دَ صحیح مسلم په روایت کښې حضرت انس رضی الله عنه فرمائی

انما سمل النبی صلی الله تعالی علیه وسلم أعین العرنیین لانهم سملوا أعین الرعاة[4] یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم دَعرنیین په سترګوکښې سلائی څکه رابنکلوچه عرنیین دَ راعیانو په سترګوکښې سلائی رابنکلې وو.

**دَ علامه ابن بطال رحمه الله جواب** - علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی که دَ روایت په دویم طریق کښې دَدې خبرې صراحت نه وی چه عرنیین دَ راعی رسول صلی الله علیه وسلم په سترګوکښې سلائی راشکلې وو نوبیاهم دې نه تحریق بالنار جواز ثابتیږی مطلب دادې چه اهل عرینه دَ راعی رسول صلی الله علیه وسلم په

---

[1] ) کشف الباری: ۲۶/۲.
[2] ) دَتفصیل دَپاره اوګورئی فتح الباری: ۳۳۷/۱.
[3] ) دَ تفصیل دَپاره اوګورئی فتح الباری: ۳۳۷/۱.
[4] ) صحیح مسلم: ۵۸/۲ کتاب القسامة باب حکم المحاربین والمرتدین.

ستركوكښې سلائى نه وو راښكلې نوددې باوجود حضورپاك د اهل عرينه په ستركوكښې ګرم سلائى رانښكل جائزاوګرځول كه واقعتاً اهل عرينه د دغه شقاوت مظاهره كړې وى نو په دې صورت كښې په طريق اولىٰ دهغوى په ستركوكښې ګرم سلائى رانښكل جائزكيدل (۱)

**د قصاصاً تحريق بالنار حكم** - د شوافع او مالكيه په نيزيه قصاص كښې مساوات ضرورى دې هغوى فرمائى چه قاتل د كوم فعل په ذريعه دمقتول قتل كړې وى كه چرې هغه مشروع وى اومنهى عنه نه وى نوقاتل هم قصاصاً هم په هغه فعل سره وژلې شى البته كه د قاتل عمل چرې غيرمشروع وى نو په هغې كښې مساوات جائزنه دې مثلاً كه قاتل په كانړى ويشتلوسره څوك مړه كړى نوقاتل به هم په كانړى ويشتلوسره مړكولې شى كه قاتل څوك په اوبوكښې ډوب كړو نوهغه به هم ډوبولې شى خوكه دقاتل عمل غيرمشروع وى يعنى هغه په چاباندې جادوكولوسره يا شراب څكلوسره يا زنا سره يا لواطت سره مړې كړې وى نود قاتل نه به هم په دغه فعل سره قصاص اوبدله نه شى اخستې بلكه په دغه صورت كښې به قصاص صرف په توره سره اخستې شى. (۲) د يوروايت مطابق دامام احمدبن حنبل رحمه الله هم دغه مسلك دې (۳) د هغوى استدلال د قرآن مجيد ددې آيت نه دې ﴿ وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ ﴾ (۴) ﴿ فَمَنِ اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ (۵) ﴿ جَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِّثْلُهَا ﴾ (۶) په دې آياتونو كښې دا تعليم وركړې شوې دې چه د ظلم اوزياتى بدله هم په هغه اندازه باندې اخستل جائزدى څومره چه بل فريق كړې وى.

د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزقصاص صرف په وسله سره اخستل جائزدى. دهغوى استدلال د ابن ماجه د روايت نه دې لاقود إلا بالسيف (۷) يعنى قصاص دې صرف په توره باندې واخستې شى دامام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيز د سيف نه هرقسم وسله مراد ده لهذا دهغوى په نيزدتورې نه علاوه ټوپك وغيره سره هم قصاص اخستل جائزدى. (۸)

شوافع او مالكيه چه د كوموآياتونونه استدلال كړې دې هم دغه آياتونه د احنافوهم مستدل دى په آياتونوكښې دا حكم وركړې شوې دې چه په چاباندې ظلم اوزياتى شوې وى نودهغې بدله دې هم هغه هومره واخستې شى دهغې نه دې تجاوز كول حرام دى كه په قصاص كښې په مماثلت او برابروالى باندې عمل اوكړې شى نو په دې كښې په انصاف باندې عمل كول

---

(۱) شرح ابن بطال:۵/۱۷۹ وفتح البارى:۶/۱۸۹.

(۲) المغنى لابن قدامة:۹/۳۹۰ – ۳۹۱ وفتح القدير: ۹/۱۵۶.

(۳) العدة شرح العمدة فى مذهب الامام أحمدبن حنبل رحمه الله ص:۵۰۱باب شروط وجوب القصاص واستيفاء والمغنى لابن قدامة:۹/۳۹۱ رقم الفصل: ۶۶۵۴.

(۴) سورة النحل:۱۲۶

(۵) سورة البقرة: ۱۹۴

(۶) سورةالشورى: ۴۰.

(۷) سنن ابن ماجه ص:۱۹۱كتاب الديات باب لاقود إلا بالسيف رقم:۲۶۶۷ – ۲۶۶۸.

(۸) المغنى لابن قدامة:۱۹/۳۱۹ وفتح القدير:۹/۱۵۶ وتكلمة فتح الملهم:۲/۳۳۹.

ممکن نه دی مثلاً اکثروختونوکښې یوسړې د کانړی په یوګذارباندې هلاك شی خوکله داسې هم کیږی چه په یوسړی باندې د کانړو ډیروګذارونوسره هم دهغه مرګ نه واقع کیږی اوس که د قاتل د کانړی په یوګذار سره د چامرګ واقع شی خود قصاص په دوران کښې پخپله د قاتل مرګ که چرې په یوګذارسره واقع نه شی نو په هغه باندې به ډیرکانړی ورولې کیږی نوښکاره خبره ده چه دا ظلم دې ځکه چه قاتل خو صرف هم یوکانړې ویشتې وو د کمیت په اعتبارسره قصاص د قاتل د فعل نه زیات اخستلې شی. په دې وجه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزقصاص بالمثل جائزنه دې بلکه قصاص دې صرف په وسله سره واخستې شی.[1] هم دغه مذهب د عطاء بن ابی رباح رحمه الله امام ثوری رحمه الله او صاحبین رحمهم الله دې[2] په یوروایت کښې امام احمد رحمه الله نه هم دغه قول مروی دې.[3]

قصاصاً تحریق بالنار دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزجائزنه دې دهغوی په نیزبه قصاص صرف په وسله سره اخستې شی تحریق بالنار ناجائزګرځولوسره امام اعظم رحمه الله ددې حدیث نه استدلال کړې دې. لایعذب بالنار إلا رب النار.[4] د هغوی په نیزددې حدیث په عموم کښې قصاصاً تحریق بالنار هم شامل دې.[5]

دامام احمد رحمه الله نه دوه اقوال نقل دی دیوقول مطابق دهغوی په نیزقصاصاً تحریق جائزنه دې دهغوی دلیل هم د امام اعظم رحمه الله مستدل روایت دې.[6] دویم قول دادې چه تحریق قصاصاً جائزدې.[7] هم دغه مسلك د امام شافعی رحمه الله هم دې.[8] من حرق حرقناه ومن غرق غرقناه.[9] ددوی په نیز لایعذب بالنار إلا رب النار په عموم سره تحریق علی سبیل القصاص مستثنی دې.[10] خود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزددې په عموم کښې تحریق علی سبیل القصاص هم شامل کیدود وجه نه ناجائزدې. اوحدیث لاقود إلا بالسیف په رڼاکښې قصاص صرف په وسله سره اخستې شی

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** په حدیث باب کښې دا صراحت نشته چه رسول الله ﷺ د عرنیین سترګې ځکه داغلې وې چه هم دغه عمل عرنیین د رسول الله ﷺ راعیانوسره کړې وو. په دې

---

[1] ) الشرح الکبیر لشمس الدین ابن قدامة:۱۹/٤۰۰ – ٤۰۱ وتکلمة فتح الملهم: ۳۳۹/۲.
[2] ) الشرح الکبیر لشمس الدین ابن قدامة:۱۹/ ٤۰۱.
[3] ) الشرح الکبیر لشمس الدین ابن قدامة:۱۹/ ٤۰۱ والعدة شرح العمدة فی مذهب الامام أحمدبن حنبل:۵۰۱ باب شروط وجوب القصاص واستیفاءه.
[4] ) سنن ابی داؤد۲/۸ کتاب الجهاد باب کراهیة حرق العدوبالنار.
[5] ) المغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹ رقم الفصل:۶۶۵۵.
[6] ) المغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹ رقم الفصل۶۶۵۵ والعدة شرح العمدة فی مذهب الامام أحمد بن حنبل:۵۰۱.
[7] ) العدة شرح العمدة:۵۰۱ والمغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹.
[8] ) المغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹ والشرح الکبیر:۴۰۲/۱۹.
[9] ) المغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹و العدة شرح العمدة:۵۰۱.
[10] ) المغنی لابن قدامة:۳۹۲/۱۹

وجه دترجمة الباب سره د حديث باب مطابقت نشته

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى په اصل كښې امام بخارى رحمه الله د روايت باب د بل طريق طرف ته اشاره كړې ده په كوم كښې چه تصريح ده چه رسول الله ﷺ د عرنيين سترګې خكه داغلې وې چه عرنين د رسول الله ﷺ د راعيانو سترګې داغلې وې (۱)

چنانچه صحيح مسلم كښې د حضرت انس رضى الله عنه روايت كښې دى إنما سمل النبى صلى الله تعالى عليه وسلم أعين العرنيين لانهم سملوا أعين الرعاة (۲)

## باب

**د ترجمة الباب مقصد اود باب سابق سره مناسبت** :- حافظ ابن حجر علامه عينى اوعلامه قسطلانى رحمهم الله فرمائى چه امام بخارى رحمه الله دا باب بلاترجمه قايم كړې دى اودا باب هم د سابق تتمه ده.(۳) باب سابق كښې د تحريق ذكروو په دې باب كښې داخودل مقصود دې چه په تحريق كښې تجاوز جائز نه دې يعنى چه څوك د تحريق مستحق نه وى دهغه تحريق د حد نه تجاوز او ګناه ده.(۴)

[حديث نمبر ۲۸۵۶](۵) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُونُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «قَرَصَتْ نَمْلَةٌ نَبِيًّا مِنَ الأَنْبِيَاءِ، فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ، فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ أَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ أَحْرَقْتَ أُمَّةً مِنَ الأُمَمِ تُسَبِّحُ». [۳۱۴۱]

## رجال الحديث

① **يحيى بن بكير** :- دا ابوزكريا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشى رحمه الله دې د دوى تذكره بدءالوحى لاندې تيره شوې ده.(۶)

② **ليث** :- دا امام ابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دې. ددوى حالات بدء الوحى لاندې تيرشوى دى.(۷)

---

(۱) فتح البارى: ۱۸۹/۶.

(۲) صحيح مسلم ۵۸/۲ كتاب القسامة باب حكم المحاربين والمرتدين.

(۳) فتح البارى: ۱۹۰/۶ وعمدة القارى: ۳۷۱/۱۴ وإرشادالسارى: ۴۹۳/۶.

(۴) فتح البارى: ۱۹۰/۶.

(۵) رواه البخارى ايضاً: ۴۲۷/۱ فى بدء الخلق. باب إذا وقع الذباب فى شراب أحدكم فليغمسه فان فى أحد جناحيه داء وفى الاخر شفاء. وخمس من الدواب فواسق يقتلن فى الحرم رقم: ۳۳۱۹ وعند مسلم فى صحيحه: ۲۳۶/۲ والغنم ومرابضها رقم: ۲۳۳. فى قتل الحيات وغيرها. باب النهى عن قتل النمل رقم: ۵۸۴۹ وعند أبى داؤد فى سننه: ۳۶۲/۲ باب فى قتل الذر رقم: ۵۲۶۵ وعندالنسائى فى سننه: ۱۹۸/۲ فى الصيد. باب قتل النمل رقم: ۴۳۶۳ — ۴۳۶۴ وعندابن ماجه فى سننه ص: ۲۳۲ فى الصيدباب ماينهى عن قتله رقم: ۳۲۲۵.

(۶) كشف البارى: ۲۳۲/۱.

(۷) كشف البارى: ۳۲۴/۱ — ۳۲۵.

③ **یونس** - دا یونس بن یزید دې دَدوی تذکره هم بدءالوحی کښې تیره شوې ده [1]

④ **ابن شهاب** - مشهورمحدث عبدالله بن شهاب زهری دې دَدوی حالات هم بدء الوحی لاندې تیرشوی دی [2]

⑤ **سعیدبن المسیب** - داامام التابعین سعیدبن المسیب بن حزن بن ابی وهب قرشی رحمه الله دې دَدوی تفصیلی تذکره کتاب الایمان باب من قال ان الایمان هوا لعمل لاندې تیره شوې ده [3]

⑥ **ابوسلمه** - دا ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه دې دَدوی تذکره کتاب الایمان باب صوم رمضان احتسابًا من الایمان لاندې تیره شوې ده [4]

⑦ **ابوهریره** رضی الله عنه - دَدوی حالات هم کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تفصیل سره تیرشوی دی [5]

**قرصت نملة نبیا من الانبیاء، فامربقریة النمل فاحرقت، فاوحی الله إلیه: أن قرصتك نملة أحرقت امة من الامم تسبح.** په یوروایت کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی یومیږی یونبی اوچیچلو هغه د میږود سوړو سوزولوحکم ورکړو چه اوسوزولې شوې الله تعالی هغه ته وحی راولیګله چه ته یومیږی اوچیچلې ولې تایو پوره مخلوق اوسیزلو چه د الله تعالی تسبیح کوی.

**نبیا:-** شراح په دې کښې دوه اقوال نقل کړی دی چه دې نه کوم یونبی مراددې؟

① علامه کرمانی رحمه الله یوداقول نقل کړې دې چه دې نه موسی علیه السلام مراد دې. [6] په نوادرکښې حکیم ترمذی هم دغه قول نقل کړې دې. [7]

② علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه دې نه عزیر علیه السلام مراد دې. [8]

**یوخواشکالات اودهغې جوابات:-** علامه کرمانی رحمه الله اشکال کړې دې چه میږې خو غیرمکلف دې نودده سوزول قصاصًا څنګه جائزکیدې شی؟ علامه کرمانی رحمه الله جواب ورکولوسره وائی چه کیدې شی دهغه نبی په شریعت کښې داسې کول جائزوو. [9] دویم جواب ئی داورکړې دې چه په ماراو اژدهاباندې قیاس کولوسره طبعًا هرموذی ځناور قتل کول جائزدی. [10]

[1] ) کشف الباری: ۱/ ٤٦٣.
[2] ) کشف الباری: ۱/ ۳۲۶.
[3] ) کشف الباری: ۲/ ۱۵۹ – ۱۶۱.
[4] ) کشف الباری: ۲/ ۳۲۳.
[5] ) کشف الباری: ۱/ ۶۵۹- ۶۶۳.
[6] ) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۲۸ وعمدة القاری: ۱٤/ ۳۷۱ – ۳۷۲.
[7] ) إرشادالساری: ۶/ ٤۹۳.
[8] ) إرشادالساری: ۶/ ٤۹۳.
[9] ) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۲۸.
[10] ) شرح الکرمانی: ۱۳/ ۲۸.

په دې باندې اشکال کیدې شي چه کله دَهغوی په شریعت کښې دَاعمل جائزوو نوبیا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه عتاب ولې نازل شو؟ دَدې جواب دادې چه ممکن دی دَاکار جائزوو خواولی نه وو اودا عتاب په ترک اولی باندې نازل شوی دی [۱] په دې باندې علامه عیني رحمه الله اشکال کړې دې چه دا جواب محل نظردې چه داکار دَ هغه وخت په شریعت کښې جائزوو خکه چه دا جواب صرف دَ ظن او تخمین په بنیادباندې ورکړې شوې دې صحیح جواب دادې چه مذکوره نبی کوم وخت تحریق کړې هغه وخت هغه ته دَهغې دَ ناجائزکیدو علم نه وو [۲]

علامه قسطلاني رحمه الله دَدې یوبنکلې جواب ورکړې هغه فرماني وقد روي لهذه القصة سببًا وهو أن هذا النبي مرعلى قرية أهلكها الله بذنوب أهلها فوقف متعجبا فقال: يارب كان فيهم صبيان، ودواب ومن لم يقترف ذنبا، ثم نزل تحت شجرة فجرت له هذه القصة، فنبهه الله على أن الجنس المؤذي يقتل وإن لم يؤذ، وتقتل أولاده وإن لم يبلغ الاذى، والحاصل أنه لم يعاتبه إنكارا لما فعل بل جوابا له وإيضاحًا لحكمة شمول الاهلاك لجميع أهل تلك القرية، فضرب له المثل بذلك أى إذا اختلط من يستحق الاهلاك بغيره وتعين اهلاك الجميع طريقًا إلى إهلاك المستحق جاز إهلاك الجميع. [۳]

یعنی دَ دې واقعه سبب داوو چه مذکوره نبی په یو داسې کلی باندې تیرشو دَکوم اوسیدونکی چه الله تعالیٰ دَهغوی دَ گناهونو دَ وجه نه هلاک کړې وو هغه دلته اودریدو اوپه حیرانتیا سره: ئې دَ الله تعالیٰ نه گیله اوکړه چه په دې کلی ماشومان خناور او داسې خلق هم وو چه دَ گناه ارتکاب ئې نه ووکړې بیاهغه دَ یوې ونې لاندې اودریدو په حدیث باب کښې چه کومه واقعه بیان کړې شوې ده هغه هم دلته پیښه شوه چه هغه دَ یومیږی په چیچلو سره: قصاص دَ میږو سوړې اوسیزلې ټول ئې هلاک کړل دا یوه تکویني واقعه وه الله تعالیٰ دَدې واقعه په ذریعه هغه خبردارکړو چه کوم جنس بالطبع موذی وی سره دَدې چه هغه بالفعل تکلیف ورنه کړی دَهغه قتل جائزدې اودَهغه دَ بچوقتل هم جائزدې سره دَدې چه په هغوی کښې دَتکلیف رسولوصلاحیت پیداشوې نه وی دَ کلام حاصل دادې چه دَ نبی دَ فعل دَ وجه نه عتاب نه دې شوې چه تاله داسې نه ووکول پکار بلکه په دغه عتاب سره دَهغه دَ سوال جواب ورکړې شو او کوم هلاکت چه دَ کلی والو احاطه اوکړه دَهغې حکمت واضح کول مقصودوو الله تعالیٰ دا واقعه دَ مثال په توګه پیش کړه چه کله دَ هلاکت مستحق او غیرمستحق یوخائی وی اودافیصله اوشی چه دَ هلاکت مستحق برباد کولودپاره دَ ټولو دَ هلاکولونه بغیربل خه لارنشته نو په داسې صورت کښې ټول هلاک کول جائزکیږی

---

[۱] شرح الکرماني: ۱۳/۲۸.
[۲] عمدة القاري: ۱٤/۳۷۲.
[۳] إرشادالساري: ٦/٤٩٤.

## باب ۱۵۱: حرق الدور والنخیل

**دَ ترجمة الباب مقصد** - امام بخاری رحمه الله دلته داخودل غواړی چه دَ ضرورت په وخت کورونه اودَ کهجورو ونې سوزول جائز دی (۱)

**حرق** - دَ حاز براوراء سکون سره، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دَ صحیح بخاری په تولو نسخو کښې دالفظ هم دغه شان ضبط کړې شوې دې خودا ضبط محل نظر دې ځکه چه دَدې مادې مصدر حرق نه راځی چونکه دا رباعی ده په دې وجه به دَدې مصدر تحریق یا احراق راځی ممکن دی چه په اصل کښې دَ راء په تشدید سره دَ ماضی صیغه وه او په دې صورت کښې دَ حدیث باب مطابق هم جوړیږی. په دې صورت کښې به دَ حرق فاعل محذوف وی دور او نخیل دَ مفعول کیدو دَ وجه نه منصوب وی او تقدیر عبارت به شی: حرق النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بفعله أو بإذنه. (۲)

علامه عینی رحمه الله په دې باندې رد کولوسره فرمائی چه مذکوره ضبط ته دَ حافظ ابن حجر رحمه الله محل نظر وئیلو په ځائې پخپله محل نظر دې. حافظ ابن حجر رحمه الله دا تصریح نه ده کړې چه دا لفظ داسې نساخ ضبط کړې دې یامشائخ فن؟ که چرې نساخ ضبط کړې دې نو دَ هغوی دَ ضبط څه اعتبار نشته اوکه چرې مشائخ فن ضبط کړې وی نو بیا دا ضبط صحیح دې چه حرق به په دې صورت کښې دَ احراق نه اسم مصدر وی نه چه مصدر (۳)

بله خبره داده چه حافظ صاحب تحریق ته رباعی وئیلې حالانکه دَ فن صرف په اصطلاح کښې دَ رباعی اطلاق په داسې لفظ باندې کیږی دَ کوم چه څلور حروف اصلی وی. صحیح خبره داده چه تحریق ثلاثی مزید فیه دې (۴)

[حدیث نمبر ۲۸۵۷] (۵) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسُ بْنُ أَبِي حَازِمٍ قَالَ قَالَ لِي جَرِيرٌ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «أَلاَ تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ». وَكَانَ بَيْتًا فِي خَثْعَمَ يُسَمَّى كَعْبَةَ الْيَمَانِيَةِ قَالَ فَانْطَلَقْتُ فِي خَمْسِينَ وَمِائَةِ فَارِسٍ مِنْ أَحْمَسَ، وَكَانُوا أَصْحَابَ خَيْلٍ - قَالَ - وَكُنْتُ لاَ أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ،

---

(۱) عمدة القاری: ۴۷۲/۱۴.

(۲) فتح الباری: ۱۹۰/۶.

(۳) عمدة القاری: ۴۷۲/۱۴.

(۴) عمدة القاری: ۴۷۲/۱۴.

(۵) أخرجه البخاری أیضًا: ۴۲۶/۱ فی الجهاد باب من لایثبت علی الخیل رقم: ۳۰۳۶ باب البشارة فی الفتوح رقم: ۳۰۷۶ و ۵۳۹/۱ فی مناقب الانصار. باب ذکر جریر بن عبدالله البجلی رضی الله عنه رقم: ۳۸۲۳ و ۶۶۴/۲ فی المغازی باب غزوة ذی الخلصة رقم: ۴۳۵۵ - ۴۳۵۷ و ۸۹۸/۲ فی الادب. باب التبسم والضحک رقم: ۶۰۸۹ وفی الدعوات باب قول الله تبارک وتعالی ﴿وصل علیهم﴾ ومن خص بالدعاء دون نفسه رقم: ۶۳۳۳ وعندأبی داؤد: ۲۶/۲ فی الجهاد باب فی بعثة البشراء رقم: ۲۷۷۲.

فَضَرَبَ فِي صَدْرِي حَتَّى رَأَيْتُ أَثَرَ أَصَابِعِهِ فِي صَدْرِي وَقَالَ «اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا». فَانْطَلَقَ إِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَحَرَّقَهَا، ثُمَّ بَعَثَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ۔صلی الله علیه وسلم۔ يُخْبِرُهُ فَقَالَ رَسُولُ جَرِيرٍ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ، مَا جِئْتُكَ حَتَّى تَرَكْتُهَا كَأَنَّهَا جَمَلٌ أَجْوَفُ أَوْ أَجْرَبُ. قَالَ فَبَارَكَ فِي خَيْلِ أَحْمَسَ وَرِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ. [۲۸۷۱، ۲۹۱۱، ۳۶۱۱، ۳۰۹۷_۵۰۹۹، ۴۰۹۹، ۵۷۳۸، ۵۹۷۴]

## رجال الحدیث

① **مسدد**:- دا مسدد بن مسرهد بن مسربل اسدی رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیرشوی دی. [1]

② **یحیی**: دا یحیی بن سعید قطان رحمه الله دي دَدوی تذکره هم کتاب الایمان کښې تیره شوې ده. [2]

③ **اسماعیل**:- دا اسماعیل بن ابی خالد احمسی بجلی رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې تیرشوی دی. [3]

④ **قیس بن ابی حازم**:- دا مشهور تابعی قیس بن ابی حازم احمسی بجلی رحمه الله دي. دَ دوی حالات کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم الدین النصیحة لله ولرسوله ولائمة المسلمین وعامتهم لاندې تیرشوی دی. [4]

⑤ **جریر**:- دا حضرت جریر بن عبدالله احمسی بجلی رضي الله عنه دي. دَدوی حالات هم مذکوره کتاب اوباب لاندې تیرشوی دی. [5] دا روایت وړاندې کتاب الجهاد کښې باب البشارة فی الفتوح لاندې او کتاب المغازی کښې په تفصیل سره راروان دې. [6] په دې روایت کښې دَ ذوالخلصة ذکر دې چه دَ قبیله دوس او خثعم بت وو او ودغې ته به ئی کعبه یمانیه ونیل رسول الله ﷺ دَدې دَ نړولو دَپاره جریر بن عبدالله رضي الله عنه اولیګلو او هغه دا مات کړو او وئی سوزولو

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- په روایت کښې دَفانطلق إلیها فکسرها وحرقها ترجمة الباب سره دَدې مناسبت ښکاره دې.

[1] کشف الباری: ۲/۲.
[2] کشف الباری: ۲/۲.
[3] کشف الباری: ۱/۲۷۹.
[4] کشف الباری: ۲/۷۶۱.
[5] کشف الباری: ۲/۷۶۱.
[6] کشف الباری: کتاب المغازی باب غزوة ذی الخلصة ص: ۵۷۳ – ۵۷۷.

[حديث نمبر ۲۸۵۸] [1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ حَرَّقَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - نَخْلَ بَنِى النَّضِيرِ. [ر ۲۲۰۱]

## رجال الحديث

① **محمدبن كثير** - دامحمدبن كثير عبدى بصرى ﷫ دي. دَدوى حالات كتاب العلم باب الغضب فى الموعظة والتعليم إذا رأى مايكره لاندې تيرشوي دى. [2]

② **سفيان** - دا ابومحمدسفيان بن عيينه كوفى ﷫ دي. دَدوى تذكره كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا... لاندې تيره شوې ده. [3]

③ **موسى بن عقبه**:- دا موسى بن عقبه اسدى مدنى ﷫ دې. دَدوى حالات وړاندې تيرى شوى دى. [4]

④ **ابن عمر** ﷻ - دَدوى حالات كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بنى الاسلام على خمس لاندې تيرشوى دى. [5]

**قوله**: حرق النبى صلى الله تعالى عليه وسلم نخل بنى النضير - حضرت ابن عمر ﷻ فرمائى رسول اكرم ﷺ د بنونضير د كهجورو ونې اوسوزولې

**دَ دښمن دَ كورونواو ونو دَ تحريق مسئله**- علامه خرقى فرمائى چه دَدښمن دَ ونو او فصلونو سوزول جائزنه دى اوكه چرې دښمن دَ مسلمانانو په زمكوكښې دَدې تحريق كوى نو دَ تنبيه په توګه دَهغوى په زمكه كښې داسې كول جائزدى دې دپاره چه بيادښمن هم دَتحريق نه منع شى [6] موفق الدين ابن قدامة ﷫ دَ فصلونو او ونو مختلف قسمونه بيانولوسره دَهرقسم حكم بيان كړې دې هغه فرمائى چه دَ فصل اوونودرې قسمونه دى.

① دَ دښمن دَ قلعه ګانونه چاپيره ونې اوفصلونه چه دَهغوى په قتل كښې بنديز جوړيږى يا دښمن دَ ونو په شا دَ مسلمانانونه پټيږى يادَ لاړو ارتولودپاره دَ ونو پرې كولو ضرورت وى يا دښمنان دَ مسلمانانو فصلونه او ونې تباه كوى نو په دې ټولو صورتونو كښې بغيردَ اختلاف دَ فقهاؤ دَدښمن ونې او فصلونه ختمول جائزدى

---

[1] ) مرتخريجه فى كتاب الحرث والمزارعة باب قطع الشجرة والنخل:۲۳۲۶.

[2] ) كشف البارى:۵۳۶/۳.

[3] ) كشف البارى: ۱۰۲/۳.

[4] ) كتاب العلم باب العلم والفتيافى المسجد.

[5] ) كشف البارى:۶۳۷/۱.

[6] ) المغنى لابن قدامة:۵۰۱/۱۰ (۷۵۸۴) وأوجزالمسالک: ۸۰/۹ كتاب الجهاد دارالقلم.

② كه د ونو او فصلونو په پريخودو كښې د مسلمانانو فائده او په تلف كولو كښې نقصان وي نو ذفقندي مطلب دا دې چه په دښمن باندې د غلبه موندلو نه پس مسلمانان د هغوی د ونو د سوزو نه خوندونه واخلي او د هغوی خاروو ته به كيا حاصله شي نو په دې صورت كښې د ونو او فصلونو ختمول جائزنه دي دغه شان كه چرې اهل اسلام او دښمنانو په مينځ كښې د جنګ دوران كښې دې څيزونو ته د نقصان رسيدو رواج نه وي نو په دا سې صورت كښې هم ونو او فصلونو ته نقصان رسول جائزنه دي ښكاره خبره ده چه د ردعمل په توګه به دښمن هم د مسلمانانو په علاقو باندې د حمله كولو نه پس د هغوی ونو او فصلونو ته نقصان رسوی

③ دريم او آخری صورت دا دې چه د ونو او فصلونو په تباه كولو كښې د مسلمانانو څه فائده نه وي او نه څه نقصان وي او مقصد نې صرف دښمن ته نقصان او دهوكه وركول وي نو په دې صورت كښې اختلاف دې (١)

**د جمهورفقهاء مسلک او دهغوی استدلال:-** جمهورفقهاء امام شافعي امام مالك امام احمد اسحاق ثوری او امام ابوحنيفه رحمهم الله په نيز د دښمن د ونو فصلونو او كورونو تحريق جائز دې (٢) د دوی استدلال د احاديث باب نه دې په رومبی روايت كښې دی چه جرير بن عبدالله ﷺ ذوالخلصة ورانولو سره اوسوزله په دويم روايت كښې تصريح ده چه رسول الله ﷺ د بنونضير د كهجورو ونې سوزولې وې د ابن عمر ﷺ د روايت نه استدلال كولو جمهور وائي چه دا روايت په دې خبره دلالت كوی چه د دښمن شوكت ختمولو او په هغوی غلبه موندلو د پاره مسلمانانوله د هغوی ونې پرې كول او په خرابول د هرطرف نه هغوی راګيرول او هرهغه تدبيراختيارولو اجازت دې په كوم سره چه د هغوی ملامانه شي (٣)

**د امام اوزاعی ليث بن سعد او ابوثورمسلک او دهغوی استدلال:-** امام اوزاعی ليث بن سعد او ابوثور رحمهم الله په نيز د دښمن ونې او كورونو سوزول او خرابول مكروه دی (٤) د دوی استدلال په موطا امام مالك كښې د يحيی بن سعيد روايت دې په هغې كښې تصريح ده چه ابوبكر ﷺ د شام طرف ته مختلف لښكرې ليګلې وې په هغوی كښې يزيدبن ابوسفيان د يو لښكر امير جوړولو سره هغه ته وصيت كړې وو **ولاتقطعن شجرا مثمرا ولا تخربن عامرا** (٥) يعنی د ميوو والا ونې قطعاً مه كټ كوئي او آبادی كله هم مه ورانه ونی

**د امام اوزاعی وغيره د استدلال جواب:-** ① علامه طبری ﷺ د دې استدلال دا جواب وركړې دې چه ابوبكر ﷺ اصالتا او قصداً د تحريق نه منع كړې وو كه دوران جنګ كښې د دښمن

---

(١) المغنی لابن قدامة: ١٠/٥٠١. ٥٠٢ (٧٥٨٤) وأوجزالمسالک: ٩/٨٠ – ٨١.
(٢) الام للامام الشافعي: ٧/٣٥٦ وشرح ابن بطال: ٥/١٨١.
(٣) عمدة القاری: ١٤/٣٧٥.
(٤) المغنی لابن قدامة: ١٠ ٥٠٢ وشرح ابن بطال: ٥/١٨١ وعمدة القاری: ١٤/٣٧٥.
(٥) موطاامام مالک ﷺ ص: ٣٦٥ – ٣٦٦ كتاب الجهاد باب النهی عن قتل النساء والولدان فی الغزو. نور اوګورئي: المغنی لابن قدامة: ١٠/٥٠٢ وفتح الباری: ٦/١٩١ وعمدة القاری: ١٤/٣٧٤.

مغلوب كولو او بنكته كولو د پاره اتفاقاً د تحريق ضرورت پيښ شي نو هيڅ بدى نشته [1]

④ امام شافعى دا جواب وركړې دې چه حضرت ابوبكر رضي الله عنه رسول الله ﷺ داسې فرمانيلو سره اوريدلي ووچه د شام په ملك باندې به د مسلمانانو فتح وى په دې وجه هغوى د مسلمانانو د فائدې د خاطره يزيدبن ابوسفيان د تحريق او ونو پرې كولو نه منع كړې وه [2] مطلب دادې چه ابوبكرصديق رضي الله عنه ته په دغه پيشنګوئى باندې يقين وو چه په شام باندې به د اسلام لښكر غلبه بيامومى او دهغه خائى ونې او فصلونه به د مسلمانانو په قبضه كښې راځى نو كه ونې پرې كړې شوې او اوسوزولې شوې نو په راتلونكى وخت كښې به هم د مسلمانانو نقصان وى په دې وجه هغوى د تخريب او تحريق نه منع اوفرمائيله.

**ترجمة الباب سره مطابقت:** - د ابن عمر رضي الله عنهما په حديث باب كښې د بنونضير د باغونو د تحريق ذكر دې. ترجمة الباب سره د دې مطابقت واضح دې.

## باب ۱۵۲: قتل النائم المشرك

**د ترجمة الباب مقصد:** - امام بخارى رحمه الله دلته داخودل غواړى چه د اوده شوى مشرك قتل جائزدې

[حديث نمبر ۲۸۵۹- ۲۸۶۰] [3] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّاءَ بْنِ أَبِي زَائِدَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رضى الله عنهما - قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - رَهْطًا مِنَ الأَنْصَارِ إِلَى أَبِي رَافِعٍ لِيَقْتُلُوهُ، فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَدَخَلَ حِصْنَهُمْ قَالَ فَدَخَلْتُ فِي مَرْبِطِ دَوَابَّ لَهُمْ، قَالَ وَأَغْلَقُوا بَابَ الْحِصْنِ، ثُمَّ إِنَّهُمْ فَقَدُوا حِمَارًا لَهُمْ، فَخَرَجُوا يَطْلُبُونَهُ، فَخَرَجْتُ فِيمَنْ خَرَجَ أُرِيهِمْ أَنَّنِي أَطْلُبُهُ مَعَهُمْ، فَوَجَدُوا الْحِمَارَ، فَدَخَلُوا وَدَخَلْتُ، وَأَغْلَقُوا بَابَ الْحِصْنِ لَيْلاً، فَوَضَعُوا الْمَفَاتِيحَ فِي كَوَّةٍ حَيْثُ أَرَاهَا، فَلَمَّا نَامُوا أَخَذْتُ الْمَفَاتِيحَ، فَفَتَحْتُ بَابَ الْحِصْنِ ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ. فَأَجَابَنِي، فَتَعَمَّدْتُ الصَّوْتَ، فَضَرَبْتُهُ فَصَاحَ، فَخَرَجْتُ ثُمَّ جِئْتُ، ثُمَّ رَجَعْتُ كَأَنِّي مُغِيثٌ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ، وَغَيَّرْتُ صَوْتِي، فَقَالَ مَا لَكَ لأُمِّكَ الْوَيْلُ قُلْتُ مَا شَأْنُكَ قَالَ لاَ أَدْرِي مَنْ دَخَلَ عَلَيَّ فَضَرَبَنِي. قَالَ فَوَضَعْتُ سَيْفِي فِي بَطْنِهِ، ثُمَّ تَحَامَلْتُ عَلَيْهِ حَتَّى قَرَعَ الْعَظْمَ، ثُمَّ خَرَجْتُ وَأَنَا دَهِشٌ، فَأَتَيْتُ سُلَّمًا لَهُمْ لأَنْزِلَ مِنْهُ فَوَقَعْتُ فَوُثِئَتْ رِجْلِي، فَخَرَجْتُ إِلَى أَصْحَابِي فَقُلْتُ مَا أَنَا بِبَارِحٍ حَتَّى أَسْمَعَ النَّاعِيَةَ، فَمَا بَرِحْتُ حَتَّى سَمِعْتُ نَعَايَا أَبِي رَافِعٍ تَاجِرِ أَهْلِ الْحِجَازِ. قَالَ فَقُمْتُ وَمَا بِي قَلَبَةٌ حَتَّى أَتَيْنَا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرْنَاهُ.

[1] ) شرح ابن بطال:۱۸۱/۵ وفتح البارى:۱۹۱/۶ وعمدة القارى: ۱٤/۳۷٤ – ۳۷۵.

[2] ) الام للامام الشافعى:۳۵۷/۷.

[3] ) اخرجه البخارى أيضًا فى الجهاد متصلا بعدهذا الحديث رقم:۳۰۲۳ وفى المغازى باب قتل أبى رافع عبدالله بن أبى حقيق رقم:۴۰۳۸ – ٤٤٤۰ وقد تفرد به البخارى رحمه الله.

## رجال الحدیث

① **علی بن مسلم**:- دا یحیی بن مسلم بن سعید ابوالحسن الطوسی رحمه الله دي. دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده.[1]

② **یحیی بن زکریا**:- دا ابوزائده یحیی بن زکریا کوفی رحمه الله دي. دَدوی تذکره هم وړاندې تیره شوې ده.[2]

③ **ابی**:- دَدې نه دَ یحیی پلار زکریابن ابی زائده مراد دې. دَدوی حالات کتاب الایمان باب فضل من استبرأ لدینه لاندې تیرشوی دی.[3]

④ **ابواسحاق**:- دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید سبیعی دې دَ دوی تذکره کتاب الایمان باب الصلوة من الایمان لاندې تیره شوې ده.[4]

⑤ **براء بن عازب رضی الله عنه**:- دا مشهورصحابی حضرت براء بن عازب بن الحارث حارثی دوسی رضی الله عنه دي. دَدوی تذکره په مذکوره کتاب اوباب کښې تیره شوې ده.[5]

کتاب المغازی کښې دا روایت په تفصیل سره راروان دې په هغې کښې ابورافع عبدالله بن ابی حقیق دَ قتل بیان دې. عبدالله بن عتیك رضی الله عنه دَ ابورافع په کورکښې ورننوتلو دَ شپې په تیاره کښې ئې په بستره باندې قتل کړې وو. دَ قتل دامنصوبه هغه دَ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په اجازت سره جوړه کړې وه. امام بخاری رحمه الله هم دې واقعه کښې دَ خوب په حالت کښې دَ مشرك دَ قتل په جواز باندې استدلال کړې دې.

[حدیث نمبر ۲۸٦۰] حَدَّثَنِي عَبْدُاللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ - رضی الله عنهما - قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ - صلی الله علیه وسلم - رَهْطًا مِنَ الأَنْصَارِ إِلَى أَبِي رَافِعٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُاللّٰهِ بْنُ عَتِيكٍ بَيْتَهُ لَيْلاً، فَقَتَلَهُ وَهُوَ نَائِمٌ.[۳۸۱۲، ۳۸۱۴]

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن محمد**:- داابوجعفر عبدالله بن محمدبن عبدالله بن جعفربن الیمان جعفی بخاری رحمه الله دي. دَدوی تذکره کتاب الایمان باب امور الایمان لاندې تیره شوې ده.[6]

---

[1] کتاب الحج باب ذات عرق لاهل العراق.

[2] کتاب الوصایا باب قول الله تعالی ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾.

[3] کشف الباری:۲/٦۷۳.

[4] کشف الباری:۲/۳۷۰.

[5] کشف الباری:۲/۳۷۵.

[6] کشف الباری:۱/٦۵۷.

④ **يحيى بنادم** - دا يحيى بن آدم بن سليمان الاموى رحمه الله دې. دَدوى تذكره تيره شوې ده.[1]
دَ باقى رجال دَ سند تذكره دَباب په رومبى روايت كښې راغلې ده

**بعث رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم رهطا من الانصار إلى أبي رافع فدخل عليه عبدالله بن عتيك بيته ليلا فقتله وهو نائم**

روايت كښې دى چه رسول اكرم ﷺ يوڅو صحابه كرام ابورافع ته اوليګل حضرت عبدالله بن عتيك رضي الله عنه دَ شپې دَهغه په كوركښې داخل شو او په اوده باندې ئې هغه قتل كړو په دې روايت كښې تصريح ده چه عبدالله بن عتيك رضي الله عنه ابورافع په اوده وقتل كړو.

**بيته** - دَباء فتحه او ياء په سكون سره. دَدې معنى ده كور منزل. مطلب دادې چه عبدالله بن عتيك رضي الله عنه دَ شپې دَ ابورافع كوركښې ننوتلو. دَحموى اومستملى په روايت كښې دا ي، تشديدسره بَيَّتَهُ دې. په دې صورت كښې به دا لفظ دَ تبييت نه وى اودَ تبييت معنى دَ شپې په وخت په دښمن باندې حمله كول دى.[2] مطلب دا چه عبدالله بن عتيك رضي الله عنه ابورافع دَ شپې په وخت قتل كړې وو.

دَ باب په دواړو روايتونوكښې دَ ابورافع دَ قتل قصه بيان كړې شوې ده. امام بخارى رحمه الله رومبې روايت اوږد او دويم مختصرذكركړې دې. رومبې روايت دَعلى بن مسلم په طريق او دويم دَعبدالله بن محمد په طريق سره. په دواړوكښې فرق دې چه په رومبى روايت كښې امام بخارى رحمه الله اودَهغوى شيخ يحيى بن زكريا رحمه الله په مينځ كښې على بن مسلم صرف هم يو واسطه ده او په دويم كښې عبدالله بن محمد او يحيى بن آدم دوه واسطې دى.

**دَحديث باب نه مستنبط فوائد:** - شراح حديث دَدې روايت نه مختلف فوائد مستنبط كړى دى
① دَمشركانو جاسوسى كول اودَهغوى دَ غفلت نه فائده اوچتول او تكليف وركونكوباندې په بخبرئى كښې حمله كول جائزدى.[3]

② ابورافع به رسول الله ﷺ سره دښمنى لرله او نورخلق به ئى هم په دې باندې تيارول هم په دې وجه هغه قتل كړې شو. دَدې نه معلومه شوه چه كه يوداسې مشرك ته دَ اسلام دعوت وړاندې رسيدې وى نوهغه ته بيا دعوت وركولونه وړاندې هغه قتل كول جائزدى خو په اوده باندې دَمشرك قتل هغه وخت جائز كيږى چه كله دَ وحى يا قرائن يا آثارنه دا معلومه شى چه هغه په خپل كفرباندې په سختئى سره كلك ولاړدې او دَده خو هډو دَمسلمانيدو اميدنه وو.[4]
③ دريمه خبره دَدې روايت نه دا معلومه شوه چه په جنګ كښې سختى اختيارول دَ دښمن دَ انبوه كثيره نه تعارض كول اودَالله تعالى په لاركښې خپل خان په هلاكت كښې اچول جائزدى.[5]

---

[1] ) كتاب الغسل باب الغسل بالصائغ ونحوه.
[2] ) إرشادالساري:٤٩٨/٦ وعمدة القاري:٣٧٩/١٤.
[3] ) شرح ابن بطال:١٨٣/٥ وفتح الباري:١٩٢/٦ وعمدة القاري:٣٧٨/١٤.
[4] ) فتح الباري:١٩٢/٦.
[5] ) شرح ابن بطال:١٨٣/٥.

**ترجمة الباب سره مطابقت** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى وهى ظاهرة فيما ترجم له، لان الصحابى طلب قتل أبى رافع وهو نائم، وإنما ناداه ليتحقق أنه هو، لئلا يقتل غيره ممن لاغرض له إذا ذاك فى قتله وبعد أن أجابه كان فى حكم النائم، لانه حينئذ استمر على خيال نومه. بدليل أنه بعد أن ضربه لم يفر من مكانه، ولاتحول من مضجعه حتى عاد إليه فقتله (١)

يعنى ترجمة الباب سره د حديث مطابقت ظاهر دې څكه چه عبدالله بن عتيك رضى الله عنه ابورافع په اودو قتل كول غوښتل ابورافع ته هغه آوازونه څكه وركړې ووډې دپاره چه دا يقين اوشى چه دا هم ابورافع دې دده په ځائى بل څوك قتل نه كړې شى د كوم په قتل سره چه د هغه دغه وخت كښې هيڅ غرض نه وو د عبدالله بن عتيك رضى الله عنه د آواز جواب وركولو نه پس ابورافع د نائم په حكم كښې وو هغه وخت دې دوباره پوخ خوب كښې لاړو ددې دليل دادې چه د عبدالله بن عتيك رضى الله عنه د توري زومبې ګذار خوړلونه پس ابورافع نه خودځپل ځائى نه اوتختيدو اونه د خپلې بسترې نه اخوا ديخوا اوخوزيدو تردې چه ابن عتيك رضى الله عنه په دويم ځل راغلو قتل ئې كړو

## باب ١٥٣: لاتمنوالقاء العدو

**د ترجمة الباب مقصد**:-ددې باب لاندې امام بخارى رحمه الله دا خودل غواړى چه د دښمن د مقابله خواهش او تمنا كول جائزنه دى. (٢)

[حديث نمبر ٢٨٦١-٢٨٦٢] (٣) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ يُوسُفَ الْيَرْبُوعِيُّ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ كُنْتُ كَاتِبًا لَهُ قَالَ كَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي أَوْفَى حِينَ خَرَجَ إِلَى الْحَرُورِيَّةِ فَقَرَأْتُهُ فَإِذَا فِيهِ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْضِ أَيَّامِهِ الَّتِي لَقِيَ فِيهَا الْعَدُوَّ انْتَظَرَ حَتَّى مَالَتِ الشَّمْسُ . ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ فَقَالَ « أَيُّهَا النَّاسُ لاَ تَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ وَسَلُوا اللَّهَ الْعَافِيَةَ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلاَلِ السُّيُوفِ - ثُمَّ قَالَ - اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ وَمُجْرِيَ السَّحَابِ وَهَازِمَ الأَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ ».

## رجال الحديث

① **يوسف بن موسى**:- داابويعقوب بن موسى بن عيسى المروزى رحمه الله دې ددوى تذكره تيره شوې ده (٤)

---

١) فتح البارى: ٦/ ١٩٢.
٢) عمدة القارى: ١٤/ ٢٧٩.
٣) قد مر تخريجه فى الجهاد **باب الجنة** تحت بارقة السيوف رقم: ٢٨١٨.
٤) كتاب الجمعة باب هل على من لم يشهد الجمعة غسل من النساء والصبيان وغيرهم.

②**عاصم بن یوسف الیربوعی**:- دا ابوعمرو عاصم بن یوسف الیربوعی رحمه الله دې (۱) دوی د دې محدثینونه د حدیث روایت کړې دې ابواسحاق ،ابراهیم بن محمد الفزاری، اسرائیل بن یونس، حسن بن عیاش، حماد بن شعیب الحمانی، ابوالاحوص سلام بن سلیم او فضیل بن عیاض رحمهم الله دَدوی نه روایت کونکی تلامذه کښې ابوشیبه ابراهیم بن ابی بکر بن ابی شیبه ابراهیم بن القعقاع ابراهیم بن یعقوب الجوزجانی ابوعمرو احمدبن حازم ابوبکر احمدبن ابی خیثمه ابوبکر احمدبن محمدالبغدادی احمدبن منصور اواحمد بن یوسف السلمی غونډې اعلام حدیث شامل دی. (۲)

امام بخاری رحمه الله اودَدوی نه علاوه امام نسائی او امام ترمذی رحمهما الله هم دَدوی نه روایات اخستی دی. (۳) ټولوائمه دَ جرح اوتعدیل دَدوی توثیق کړې دې. (۴)

③**ابواسحاق الفزاری**:- دا ابراهیم بن محمد الفزاری رحمه الله دې دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۵)

④**موسٰی بن عقبه**:- داموسٰی بن عقبه الاسدی المدنی رحمه الله دې. دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۶)

⑤ **سالم ابوالنضر**:- دا ابوالنضرسالم بن امیه المدنی القرشی التمیمی رحمه الله دې دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۷)

⑥ **عبدالله بن ابی اوفی** رضی الله عنه:- دامشهورصحابی دې. دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده. (۸)

**کنت کاتبا له**:- دَ له دَ ضمیرمرجع عمربن عبدالله دې. سالم ابوالنضرداوئیل غواړی چه زهٔ دَ عمربن عبدالله کاتب وو. هم دغه روایت امام بخاری رحمه الله **باب الجنة تحت بارقة السیوف** لاندې نقل کړې دې. اوهلته علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه "ه" ضمیردَ عبدالله بن ابی اوفی طرف ته راجع دې. علامه قسطلانی رحمه الله دلته فرمائیلی دی چه دَ ترجمة الباب ددې روایت نه دَدغه دواړوحضراتو دَ قول تغلیط کیږی. ځکه چه دلته سالم پخپله تصریح کړې ده چه هغه دَعمربن عبدالله کاتب وو. لهذا داوینا کول چه دَ له ضمیرمرجع عبدالله بن ابی اوفی دې صحیح نه ده. (۹)

---

[1] ) الثقات لابن حبان:۵۰۸/۸.
[2] ) دَ شیوخ او تلامذه دَتفصیل دَپاره اوګورئی تهذیب الکمال: ۵۴۹/۱۳.
[3] ) تهذیب الکمال:۵۵۰/۱۳.
[4] ) الثقات لابن حبان:۵۰۸/۸ والجرح والتعدیل رقم الترجمة: ۱۹۴۰ وتهذیب التهذیب:۶۰/۵.
[5] ) کتاب الجمعة باب القائلة بعدالجمعة.
[6] ) کتاب الوضوء باب اسباغ الوضوء.
[7] ) کتاب الوضوء باب المسح علی الخفین.
[8] ) کتاب الوضوء باب من لم یری الوضوء إلا من المخرجین.
[9] ) إرشاد الساری:۵۰۰/۶.

أن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم في بعض أيامه.....
سالم ابوالنضر وائي چه كله هغه عمربن عبدالله سره د خارجيانوسره د جنگ دپاره اووتلو نو دعبدالله بن ابى اوفى د طرف نه چه كوم خط راغلو هغه ما لوستلې وو په هغې كښې ليكلى وو رسول الله ﷺ دښمن سره د جنگ په ورځو كښې د زوال آفتاب انتظار كولو د نمر د زوال نه پس يخه هواچليږى په بدن كښې تازه والې پيدا كيږى په دې وجه رسول الله ﷺ د جنگ شروع دپاره د زوال انتظار اوكړو (١). شارحينو ددې نور هم حكمتونه بيان كړى باب كان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم إذا لم يقاتل أول النهار أخر القتال حتى تزول الشمس لاندې د دې تفصيل تير شوې دې.

**قوله**: ثم قام في الناس فقال: لاتمنوا لقاء العدو وسلوا الله العافية: بيا حضورپاك ﷺ خلقوته خطاب فرمائيلوسره اوونيل ايها الناس! دښمن سره دمقابله كولو خواهش مه كوئى بلكه دالله تعالى د امن اوعافيت دعاكوئى. دلته اشكال پيداكيږى چه دښمن سره د مقابله كولو خواهش كول جهاد دې. اوښكاره خبره ده چه جهادطاعت دې نوحضورپاك بيا د طاعت د خواهش كولونه ولې منع اوفرمائيله؟

ددې جواب دادې چه سړى ته خپل انجام معلوم نه وى اوداامكان يقيناً مسترد كولې نه شى چه هغوى به په كلكه دشمن سره د جنگ او كاميابيدوپه اراده سره مقابله دپاره اوځى خو په عين وخت كښې هغوى ته دخپل غزائم او ارادو د پوره كولوموقع ملاؤنه شى اودموانع او شدائد رفع كيدل اود اسباب پيداكيدل دهغوى په اختياركښې نه وى. بلكه حقيقت خودادې چه خپل اندامونه او جوارح اوبه خپلو ارادو باندې دهغوى هيڅ تصرف نه وى. مشهوره واقعه ده چه په غزوه خيبركښې يوسړې په وينو رنگ ښنگ وو اودزخمونوطاقت نه لرلود وجه نه هغه خودكشى اوكړه. (٢)

دا واقعه د دې خبرې دليل دې چه سړې دخپل انجام نه بې خبره وى هغه ته پته نه لگى چه په سختو اومصيبتونوكښې به هغه تركومې صبركولې شى. هغه ته معلومه نه وى چه په جنگ كښې به هغه ثابت قدم وى كه تختى به؟ د الله تعالى د رضادپاره به جنگيږى كه د ريا اوسمعه دپاره؟ په جنگ كښې به د شريعت د احكامو التزام اوكړې شى اووكه نه؟

دويمه وجه داده چه دښمن سره دمقابله تمناكولوكښې د عجب شائبه ده په دې سره لكه چه په خپل نفس اوقوت باندې يقين اوتوكل اوددښمن د كمزورى ښكاريدو تاثرملاويږى. په دې وجه حضورپاك د دښمن د مقابله خواهش كولونه منع كړې اودعافيت او سلامتئى د دعا تلقين اوكړو (٣) حضرت ابوبكرصديق ؓ بنه فرمائيلى لان أعافى فاشكر أحب إلى من ان ابتلى

---

(١) فتح البارى: ١٤٩/٦ باب كان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم إذا لم يقاتل أول النهار أخر القتال حتى تزول الشمس

(٢) إرشاد السارى: ٤٩٩/٦.

(٣) فتح البارى: ١٩٣/٦ إرشاد السارى: ٦٩٩/٦ وتكملة فتح الملهم: ٣٤/٣.

فاصبر (١) عافيت كښې اوسيدل او په دې شكرادا كول زمادډې نه ډيرخوښ دى چه په څه مصيبت كښې اخته شم او په هغې باندې صبراوكړم حضرت على رضي الله عنه خپل خوني ته اووئيل

لاتدع أحدا إلى المبارزة ومن دعاك إليها فاخرج إليه لأنه باغ، والله قد ضمن نصر من بغى عليه. (٢)

يعنى چاته د جنګ دعوت مه وركوه خوكه تاله څوك د جنګ دعوت دركړى نوهغوى سره جنګيږه ځكه چه هغه باغى دې اوالله تعالى دباغيانو د جنګ كونكود نصرت او امداد ضمانت وركړې دې.

**دښمن ته د جنګ دعوت وركولوحكم:-** حسن بصرى رحمه الله د حديث باب نه استدلال كولوسره فرمائيلى چه دښمن ته د جنګ دعوت وركول مكروه دى (٣) د امام ثورى اوزاعى احمدبن حنبل او اسحاق بن راهويه رحمهم الله هم دغه رائې ده. (٤) علامه ابن منذر فرمائيلى دښمن له د اميريه اجازت سره دعوت مبارزت وركول جائزدى. په دې باندې هغه اجماع نقل كړې ده (٥) دامام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله په نيز دعوت مبارزت وركول جائزدى. او په دې كښې داميراجازت هم ضرورى نه دې. (٦) دامام مالك رحمه الله نه د داسې مجاهد باره كښې تپوس اوكړې شوچه د صف د مينځ نه "من يبارز" چغه اوچته كړى اودښمن ته د مبارزت دعوت وركړى چه څوك دې چه ماسره مقابله اوكړى؟ نوامام جواب وركړو ذلك إلى نيته، إن كان يريد بذلك وجه الله تعالى فارجوأن لايكون به باس، قدكان فعل ذلك من مضى. (٧) مطلب دادې چه د مجاهدپه نيت باندې موقوف دى كه چرې په دعوت مبارزت سره دهغه مقصد دالله تعالى رضاحاصلول وى نوزما اميددې چه داسې كولوكښې هيڅ حرج نشته اسلاف هم دا طريقه اختيار كړې وه.

چنانچه انس بن مالك رضي الله عنه روايت دې چه براء بن مالك مرزبان ته د مبارزت دعوت وركړو اوهغه ئې قتل كړو. (٨) دغه شان ابوقتاده رضي الله عنه وائى چه د حنين په ورځ ما يوسړى ته دمقابله دعوت وركړو اوقتل مې كړو نورسول الله ﷺ دهغه مال اسباب ماته راكړل (٩) علامه ابن بطال رحمه الله فرمائى د ابوقتاده رضي الله عنه په روايت كښې دا تصريح نشته چه هغه د مبارزت دعوت د رسول الله ﷺ نه اجازت اخستې وو. (١٠)

---

١) شرح ابن بطال: ١٨٥/٥ فتح البارى:١٩٣/٦ إرشادالسارى:٤٩٩/٦ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٢) شرح ابن بطال:١٧٥/٥ إرشاد السارى:٤٩٩/٦ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٣) فتح البارى:١٩٣/٦.
٤) شرح ابن بطال:١٨٥/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٥) شرح ابن بطال:١٨٥/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٦) شرح ابن بطال:١٨٥/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٧) شرح ابن بطال:١٨٥/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
٨) شرح ابن بطال:١٨٦/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤ بل اوګورئى الاصابة فى تمييز الصحابة: ١٤٤/١.
٩) شرح ابن بطال: ١٨٦/٥ وعمدة القارى: ٣٨٠/١٤.
١٠) شرح ابن بطال:١٨٦/٥.

**قوله** فاذا لقیتموهم فاصبروا - کله چه دښمن سره ستاسو مقابله اوشی نو بیا د صبراو ثبت قدمنی نه کار اخله مطلب دا چه اول خود مقابله خواهش مه وه خو چه کله مقابله راشی نو بیا بیا نبه په بهادرنی سره جنګیږه ددې جمله تشریح وړاندې تیره شوې ده

**قوله** أن الجنة تحت ظلال السیوف - جنت د تورو د سوری لاندې دې د تورو د سوری د لاندې څه مطلب دې؟ په دې باندې تفصیلی بحث وړاندې تیرشوې دې

**قوله** ثم قال: اللهم منزل الکتاب، ومجری السحاب وهازم الاحزاب اهزمهم وانصرنا علیهم: بیاحضورپاك اوفرمائیل ای د قرآن پاك نازل کونکی ذاته اوریځې شړونکیه اوکافرانو لښکرو ته ماتې ورکونکیه دوی ته ماتې ورکړه اوددوې په مقابله کښې زمونږ امداد اونصرت اوکړه

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې دعاکښې رسول الله ﷺ د الله تعالی د نصرت د مختلف صورتونوطرف ته اشاره اوکړه د کتاب نه د قرآن مجیدآیت ﴿ قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ ﴾ طرف ته اشاره ده مجری السحاب نه د اوریځویه تسخیرکښې د الله تعالی د قدرت طرف ته اشاره ده اوهغه هواګانوته په خپله رضاباندې حرکت ورکوی خود هواد تیزو چیږ چلیدونه باوجود اوریځ کله د خپل ځائی نه بې حرکته پاتې وی کله د باران اوبه راووړه وی اوکله نه راووړی نود اوریځو په حرکت سره په جهادکښې د مجاهدینو په حرکت کښې امدادطرف ته اشاره ده. په خپل ځائې باندې حصارې اوریځوسره د اهل اسلام طرف ته وړاندې شوی لاسونه منع کولوطرف ته اشاره ده د انزال مطرنه د مال غنیمت د حصول طرف ته اشاره ده د هازم الاحزاب نه دې خبرې طرف ته اشاره ده چه په دعاکښې د مخکینو نعمتونو حواله هم ورکول پکاردی. د الله تعالی په ذات باندې پوره توکل کول اوداعقیده لرل پکاردی چه دهرڅه پوره کونکې هم هغه یوذات دې. بیاحافظ ابن حجر رحمه الله اوفرمائیل چه په دې دعاسره خبرداکړې شوی دی چه مسلمانانوته به درې لوئی نعمتونه ملاویږی

① د انزال کتاب نه اخروی نعمت حاصل شو دې نه مراد اسلام دې ② اجراء سحاب نه دنیوی نعمت حاصل شوې دې نه مراد رزق دې ③ هزیمه الاحزاب نه د مذکوره دواړه نعمتونو د تحفظ نعمت حاصلیدو طرف ته اشاره ده (۱)

احدیث نمبر ۲۸۶۲] وَقَالَ مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ كُنْتُ كَاتِبًا لِعُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ فَأَتَاهُ كِتَابُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى - رضی الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله علیه وسلم - قَالَ «لَا تَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ». [ر: ۲۶۶۳]

دا تعلیق نه دې بلکه په سابق سند باندې معطوف دې امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه دا

---

۱) فتح الباری: ۶/ ۱۹۳.

روایت هغوی سره صرف هم په یوسند سره طویل اومختصر دواړه شان مروی دي (۱) د ابوذر په نسخه کښې طویل اومختصر دواړه روایات ذکردی بعض حضراتو صرف مختصر روایت نقل کړې دي (۲)

[حدیث نمبر ۲۸۶۳] وَقَالَ أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا مُغِيرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لاَ تَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ، فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاصْبِرُوا».

## رجال الحدیث

① **ابوعامر**:- دا ابوعامرعبدالملك بن عمرو عقدی رحمه الله دي (۳) علامه کرمانی رحمه الله فرمائیلي چه کیدې شی داعبدالله بن براد اشعری دي. داد هغه وهم دي. (۴)

② **مغیره بن عبدالرحمن**: دامغیره بن عبدالرحمن حزامی رحمه الله دي د دوی تذکره تیره شوې ده (۵)

③ **ابی الزناد**:- داعبدالله بن ذکوان مدنی رحمه الله دي. د دوی تذکره کتاب الایمان باب حب الرسول من الایمان لاندې تیره شوې ده. (۶)

④ **اعرج**:- دا ابوداؤد عبدالرحمن بن هرمز مدنی رحمه الله دي. د دوی تذکره هم په مذکوره کتاب اوباب کښې تیره شوې ده. (۷)

⑤ **ابوهریره** رضی الله عنه:- د دوی تفصیلی تذکره کتاب الایمان با أمور الایمان لاندې تیره شوې ده (۸)

## باب ۱۵۴: الحرب خدعة

**د ترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه جنګ د دهوکې فریب او پټ چل ول نوم دې. دښمن ته ماتې ورکول اوښکته کولو دپاره داسې پټ چلونه کولو کښې هیڅ مضائقه اوبدیت نشته. والله اعلم.

[حدیث نمبر ۶۵-۲۸۶۴] (۹) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ

---

۱) فتح الباری:۶/ ۱۹٤. إرشادالساری:۶/ ۵۰۰.

۲) فتح الباری:۶/ ۱۹٤ وإرشادالساری:۶/ ۵۰۰.

۳) فتح الباری:۶/ ۱۹٤. إرشادالساری:۶/ ۵۰۰ ابوعامرعقدی تذکره وړاندې تیره شوې ده کشف الباری:۱/ ۶۵۱.

٤) فتح الباری:۶/ ۱۹٤. إرشادالساری:۶/ ۵۰۰.

۵) الاستسقاء باب دعاء النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: واجعلها سنین کسنی یوسف.

۶) کشف الباری:۲/ ۱۰.

۷) کشف الباری: ۲/ ۱۱.

۸) کشف الباری:۱/ ۶۵۹.

۹) أخرجه أیضا:۱/ ٤۳۹ فی الخمس باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: أحلت لکم الغنائم، و۱/ ۵۱۱ فی المناقب باب علامة النبوة فی الاسلام و۲/ ۹۸۰ فی الایمان والنذور.... [بقیه برصفحه آئنده...

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «هَلَكَ كِسْرَى ثُمَّ لَا يَكُونُ كِسْرَى بَعْدَهُ، وَقَيْصَرٌ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُونُ قَيْصَرٌ بَعْدَهُ، وَلَتُقْسَمَنَّ كُنُوزُهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ». وَسَمَّى الْحَرْبَ خُدْعَةً.

[حدیث نمبر ۲۸۶۵] حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَصْرَمَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ سَمَّى النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - الْحَرْبَ خُدْعَةً [۲۹۵۲، ۳۴۲۲، ۶۲۵۵].

[حدیث نمبر ۲۸۶۶] حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ أَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضي الله عنهما - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «الْحَرْبُ خُدْعَةٌ».

## رجال الحدیث

① **عبدالله بن محمد:-** داابوجعفر عبدالله بن محمد جعفی رحمه الله دی. د دوی تذکره کتاب الایمان باب أمور الایمان کښې وړاندې تیره شوې ده. [1]

② **عبدالرزاق:-** دا ابوبکرعبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانی یمانی رحمه الله دی. د دوی تذکره کتاب الایمان باب حسن إسلام المرء لاندې تیره شوې ده. [2]

③ **معمر:-** دامعمربن راشد ازدی بصری رحمه الله دی. د دوی تذکره کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیره شوې ده. [3]

④ **همام:-** دا همام بن منبه بن کامل بن سیج بن ذی کبار الیمانی البصری رحمه الله دی. د دوی تذکره کتاب العلم باب السمر في العلم لاندې تیره شوې ده. [4]

**هلك كسرى، ثم لايكون كسرى بعده، وقيصر ليهلكن ثم لايكون قيصر بعده، ولتقسمن كنوزهما في سبيل الله**

کسری هلاك شوبیابه دَهغه دویم کسری نه وی اوقیصربه ضرور هلاکیږی دَهغه نه پس به بیادویم قیصرنه وی

<u>کسری:-</u> په کاف باندې کسره او فتحه دواړه صحیح دی ابن الاعرابی وانی چه کسره فصیح لغت دې هم دغه رانې د ابوحاتم هم ده کسری د فارسیانو په تخت ناستو لقب دې اودخسره

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] باب کیف کانت یمین النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وعندمسلم فی صحیحه: ۲۹۶/۲فی الفتن. باب هلاک کسری وقیصر رقم:۲۹۱۸وعندالترمذی:۴۵/۲ فی الفتن باب ماجاء إذا ذهب کسری فلا کسری بعده رقم:۲۱۲۷.

[1] کشف الباری:۶۵۷/۱.

[2] کشف الباری:۴۲۱/۳.

[3] کشف الباری: ۳۲۱/۴.

[4] کشف الباری: ۳۱۷/۴.

معرب دی ار قیصر د روم د بادشاهانو لقب دی (۱)
په دې روایت کښې رسول الله ﷺ د روم اوفارس ناقابل تسخیر او مستحکم حکومتونه هلاک اوبرباد کیدو پیشنګوئی فرمائیلې ده روم اوفارس دهغه وخت د ټولو نه مضبوط او طاقتور حکومتونه وو امریکه چه سپرپاور استیټ دې او په یوه زمانه کښې داحیثیت روس ته هم حاصل وو دغه شان روم اوفارس دخپل وخت سپرپاور حکومتونه وو تاریخ مشاهده کړې ده چه د رسول الله ﷺ د دغه پیشنګوئی نه لږه موده پس د روم او فارس سلطنت ته د زوال داسې ګوزار اولګیدو چه د شکست او خواره وارې کیدونه پس نه په روم کښې څوك قیصر جوړ شو او نه د فارس اوسیدونکو چرته د یو کسری شکل اولیدلو.

**د روایات تعارض اودهغې حل:-** دلته اشکال کیږی چه د روایت باب جمله هلك کسری کښې په صیغه د ماضی تصریح ده. چه کسری هلاك شو اوډده نه پس به یو کسری پاتې نه شی دغه شان د صحیح مسلم په روایت کښې **قدمات کسری فلا کسری بعده** (۲) الفاظ واردې دی په دې کښې قد حرف تاکیدسره په زمانه ماضی کښې دکسری دهلاکت خبر ورکړې شو خو په جامع ترمذی کښې هم دغه روایت عن سعیدبن المسیب عن ابی هریرة په طریق باندې مروی دې په هغې کښې دی **إذا هلك کسری فلا کسری بعده، وإذا هلك قیصر فلاقیصر بعده** (۳) اذا حرف شرط د مستقبل دپاره راځی. ددې نه معلومه شوه چه هغه وخت کسری اوقیصر دواړه ژوندی وو او رسول اکرم ﷺ په مستقبل کښې دهغوی دهلاکت پیشنګوئی کړې وه اوتاریخی حقیقت هم دغه دې چه د فارس آخری کسری د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه په خلافت کښې هلاك شوې وو.

علامه قرطبی په دواړو روایتونوکښې تطبیق ورکولوسره وائی چه په کومو روایاتوکښې په صیغه د ماضی قدمات کسری اوهلك کسری الفاظ دی ممکن دی چه داسې روایات ابوهریره رضی الله عنه د کسری د هلاکت نه پس د رسول الله ﷺ نه اوریدلی وی او په کومو روایاتوکښې چه په مستقبل کښې د کسری دهلاکت پیشنګوئی ورکړې شوې ده هغه نې د کسری دهلاکت نه وړاندې اوریدلی وی (۴)

علامه قرطبی رحمه الله دا توجیه زمونږ په نیز صحیح نه ده اشکال خودادې چه د کسری هلاکت د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نه دې شوې بلکه دحضرت عثمان رضی الله عنه په دورخلافت کښې شوې بیا داتوجیه څنګه صحیح کیدې شی چه په کوموروایاتوکښې د کسری هلاکیدل ماضی سره تعبیرکړې شوی دی ممکن ده چه هغه روایات راوی د کسری د هلاك کیدو نه وړاندې اوریدلی وی حقیقت خودادې چه دا پیشنګوئی ده اود یقینی کیدو د وجه نه دکسری اودهغه د سلطنت هلاك کیدل ماضی سره تعبیرکړې شوی دی. والله اعلم

---

۱) فتح الباری: ۶/۷۷۶ کتاب المناقب باب علامة النبوة فی الاسلام.
۲) صحیح مسلم: ۲/۳۹۶ کتاب الفتن.
۳) جامع الترمذی: ۲/۴۵.
۴) إرشاد الساری: ۶/۵۰۰ وفتح الباری: ۶/۷۷۷.

علامه قرطبي رحمه الله دويمه تطبيق وركړې دې چه لفظ هلك او مات كښې معنا تغير دې. په روايت باب كښې د هلاكت نه مراد د كسرى سلطنت د هلاكت طرف ته اشاره ده اود صحيح مسلم په روايت كښې پخپله د كسرى د مرګ طرف ته اشاره ده. لكه چه په دواړو روايتونو كښې پيشنګوني ده اود يقيني كيدو د وجه دكسرى اودهغه د سلطنت هلاك كيدل ماضي سره تعبيركړې شوى دى

د عربوعادت دې چه د كومې واقعه پيښيدل په مستقبل كښې يقيني وى هغه د ماضي په صيغه كښې بيانوى. لكه چه قرآن مجيد كښې احوال قيامت د ماضي په صيغوكښې بيانولې شى د سورت نحل آيت ﴿ أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ ﴾ كښې پيښه شوې واقعه ماضي سره تعبيركړې شوې ده. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي چه دويم تطبيق اولى دې خكه چه د رواياتومخرج هم يودې په دې صورت كښې دا په تعدد باندې محمول كول به خلاف الاصل اوګرځي. (١)

**قوله**: وقيصر ليهلكن: - قيصر مبتداء اوعلميت وعجمة د وجه نه غير منصرف دې ليهلكن ددې خبردې بعض نسخوكښې ولاقيصر الفاظ دې په دې صورت كښې قيصر د حرف نفى نه پس واقع دې او په وجه د تنكير علميت زائل كيدو د وجه منصرف دې. (٢)

**قوله**: لتقسمن كنوزهما في سبيل الله: - يعنى د قيصر اوكسرى دواړو خزانې به د الله تعالى په لاركښې تقسيم كولې شى. كنوز د كنز جمع ده هغه مال چه په زمكه كښې دفن وى ياچرته هم ذخيره كړې شوې وى هغې ته كنزوئيلې شى. امام شافعي رحمه الله فرمائى دا پيشنګوئى رسول الله ﷺ قريشوته د تسلئى دپاره فرمائيلې وه. د جاهليت په زمانه كښې د قريشو تجارتى قافلې به عراق اوشام ته تللې. كله چه د قريشو اكثرخلقواسلام قبول كړو نو دهغوى انديښنه وه چه هسې نه دښمن د عراق اوشام طرف ته تلونكې تجارتى قافلې په لار كښې د هغوى د اسلام راوړلو د وجه نه بندې نه كړى. رسول الله ﷺ د تطبيب قلوب او تسلئى دپاره اوفرمائيل تاسو ته به هيڅ خطره نه وى په روم كښې به نه قيصر پاتې شى اونه په فارس كښې كسرى. بلكه د هغوى قيمتى مالونه اوخزانې به په مسلمانانو كښې تقسيميږى. (٣)

**قوله**: وسمى الحرب خدعة: - يعنى رسول الله ﷺ جنګ ته مكراو فريب اوفرمائيلو.

**د خدعه مطلب**: - د خدعه په ضبط كښې پنځه صورتونه ذكركړې شوى دى او په هرصورت كښې ددې معنى مختلف ده. ① خاء په ضمه اودال په سكون سره ددې معنى ده جنګ دهوكه فريب (٤)

② دخاء ضمه اودال فتح سره. په دې صورت كښې همزه او لمزه په شان مبالغه صيغه ده.

---

(١) فتح الباري: ٧٧٧/٦.

(٢) فتح الباري: ٧٧٧/٦.

(٣) عمدة القاري: ٣٨١/١٤ وإرشاد الساري: ٥٠١/٦.

(٤) إرشاد الساري: ٥٠١/٦.

یعنی جنګ سرې په ډیره دهوکه کښې اچونکې څیزدې دیوې لمحې غفلت او بې پرواهنی په نتیجه کښې هغوی یولوئې خطرې سره مخ کولې شی لهٰذا په جنګ کښې دهرقسم صورت حال سره مخ کیدوډپاره هروخت بیدار او چست اوسیدل پکاردی او دښمن سپک ګڼړلوسره غافل کیدل نه دی پکار (۱)

④ دَ خاء اودال دواړو فتح سره دَ خادع جمع ده یعنی دهوکه ورکونکې په دې صورت کښې به دَ الحرب خدعة مطلب داوی جنګ کونکی دهوکه بازوی (۲)

④ دَ خاء کسره اودال په سکون سره دَدې معنی ده حقیقت پټولوسره دَهغې خلاف ښکاره کول (۳)

⑤ پنځم اوآخری صورت دادې چه خدعة دَخاء فتحه او دال سکون سره اوهم دغه افصح هم دې ابوذر هروی او قزاز دَدې افصح کیدو باندې جزم کړې دې په دې صورت کښې دَ فعلة په وزن باندې کوم چه دَ مرة دپاره راځی یعنی په جنګ کښې یوځل چل ول کولوسره کامیابی حاصلیږی. دَخدعة دَدې ضبط باره کښې ثعلب وائی بلغنا أنها لغة النبی صلی الله تعالیٰ علیه وسلم یعنی مونږ ته دا روایت رارسیدلې دې اوهم دغه دَ رسول الله ﷺ لغت دې دَ ثعلب دَدې قول وضاحت کولوسره ابوبکربن طلحه وائی: أراد ثعلب أن النبی صلی الله تعالیٰ علیه وسلم کان یستعمل هذه البنیة کثیرًا لوجازة لفظها ولکونها تعطی معنی الاخیرتین، ویعطی معناها أیضًا الامر باستعمال الحیلة مهما أمکن ولومرة وإلا فقاتل فکانت مع اختصارها کثیرة المعنی (۴)

دَ ثعلب مقصد دادې چه رسول الله ﷺ به اکثرهم دغه صیغه استعمالوله. دَدې یوه وجه خوداده چه دا صیغه مختصر مګرجامع او دَ بلاغت نه ډکه ده. دویمه وجه داده چه دا دَ باقی دواړو صیغو (خَدعَة اوخُدَعَة) معنی هم ورکوی. دریمه وجه داده چه دَدې معنی دې حکم ته هم متضمن ده چه کله هم موقع ملاؤشي چال نه کار اخلئی سره دَدې چه یوځل ولې نه وی ګنی جنګیږئی. خلاصه داده چه دا صیغه دَمختصرکیدو سره کثیرالمعانی ده.

دَخدعة په آخره کښې تاء مدوره وحدت باندې دلالت کولوډپاره ده. مطلب دادې چه رسول الله ﷺ مسلمانانوته په جنګ کښې دَ چال چلولوترغیب ورکړې دې چه دښمن ته فریب ورکوئی سره دَدې چه یوځل ولې نه وی. یا حضورپاك مسلمانانوته دَحزم احتیاط او بیدار اوسیدو تلقین فرمائیلې دې چه دښمن کمزورې ګڼړلوسره غفلت نه دی کول پکار سره دَدې چه دَهغوی دَ طرف نه دَ دهوکه اوفریب هم یوه واقعه درپیښه شی په هغې سره مسلمانانوته غیرمعمولی نقصان رسیدلې شی (۵)

---

۱) فتح الباری:۶/۱۹۵.
۲) فتح الباری:۶/۱۹۵.
۳) فتح الباری:۶/۱۹۵.
۴) فتح الباری:۶/۱۹۵.
۵) فتح الباری:۶/۱۹٤ وعمدة القاری:۱٤/۳۸۲.

**په جنګ کښې د دهوکه حکم**:- په جنګ کښې د دهوکه هريوصورت اختيارول جائزدى علامه نووى رحمه الله په دې باندې جمهورو اتفاق نقل کړې دې [۱]. البته داسې صورت اختيارکول جائزنه دى په کوم سره چه دعهدوپيمان خلاف ورزى لازم راخى حضرت عمر رضي الله عنه به مختلف بلاد اوامصارته ليکلى شوو لښکرو ته لکل چه کوم سړې عجمى کافر د امان ورکولونه پس قتل کړى دهغې په بدله کښې به هم هغه قتل کوم [۲].

**د خداع دوه مثالونه**:- مشهورمحدث عبدالله بن ابى جمره په جنګ کښې د خداع دوه مثالونه ذکرکړى دى ① يو خودا چه ته کله دښمن خپل طرف ته په راتلو اووينې نو زر هغوى ته وايه تاسو پسې شاته څوك راروان دى حالانکه شاته هيڅ څوك هم نه وى کله چه هغوى شاته اوګورى نوتاسو حمله اوکړئى اوهغه قتل کړئى [۳] ② يابياهغوى ته داووايه چه ستاسو د کجاوې دا رسئى ولې سسته ده؟ آيا ته مونږ ته دخپلې شهسوارئى يوه نمونه خودلې شې؟ کله چه کجاوې طرف ته دهغه توجه پيداشى نوته هغه قتل کړه [۴].

## باب ۱۵۵: الكذب في الحرب

**د ترجمة الباب مقصد**:- په باب سابقه کښې د خداع فى الحرب د جواز بيان وو د دې باب لاندې امام بخارى رحمه الله کذب في الحرب حکم خودل غوارى يعنى چه کذب في الحرب جائزدې که نه؟ که چرې جائزدې نو صراحتا جائزدې که تلويحا؟ [۵]

[حديث نمبر ۲۸۶۷] [۶] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ -رضى الله عنهما- أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الأَشْرَفِ، فَإِنَّهُ قَدْ آذَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ». قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «نَعَمْ». قَالَ فَأَتَاهُ فَقَالَ إِنَّ هَذَا - يَعْنِي النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم -- قَدْ عَنَّانَا وَسَأَلَنَا الصَّدَقَةَ، قَالَ وَأَيْضًا وَاللَّهِ قَالَ فَإِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاهُ فَنَكْرَهُ أَنْ نَدَعَهُ حَتَّى نَنْظُرَ إِلَى مَا يَصِيرُ أَمْرُهُ قَالَ فَلَمْ يَزَلْ يُكَلِّمُهُ حَتَّى اسْتَمْكَنَ مِنْهُ فَقَتَلَهُ. [ر: ۲۳۷۵]

## رجال الحديث

① **قتيبه بن سعيد**:- دا ابورجاء قتيبه بن سعيد بن جميل بن طريف ثقفى رحمه الله دې د هغوى حالات کتاب الايمان باب إفشاء السلام من الاسلام لاندې تيرشوى دى [۷].

---

[۱] إرشادالسارى: ۶/۵۰۰ – ۵۰۱.
[۲] فتح البارى: ۶/۱۹۵.
[۳] بهجة النفوس لابن أبى جمرة: ۲/۱۲۱.
[۴] بهجة النفوس لابن أبى جمرة: ۲/۱۲۱.
[۵] عمدة القارى: ۱۴/۳۸۳ وإرشاد السارى: ۶/۵۰۲.
[۶] مرتخريجه فى كتاب الرهن. باب رهن السلاح رقم: ۲۵۱۰.
[۷] كشف البارى: ۲/۱۸۹.

(۲) **سفیان** - دا سفیان بن عیینه بن ابی عمران هلالی کوفی رحمه الله دې دَ ده تفصیلي تذکره کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا او أخبرنا أنبانا لاندې تیره شوې ده [1]

(۳) **عمرو بن دینار** - دا ابومحمد عمرو بن دینار مکي جمحي دې دَدوی تذکره کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیره شوې ده [2]

(۴) **جابر بن عبدالله** - دا مشهور صحابی دې دَدوی تذکره تیره شوې ده [3]

**قوله**: أن النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قال: من لكعب بن الاشرف، فانه قد آذى الله ورسوله؟ قال محمد بن مسلمة: أتحب أن أقتله يارسول الله؟ قال نعم....: په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل څوك دې چه دَ كعب بن اشرف کار تمام کړی ځکه چه هغه الله تعالی اودَهغه رسول ته تکلیف رسولې دې حضرت محمد بن مسلمه عرض اوکړو آیا تاسو دا خوښوئی چه زه هغه قتل کړم؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل او.

**قوله**: فأتاه فقال: إن هذا يعني النبي صلى الله تعالى عليه وسلم قد عنانا وسألنا الصدقة قال: وأيضا والله لتملنه....: دوی کعب بن اشرف له راغلو محمد بن مسلمه اووئیل دې سړی (رسول اکرم ﷺ) مونږ په مشقت کښې اچولې یو اوهغه زمونږ نه دَ صدقه مطالبه کوی. کعب بن اشرف اووئیل په الله تعالی قسم دې چه تاسو به دَده نور تنګ شئ.

**قوله**: قال: فانا قد اتبعناه فنكره أن ندعه، حتى ننظر إلى ما يصير أمره: محمد بن مسلمه اووئیل مونږ دَهغه اتباع کړې ده په دې وجه مونږ دا نه غواړو چه هغه پریږدو تردې چه مونږ هغه سره کیدونکې انجام اووینو. دَمغازی په روایت کښې دی فائذن لی أن أقول شیئا قال نعم. یعنی په دې موقع باندې محمد بن مسلمه دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې دا هم عرض کړې ووچه تاسو ماته اجازت راکړئی چه څه خبره اوکړم (مطلب داچه داسې ذومعنی او مبهم خبره اوکړم چه دَدې خیال اوبرابروی اوماته دَهغه قتل آسان شی) نوحضورپاك ﷺ اجازت ورکړو. په مغازی کښې دا واقعه په تفصیل سره راروانه ده [4]

**دَ صریح کذب حکم**:- په حدیث باب کښې محمدبن مسلمه رضي الله عنه کعب بن اشرف سره چه کومه مکالمه اوکړه په هغې کښې دَ صریح کذب تصریح نشته علامه قسطلاني رحمه الله فرمائیلي چه دا تعریض دې. البته هم دغه روایت دَ وړاندې باب لاندې نقل دې په دې کښې دَ صریح کذب

---

[1] کشف الباری: ۱۰۲/۳.

[2] کشف الباری: ۳۰۹/٤.

[3] کتاب الوضوء باب صب النبي صلى الله تعالى عليه وسلم وضوءه على المغمى عليه.

[4] کشف الباری کتاب المغازی ص: ۱۹۱ — ۱۹۶.

د اجازت تصريح ده د روايت الفاظ دى فاذن لي.فاقول؟ قال قد فعلت دا الفاظ په صريح كذب باندې دلالت كوى دې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ په بعض موقعوكښې د كذب صريح اجازت وركړې دې د سنن ترمذى روايت ددې نه زيات صريح دې په دې كښې دا هم خودلې شوى دى چه كذب صريح په كوموموقعوكښې جائزدى د اسماء بنت يزيد رضي الله عنها په مرفوع روايت كښې دى لايحل الكذب إلا فى ثلاث تحديث الرجل امرأته يرضيها والكذب فى الحرب وفى الاصلاح بين الناس [1]

علامه طبرى رحمه الله فرمائى چه په دې روايت كښې د بعض حضراتو په نيزد كذب مرخص نه تول انواع د كذب مراددى اودا په خپل اطلاق باندې محمول دى كه چرې په كذب كښې مصلحت وى نو دې گنجائش شته ددې په نيز منهى عنه او مذموم كذب هغه دې كوم چه نقصان ده وى اودفائدې نه خالي وى بعض حضراتو فرمائيلى دى چه د كذب يوقسم هم جائزنه دې په دې روايت كښې چه د كوم كذب مرخص ذكرراغلې دې دې نه توريه او تعريض مراددې [2]

حقيقت دادې چه دلته كذب خپل حقيقى معنى باندې محمول دې دعلامه رشيداحمد گنگوهى رحمه الله په رائې كښې هم دغه ده.حضرت گنگوهى رحمه الله فرمائى چه په حديث كښې كذب په خپله حقيقى معنى باندې محمول دې ليكن علماؤ احتياطا فرمائيلى چه دې نه توريه او تعريض مراددې دې دپاره چه عوام د دروغوويلو په معامله كښې جرى او بې باك نه شى [3]

## باب ۱۵۶ : الفتك بأهل الحرب

**فتك:**- باب سمع نه د فاء فتحه اوتاء سكون سره په دې معنى كښې دې په دهوكه ياغفلت سره قتل كول حمله كول يا په بنكاره وژل [4] دلته ددې معنى دغفلت په حالت كښې قتل كول دى

**د ترجمة الباب مقصد**- دامام بخارى رحمه الله مقصددادې چه د غفلت په حالت كښې په دښمن باندې ناڅاپى حمله كول اوهغه قتل كول جائز دى [5]

[حديث نمبر ۲۸۶۸] حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الأَشْرَفِ». فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ أَتُحِبُّ أَنْ أَقْتُلَهُ قَالَ «نَعَمْ». قَالَ فَأْذَنْ لِي فَأَقُولَ. قَالَ «قَدْ فَعَلْتُ». [ر: ۲۳۷۵]

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد:**- داابوجعفر عبدالله بن محمد جعفى رحمه الله دې ددوى تذكره وړاندې كتاب

---

[1] ) سنن الترمذى:۱۵/۲، كتاب البروالصلة، باب ماجاء فى إصلاح ذات البين.

[2] ) الكوكب الدرى فى شرح جامع الترمذى:۵۳/۳.

[3] ) الكوكب الدرى فى شرح جامع الترمذى:۵۳/۳.

[4] ) القاموس الوحيد:۱۲۰۲.

[5] ) عمدة القارى:۳۸۵/۱۴ وإرشاد السارى:۵۰۳/۶.

الایمان باب أمور الایمان کښې تیره شوې ده [1]

③ **سفیان** داسفیان بن عیینه بن ابی عمران هلالی الکوفی دې ددوی حالات کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو اخبرنا وأنبانا لاندې تیرشوی دی [2]

④ **جابر** ﷺ دامشهور صحابی رسول حضرت جابربن عبدالله انصاری ﷺ دی د دوی حالات وړاندې تیرشوی دی [3]

دتیرشوی باب روایت امام بخاری ﷺ دمناسبت دَ وجه نه دلته هم مختصراً بیان کړې دې امام بخاری ﷺ ددې روایت نه استدلال کړې دې چه محمدبن مسلمه ﷺ کعب بن اشرف غولولوسره قتل کړو هم دغه فتك دې

**ترجمة الباب سره مناسبت**:- دَحدیث باب هیڅ یولفظ صراحتاً ترجمة الباب سره مناسبت نه لری علامه عینی ﷺ او علامه قسطلانی ﷺ فرمانیلی دی چه دا روایت معناً دَ ترجمة الباب مناسب دې [4]

## باب ۱۵۷: مایجوزمن الاحتیال والحذر، مع من تخشی معرته

الاحتیال:- دَدې معنی دهوکه ورکول مکر اوچال چلولو ده

الحذر:- حذریحذر (س) معنی ده بیدارکیدل، تکړه کیدل. حذرالشئ ومنه ویریدل، بچ کیدل، محتاط کیدل [5] دلته احتیاط مراد دې

معرة:- دَدې معنی تکلیف اوسزا. [6]

**د ترجمة الباب مقصد**:- امام بخاری ﷺ دلته داخودل غواړی که دَ چانه دَ شرفساد اونقصان رسیدو خطره وی نودَ هغه نه دَ بچ کیدودپاره احتیاطی تدابیر اختیارول اوبې چال چلول جائزدی

[حدیث نمبر ۲۸۶۹] [7] قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِاللهِ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ-رضی الله عنهما- أَنَّهُ قَالَ انْطَلَقَ رَسُولُ اللهِ -صلی الله علیه وسلم- وَمَعَهُ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ، فَحُدِّثَ بِهِ فِي نَخْلٍ، فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ-

---

[1] ) کشف الباری:۶۵۷/۱.

[2] ) کشف الباری:۱۰۲/۳.

[3] ) کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله تعالی علیه وضوءه علی المغمی علیه..

[4] ) إرشاد الساری:۵۰٤/۶.

[5] ) القاموس الوحید ص:۳۲۱.

[6] ) القاموس الوحید:۱۰۶٤.

[7] ) قدمر تخریجه فی کتاب الجنائز. باب إذاأسلم فمات. هل یصلی علیه؟وهل یعرض علی الصبی الاسلام؟ رقم:۱۳۵۵.

صلى الله عليه وسلم - النَّخْلَ، طَفِقَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ، وَابْنُ صَيَّادٍ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا رَمْزَمَةٌ، فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَتْ يَا صَافِ، هَذَا مُحَمَّدٌ، فَوَثَبَ ابْنُ صَيَّادٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ». [ر: ۱۲۸۹]

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ وائی چه رسول الله ﷺ ابی بن کعب ﷺ سره ابن صیاد له تشریف یوړو ورته اوخودلې شو چه هغوی د کهجورو په باغ کښې دې کله چه حضور پاك هلته اورسیدو نو خپل خان نی د کهجورو د بناخونو شاته پټ روان کړو ،دې د دې پاره چه ابن صیاد نی اونه لیدلې شی، هغه وخت ابن صیاد په څادر کښې وو اود څادر دننه نه د ګونګارې آواز راتللو دهغه مور دې اولیدواوچغه نی کړه اې صاف ،دا د ابن صیاد نوم دې، دا محمد ﷺ رارسیدلې دې ابن صیادراټوپ کړو رسول الله ﷺ اوفرمائیل که ددې مور ده ته ،زمونږ د راتلو باره کښې، نه وو ونیلی نوهغه به په ښکاره بیان کړې وو یعنی دهغه دخبرونه به اندازه شوې وه چه دې په حقیقت کښې دجال دې یا بل څوك دې دا روایت په تفصیل سره کتاب الجنائز کښې تیرشوې دې.

**د مذکوره تعلیق تخریج**:- علامه اسماعیلی په مستخرج کښې دا تعلیق عن أبي عمران بن هانئ عن الرمادي، عن ابن بکیر وأبي صالح عن اللیث په طریق باندې موصولاً روایت کړې دې (۱)

**د مذکوره تعلیق مقصد**:- امام بخاری ﷺ باب قایم کړې دې چه د شر اونقصان نه د بچ کیدو دپاره حذر اوحتیاال دواړه جائزدی. ددې تعلیق نه امام بخاری ﷺ د حذر اواحتیاال په جواز باندې د رسول الله ﷺ طرزعمل د استدلال په توګه پیش کړې دې یعنی رسول الله ﷺ د کهجورو د بناخونو شاته پټ روان ووځکه چه د ام ابن صیادپه لیدوسره د نقصان اندیښنه وه.

**ترجمة الباب سره مطابقت**:- علامه عینی ﷺ فرمائی چه د تعلیق باب جز طفق یتقي بجذوع النخل ترجمة الباب سره مطابقت لری ددې جملې مطلب دادې چه رسول الله ﷺ د کهجورو په بناخونوکښې خپل خان پټ کړو لاړو دې دپاره چه ام ابن صیاد هغوی اونه ګوری هم دغه حذر اواحتیاال دې ځکه چه دام ابن صیاد نه د نقصان رسیدو اندیښنه وه (۲)

## باب ۱۵۸: الرجز في الحرب ورفع الصوت في حفر الخندق

**الرجز**:- رجز د شعرونو د مختلف بحرونویومعروف قسم دې ددې جوړخ سجع سره مماثلت لری خودا په وزن کښې د شعر په شان موزون وی ددې وزنونه نیزدې نیزدې وی اومصرعې مختصر او وړې کومې چه په لوستلواو پوهیدلو کښې دعامو شعرونو په نسبت ډیرې آسانې وی لکه څنګه چه شعرونه لوستونکوته شاعران وائی دغه شان رجزلوستونکوته راجز وائی (۳)

د لسان العرب مؤلف علامه ابن منظور فرمائی چه په لغت کښې رجز معنی تتابع الحرکات

(۱) تغلیق التعلیق لابن حجر: ﷺ۳/۴۵۶.
(۲) عمدة القاری: ۱۴/۳۸۶.
(۳) لسان العرب لابن منظور الانصاری: ۵/۴۱۰ .مادة رجز والنهایة لابن لاثیر: ۱/۶۴۶ – ۶۳۷.

ده ومنه قولهم ناقة رجزاء رجزاء په عربو كښې هغه اوښې ته وائي د كومې خپې چه د اوچتيدو په وخت رچيږي رجز دا د شعردپاره هم د رجز د اصطلاح په وجه مشهورشو چه ددې مصرعې وړې اولنډې وى لوستونكې د يوې مصرعې نه بلې ته په تيزئي سره وراوړى لكه چه دلته تتابع الانتقال كيږى لكه چه د اوښې په خپه كښې رچيدلووخت كښې تتابع الحركات كيږى (۱)

**د ترجمة الباب مقصد** - عربوبه عموماً په ميدان جنګ كښې تازه والې پيداكولواود حوصلو اوچتولودپاره رجزيه اشعار لوستل. امام بخارى رحمه الله ترجمة الباب سره داخودل غواړى چه ميدان جنګ او د خندق د كنستلوپه وخت په اوچت آواز سره رجزيه شعرونه وئيل جائزدى والله اعلم

په سنن ابوداؤد كښې د قيس بن عباس په طريق سره نقل كړې شوى روايت كښې دى. كان أصحاب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم يكرهون الصوت عندااللقاء. (۲) يعنى صحابه كرامو به په دښمن باندې د حملې كولوپه وخت شور اوچغې وهل ناخوښولې چه دا خودويريدو اودهشت علامت دې اوخاموشى د ثبات يعنى كلكوالى دليل دې. حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى امام بخارى رحمه الله د ترجمة الباب دويم جز ورفع الصوت في حفرالخندق نه دې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه د آواز اوچتوالې په عين د جنګ وخت كښې ناخوښه دې البته د جنګ په نورو موقعوكښې رجزيه شعرونه وئيل جائزدى. (۳)

**قوله**: فِيهِ سَهْلٌ وَأَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- [ر: ۲۶۷۹، ۳۵۸۶]

دا روايت امام بخارى رحمه الله كتاب المغازي كښې باب غزوة الخندق لاندې موصولاً روايت كړې دې. په دې كښې دى چه رسول الله ﷺ د ژمى په يخ سحر كښې صحابه په خندق كنستلوسره په اولګه او سټړيوالى سره اوكتل نو وئى فرمائيل.

اللهم لاعيش إلاعيش الآخره فاغفر الانصار والمهاجرة

صحابه كرامو په جواب كښې اووئيل:

نحن الذين بايعوا محمدًا على الجهاد ما بقينا أبدًا (۴)

امام بخارى رحمه الله د روايت هم ددې جزطرف ته اشاره كړې ده چه د خندق د كنستلو په وخت حضورپاك اودهغوى صحابه كرامو شعرونه وئيلى.

وأنس - دا په سهل باندې عطف كيدود وجه نه مرفوع دې. ددې نه د حضرت انس رضي الله عنه دې روايت طرف ته اشاره ده كوم چه هم په كتاب الجهاد كښې باب حفرالخندق لاندې امام بخارى رحمه الله موصولاً نقل كړې. په دې كښې دى چه مهاجرين اوانصار صحابه رضي الله عنهم د مدينې څلورو

---

۱) لسان العرب :۵/ ۴۱۲.

۲) سنن أبى داؤد:۲/ ۴ كتاب الجهاد باب فيما يؤمربه من الصمت عنداللقاء.

۳) فتح البارى:۶/ ۱۹۸.

۴) كشف البارى كتاب المغازى ص:۲۸۲ — ۲۸۳.

واورو طرفو ته خندق کنستلو وخت کښې دا شعرونه ونیل

نحن الذین بایعوا محمدًا علی الجهاد ما بقینا أبدًا

رسول الله ﷺ به د دې په جواب کښې ونیل

اللهم إنه لاخیر إلا خیر الآخرة فبارك فی الانصار والمهاجرة (۱)

**قوله وفیه یزید عن سلمة.** [ر ۳۹۶۰]

د یزیدنه یزید بن ابی عبید او سلمه نه سلمه بن الاکوع رضی الله عنه مراد دې دا روایت امام بخاری رحمه الله کتاب المغازی باب غزوة خیبر (۲) او کتاب الدعوات، باب قول الله تبارك وتعالی ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ﴾ لاندې موصولاً روایت کړې دې (۳) چنانچه یزید بن ابوعبید عن سلمه ابن الاکوع په طریق سره مروی روایت کښې د عامر بن الاکوع واقعه بیان کړې شوې ده. دامام بخاری اشاره دغه واقعه طرف ته ده عامر بن الاکوع د سلمة بن الاکوع رضی الله عنه د تره خوئی وو په روایت کښې دی چه صحابه کرام وسره خیبر طرف ته روان وو. د شپې وخت وو عامر بن الاکوع ته چاوونیل ألا تسمعنا من هنیهاتك؟ آیا تاسومونږ ته څه رجزیه شعرونه نه اوروئی. نو عامر بن اکوع د سورلئی نه راکوز شو او د قوم مخکښې ئې خوش آوازی شروع کړه.

اللهم لولا أنت ما اهتدینا ولا تصدقنا ولا صلینا

فاغفر فداء لك ما أبقینا وثبت الاقدام إن لاقینا

وألقین سکینة علینا إنا إذا صیح بنا أتینا

وبالصیاح عولوا علینا

[حدیث نمبر ۲۸۷۰] (۴) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا أَبُو الأَحْوَصِ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ -رضى الله عنه- قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ يَنْقُلُ التُّرَابَ حَتَّى وَارَى التُّرَابُ شَعَرَ صَدْرِهِ، وَكَانَ رَجُلاً كَثِيرَ الشَّعَرِ وَهُوَ يَرْتَجِزُ بِرَجَزِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَوَاحَةَ:

اللَّهُمَّ لَوْلاَ أَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلاَ تَصَدَّقْنَا وَلاَ صَلَّيْنَا

فَأَنْزِلَنْ سَكِينَةً عَلَيْنَا وَثَبِّتِ الأَقْدَامَ إِنْ لاَقَيْنَا

إِنَّ الأَعْدَاءَ قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا إِذَا أَرَادُوا فِتْنَةً أَبَيْنَا

يَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهُ. [ر ۲۶۸۱]

---

(۱) کشف الباری کتاب المغازی ص: ۲۸۳.
(۲) صحیح بخاری: ۶۰۳/۲ کتاب المغازی باب غزوة خیبر رقم: ۴۱۶۶.
(۳) صحیح بخاری: ۹۳۷/۲ کتاب الدعوات. باب قول الله تبارك وتعالی ﴿ وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ﴾ رقم: ۶۳۳۱.
(۴) مر تخریجه فی الجهاد باب حفر الخندق رقم: ۳۸۳۶.

# رجال الحدیث

① **مسدد** - دامسدد بن مسربل بن مرعبل الاسدی البصری رحمه الله دې دَدوی حالات کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیرشوی دی [1]

② **ابوالاحوص** - دا ابوالاحوص سلام بن سلیم الحنفی الکوفی رحمه الله دې دَ دوی تذکره وړاندې تیره شوې ده [2]

③ **ابواسحاق** - دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید السبیعی دې دَ دوی تذکره کتاب الایمان باب الصلوٰة من الایمان لاندې تیره شوې ده [3]

④ **البراء** - دامشهورصحابی حضرت براء بن عازب رضی الله عنه دې دَدوی تذکره کتاب الایمان باب الصلوٰة من الایمان لاندې تیره شوې ده [4]

**رأیت رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم یوم الخندق وهوینقل التراب حتی واری التراب شعرصدره وهویرتجز برجزعبدالله**

حضرت براء بن عازب رضی الله عنه وائی چه دَ غزوه خندق په ورځ ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اوکتلو هغوی خاوره کښتله تردې چه خاورې دَحضورپاك دَ سینې مبارکې ویښته مبارك پټ کړل په یوروایت کښې بیاض بطنه الفاظ راغلی دی یعنی خاور دَحضورپاك دَ خیټې مبارکې سپینوالې پټ کړو [5] په دواړو روایتونوکښې هیڅ تعارض نشته خاوره دَ سینې او خیټې دواړو په ویښتو به لګیدلې وی. په یوروایت کښې دَ سینې او بل کښې دَ خیټې ذکردې دغه وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارك دَ عبدالله ابن رواحه رضی الله عنه رجزیه أشعارلوستل

| | |
|---|---|
| اللهم لولا أنت ما اهتدینا | ولا تصدقنا ولا صلینا |
| فانزلن سکینة علینا | وثبت الاقدام أن لاقینا |
| إن الاعداء قد بغوا علینا | إذا أرادوا فتنة ابینا |

① یاالله که چرې ته نه وې نو مونږبه هدایت نه وو بیاموندې اونه به مونږ صدقه ورکوله اونه به مومونځ کولو

② په مونږ باندې سکینه نازله کړه او په جنګ کښې مونږ ثابت قدم اوساته.

③ دښمنانوپه مونږباندې ظلم کړې دې کله چه داخلق مونږبه فتنه کښې دَ اخته کولواراده کوی نومونږ به انکارکوو

---

[1] ) کشف الباری:۲/۲.
[2] ) الاذان باب الالتفات فی الصلوة: رقم:۷۵۱.
[3] ) کشف الباری:۳۷۰/۲.
[4] ) کشف الباری:۳۷۵/۲.
[5] ) صحیح بخاری:۳۹۸/۱ کتاب الجهاد باب حفرالخندق رقم:۲۸۳۷.

**قوله** يرفع بها صوته - داجمله وهويرتجز نه حال واقع دہ او مطلب دادې چه دا شعرونه به حضور پاک په اوچت اواز لوستل (١)

**ترجمة الباب سره مناسبت** - علامه عينى رحمه الله فرمائى چه وهويرتجز برجز عبدالله او يرفع بها صوته د حدیث باب دا دواړه اجزاء ترجمة الباب سره مطابقت لرى (٢)

## باب ۱۵۹ : من لا يثبت على الخيل

**د ترجمة الباب مقصد**:- ① علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د دې ترجمة الباب نه د امام بخارى رحمه الله مقصد دا خودل دى چه رسول الله ﷺ د داسې سړى باره کښې دعاء خير فرمانيلې چه په اس به نه شو سوريدې (٣)

② حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى امام بخارى دا باورکول غواړى چه کوم سړې په اس باندې سورلى نه شى کولې اهل خيرله پکاردى چه د هغه دپاره د ثبات دعا اوکړى (٤) د دې نه علاوه امام بخارى رحمه الله په اس باندې سوريدل او کلك کيناستلو د فضيلت طرفته هم اشاره کړې ده (٥)

[حديث نمبر ۲۸۷۱] (٦) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيرٍ - رضى الله عنه - قَالَ مَا حَجَبَنِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مُنْذُ أَسْلَمْتُ، وَلاَ رَآنِي إِلاَّ تَبَسَّمَ فِي وَجْهِي.
وَلَقَدْ شَكَوْتُ إِلَيْهِ إِنِّي لاَ أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ . فَضَرَبَ بِيَدِهِ فِي صَدْرِي وَقَالَ « اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا ». [ر: ۲۸۵۷]

## رجال الحديث

① **محمدبن عبدالله بن نمير**:- دابوعبدالرحمن محمدبن عبدالله بن نمير الهمدانى رحمه الله دې د دوى تذکره وړاندې تيره شوې ده (٧)

② **ابن ادريس**: دابومحمد عبدالله بن ادريس بن يزيدبن عبدالرحمن الاسود الاودى الكوفى رحمه الله

---

١) عمدة القارى: ٣٨٧/١٤.
٢) عمدة القارى: ٣٨٧/١٤.
٣) عمدة القارى: ٣٨٧/١٤.
٤) فتح البارى: ١٩٩/٦.
٥) فتح البارى: ١٩٩/٦.
٦) أخرجه البخارى: ٥٣٩/١ أيضًا فى كتاب مناقب الانصار باب ذكرجرير بن عبدالله البجلى رضى الله عنه رقم: ٣٨٢٢ وفى: ٨٩٨/٢ كتاب الادب باب التبسم والضحك رقم: ٦٠٩٠ وعندمسلم فى صحيحه: ٢٩٧/٢ فى فضائل الصحابة باب من فضائل جرير بن عبدالله رضى الله عنه رقم: ٢٤٧٥ وعند الترمذى فى جامعه: ٢٦١/٢ فى المناقب باب مناقب جرير بن عبدالله البجلى رضى الله عنه رقم: ٣٨٢٢.
٧) كتاب العمل فى الصلوة باب ماينهى من الكلام فى الصلوة: رقم: ١١٩٩.

دي هغه د خپل پلار ادريس بن يزيد الاودي او ربيعه بن عثمان. سفيان ثوري. سليمان الاعمش. شعبه بن الحجاج. سهيل بن ابى صالح. عبدالملك بن عزيزبن جريج .ليث بن ابى سليم .مالك بن انس .محمدبن اسحاق بن يسار .هشام بن عروه .يحي بن سعيد التيمي. يحي بن سعيد الانصاري اويزيدبن ابى زياد غوندې جليل القدر ائمه حديث نه روايت کړې دې او دهغوى نه حديث روايت كونكى دى عبدالله بن مبارك. ابراهيم بن مهدى. احمدبن جواس الحنفى. احمدبن حرب الموصلى. احمدبن محمد بن حنبل. اسحاق بن راهويه. ابومعمر. اسماعيل بن ابراهيم. حسن بن ربيع بجلى. زهيربن حرب. عمر بن حفص. قتيبه بن سعد. مالك بن انس. محمدبن سعيد. محمدبن سلام البيكندى. يحيى بن آدم. يحيى بن اكثم. يحيى بن معين وغيرهم

مالك بن انس او عبدالله بن ادريس رحمهما الله دواړو د يوبل نه روايت اخستې لكه چه مالك بن انس دهغه شيخ هم دې او تلميذهم (١)

امام احمدبن حنبل رحمه الله دهغوى باره كښې فرمائيلى **كان نسيج وحده** (٢) امام ابوحاتم رحمه الله فرمائى **حجة يحتج بها، إمام من أئمة المسلمين ثقة** (٣) امام نسائى رحمه الله فرمائيلى **ثقة، ثبت**

ابن ادريس رحمه الله د اوچتې پائې جليل القدرمحدث وو. د جرح اوتعديل ټولو ائمه حضراتو دهغوى توثيق کړې دې امام عثمان بن سعيددارمى رحمه الله بيان کوى چه ما د يحيى بن معين رحمه الله نه تپوس اوکړو ادريس او ابن نمير كښې ستاسو چاسره ډيرمحبت دې؟ يحيى بن معين رحمه الله جواب راکړو **ثقتان، إلا أن ابن إدريس أرفع، وهو ثقة في كل شيء**، يعنى دواړه ثقه دى خو ابن ادريس ډيره اوچته مرتبه ده. هغه خو په هرڅيزكښې ثقه وو (٤) ١٠ ذوالحجه ١٩٢ هجرى كښې د هارون الرشيد د خلافت په آخرى زمانه كښې وفات شوې (٥)

④ **اسماعيل**:- دا اسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې. د دوى تذكره كتاب الايمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده كښې تيره شوې ده. (٦)

⑤ **قيس**:- دامشهورتابعى قيس بن ابى حازم احمسى بجلى رحمه الله دې. د دوى حالات كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم الدين النصيحة لله ولرسوله ولائمة المسلمين وعامتهم لاندې تيرشوى دى (٧)

---

(١) د شيوخ اوتلامذه د تفصيل دپاره اوګورئى تهذيب الكمال للحافظ المزى: ١٤/٢٩٤ – ٢٩٦ وتهذيب التهذيب لابن حجر: ٥/١٤٤.

(٢) تهذيب الكمال: ١٤/٢٩٦ وتهذيب التهذيب: ٥/١٤٤.

(٣) الجرح والتعديل الترجمة: ٤٤ تهذيب الكمال: ١٤/٢٩٩ تهذيب التهذيب: ٥/١٤٥.

(٤) تهذيب الكمال للمزى: ١٤/٢٩٧ وتهذيب التهذيب: ٥/١٤٥.

(٥) طبقات ابن سعد: ٦/٣٨٩ وتهذيب الكمال: ١٤/٣٠٠.

(٦) كشف البارى: ١/٦٧٩.

(٧) كشف البارى: ٢/٧٦١.

⑤ جرير رضي الله عنه: دا حضرت جرير بن عبدالله احمسى بجلى رضي الله عنه دې د دوى حالات هم مذكوره كتاب او باب لاندې تير شوى دى (۱)

**قوله** ماحجبني النبي صلى الله تعالى عليه وسلم منذ أسلمت، ولا رآني إلا تبسم في وجهي: يعنى د كله نه چه زه مسلمان شوې يم رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپل كور كښې داخليدو نه منع كړې نه يم او كله نې چه هم زه ليدلې يم مسكې شوې دې

في وجهي: د سرخسى او كشميهنى په نسخو كښې دالفظ داسې ضبط شوې دې خود ابوذر په نسخه كښې وجهه نقل دې دا التفات من المتكلم إلى الغائب د قبيل نه دې معنى په دواړو صورتونو كښې هم يو ده (۲)

**قوله** ولقد شكوت إليه أني لا أثبت على الخيل فضرب بيده في صدري وقال: اللهم ثبته واجعله هاديا مهديا: ما حضورپاك ته شكايت اوكړو چه زه په اس نه شم كلكيدې رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل لاس زما په سينه باندې اووهلو او ونې فرمائيل اې الله دې په اس باندې كلك كړې او د نيغې لار والا او د هدايت موندونكې نې جوړ كړې

في صدري: د ابوذر په روايت كښې د دې په ځائې صدره وارد شوې دې دا هم د رومبى لفظ په شان التفات من المتكلم إلى الغائب د قبيل نه دې

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره أني لا أثبت على الخيل مناسبت ښكاره دې (۳)

**د حديث نه مستنبط فوائد:** علامه عينى رحمه الله د حديث باب نه مختلف فوائد مستنبط كړى دى: ① د روايت نه معلومه شوه چه په مسكا او روڼ تندى باندې ملاويدل د اخلاق نبوت نه دى په مسكا او روڼ تندى سره ملاويدل تكبر ختموى او الفت او مودت پيدا كوى (۴)

② په روايت كښې د اس د سورلئى فضيلت بيان كړې شوې دې اشراف او رؤساء له پكار دى چه د اس د سورلئى مشق كوى او دا فن زده كړى (۵)

③ كه يو عالم دين يا د وخت امام ته څوك سرې په خپل بدن باندې د هغه د لاس راښكلو او لاس وهلو درخواست اوكړى نو د هغه درخواست قبلولو كښې هيڅ بديت نشته چه دا عمل خود تواضع دې او بل خپل طرف ته د مائل كولو سبب دې (۶)

---

(۱) كشف البارى: ۲/ ۷۶۴.

(۲) فتح البارى: ۶/ ۱۹۹ وعمدة القارى: ۱۴/ ۳۸۸ وإرشاد السارى: ۶/ ۵۰۶.

(۳) فتح البارى: ۶/ ۱۹۹ وعمدة القارى: ۱۴/ ۳۸۸.

(۴) وعمدة القارى: ۱۴/ ۳۸۸.

(۵) وعمدة القارى: ۱۴/ ۳۸۸.

(۶) وعمدة القارى: ۱۴/ ۳۸۸.

## باب ۱۶۰: دواء الجرح بإحراق الحصیر، وغسل المرأة عن أبیها الدم عن وجهه وحمل الماء فی الترس

دا باب په دریو جزونو باندې مشتمل دې او په هر جز کښې یو حکم بیان کړې شوې دې

**قوله** دواء الجرح بإحراق الحصیر- دا رومبې جزدې په دې کښې امام بخاری داخودل غواړی چه پوزکې سوزول او دهغې ایره په زخم باندې لګول جائزدی

**قوله** وغسل المرءة عن أبیها الدم عن وجهه- دا دویم جزدې په دې کښې داخودل غواړی که چرې ښځه دخپل پلارزخمی شوې مخ اووینځی نو داسې کول جائزدی

**قوله** وحمل الماء فی الترس- ترس ډهال ته وئیلې شی په دې کښې امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه ډهال د اوبو د لوښی په توګه هم استعمالولې شی

علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب د حدیث باب نه معنًا اخذکړې دې مرءاة نه مراد حضرت فاطمه رضی الله عنها ده. هم هغې اول د رسول اکرم ﷺ په مخ باندې لګیدلې وینه وینځلې د پوزکې ټکره سوزولوسره د رسول اکرم ﷺ په زخم باندې لګولې وه او په ډهال کښې اوبه راوړونکې حضرت علی رضی الله عنه وو.(۱)

[حدیث نمبر ۲۸۷۲](۲) حَدَّثَنَا عَلِیُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ حَدَّثَنَا أَبُو حَازِمٍ قَالَ سَأَلُوا سَهْلَ بْنَ سَعْدٍ السَّاعِدِیَّ-رضی الله عنه- بِأَیِّ شَیْءٍ دُووِیَ جُرْحُ النَّبِیِّ -صلی الله علیه وسلم- فَقَالَ مَا بَقِیَ مِنَ النَّاسِ أَحَدٌ أَعْلَمُ بِهِ مِنِّی، كَانَ عَلِیٌّ یَجِیءُ بِالْمَاءِ فِی تُرْسِهِ، وَكَانَتْ -یَعْنِی فَاطِمَةَ- تَغْسِلُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ، وَأُخِذَ حَصِیرٌ فَأُحْرِقَ، ثُمَّ حُشِیَ بِهِ جُرْحُ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم-.[ر: ۲۴۰]

## رجال الحدیث

① **علی بن عبدالله**:- دا امیر المؤمنین فی الحدیث ابوالحسن علی بن عبدالله بن جعفربن نجیح سعدی بصری رحمه الله دې. د دوی تفصیلی حالات کتاب العلم باب الفهم فی العلم لاندې مخکې تیرشوی دی (۳)

② **سفیان**:- دا ابومحمد سفیان بن عیینه هلالی الکوفی دې. د دوی حالات کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبانا لاندې تیرشوی دی. (۴)

---

(۱) وعمدة القاری: ۱٤/۳۸۸.

(۲) مرتخریجه فی کتاب الوضوء باب غسل المرءة أباها الدم عن وجهه رقم: ۲۳٤.

(۳) کشف الباری: ۲-۳۰۲/۳-۲۹۷.

(۴) کشف الباری: ۳/۱۰۲.

③ **ابوحازم** - دا ابوحازم سلمة بن دينار رحمه الله دي ددوى تذكره هم وړاندې تيره شوې ده (١)

④ **سهل بن سعدالساعدي** رضي الله عنه -دامشهور انصاري صحابي دې ددوى تذكره هم دې نه وړاندې تيره شوې ده (٢)

**قوله سألوا سهل بن سعدالساعدي رضي الله عنه بأي شئ دووي جرح رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم؟...:** خلقودَ سهل بن سعد رضي الله عنه نه تپوس اوكړو چه دَ رسول الله ﷺ دَ زخم علاج په څه څيزسره كړې شوې وو؟ دا زخم په جنګ احد كښې لګيدلې وو سهل اوونيل اوس په خلقوكښې دهغې نه زيات پيژندونكې بل هيڅ نشته خكه چه په دغه وخت كښې په مدينه كښې دَ سهل نه علاوه بل يوصحابي ژوندې بچ نه وو پاتې شوې ټول وفات شوى وو حضرت على رضي الله عنه به په خپل ډهال كښې اوبه راوړلې اوفاطمه بي بي رضي الله عنها به نې دَ مخ نه وينه وينخله يوپوزكې راوړلې شو اوهغه اوسوزولې شو او په هغې سره دَ حضورپاك زخم ډك كړې شو دلته په روايت كښې اخذ او احرق مجهول صيغې دى خودَمغازى په روايت كښې تصريح ده چه دَ پوزكې سوزونكې حضرت فاطمه رضي الله عنها وه (٣) دا روايت بعينه هم په دې الفاظوسره كتاب الوضوء لاندې وړاندې تيرشوې دې او وړاندې كتاب المغازى كښې هم په تفصيل سره راروان دې.

## باب ١٦١ : مايكره من التنازع والاختلاف في الحرب، وعقوبة من عصى إمامه

**دَ ترجمة الباب مقصد:** - ددې ترجمة الباب لاندې امام بخارى رحمه الله دوه خبرې خودل غواړى:

① **مايكره من التنازع** كښې دا خودل غواړى چه دَ جنګ په وخت اختلاف مكروه دې دَ مسلمانانوخپل مينځ كښې اختلاف اوانتشارته كتلوسره دښمن جرى او بې ويرې كيږى اودَهغوى دَ زړونونه دَ مسلمانانو هيبت اوځى ښكاره خبره ده چه ددې كړبړ نتيجه دَ دښمن په مقابله كښې ماتې دَ يوناقابل تلافى نقصان په شكل كښې ښكاره كيدې شى

② **وعقوبة من عصى إمامه** كښې دا خودل غواړى چه دَ اميردَنافرمانئى سزا اومال غنيمت نه دَ محروم كيدل هم په دې دنياكښې ملاويږى (٤)

په غزوه احد كښې غشو ويشتونكو دَ حضرت عبيدالله بن جبير رضي الله عنه خبره اونه منله نو فتح په شكست كښې بدله شوه چه معاملات په خپل مينځ كښې په اتفاق او مشاورت سره فيصله شى نو په هغې كښې بركت وى كه اميردَ چا رائې ته ترجيح وركړى اوهغې سره دَچااختلاف وى نو دَ خپلې رائې دَ اختلاف دَ وجه نه دَ حدنه بهرنه دى وتل پكار په داسې موقعوباندې دَ

---

(١) كتاب الوضوء باب غسل المرءة أباهاالدم عن وجهه.

(٢) كتاب الوضوء باب غسل المرءة أباهاالدم عن وجهه.

(٣) كتاب المغازى:ص: ٢٤٧.

(٤) فتح البارى:٦/ ٢٠٠ وعمدة القارى: ١٤/ ٣٨٩ وإرشادالسارى:٦/ ٥٠٧.

صبراوتحمل نه کاراخستل پکاردی حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه غوندې عظیم د جنګ فاتح دهغه د عهدې نه معزول کړو هغه د تصادم او محاذ آرائی کولو په ځائې دافیصله په خوشحالئی سره قبوله کړه اومسلمانان د کډوډ کیدونه بچ شو.

**قوله** وقال الله تعالی: ﴿وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ﴾ /الانفال: ۴۶.

امام بخاری رحمه الله د خپل عادت مطابق د باب مناسبت سره ایت نقل کړې دې پوره ایت ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ اود الله تعالی اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم اطاعت کوئې او (خپل مینځ کښې) جګړه مه کوئې ګنی کم همت به شئ او ستاسو هوا به اوچته کړې شی اوصبرکوئې بیشکه الله تعالی صبرکونکوسره دې

د الله تعالی اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم اطاعت خو واجب دې په سیاق ایت کښې د دې اطاعت د تاکید کولومطلب دادې چه احکام او د جنګ تدبیرونو کښې دالله تعالی اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم د حکم اودهغوی مرضی اومنشاء پابندې تلل واجب دی خپله رائې اود نفس منل او په خپل مینځ اختلاف او جګړې کوئی نوددې نتیجه به ستاسو همت ښکته کیدو په صورت کښې ښکاره کیږی اود دښمنانو په زړونو چه ستاسو کوم رعب اودبدبه خوره ده هغه به ختمیږی په دې وجه که د جنګ په حال کښې څه ناخوښه حالات پیداشی نو د صبر اواستقامت نه کار واخلئ. صبرکونکوسره خو د الله تعالی ملګرتیاشامل حال وی اوهم دغه ملګرتیا د فتح اونصرت د ټولو نه لوئې ضمانت دې.

**قوله** قال قتادة: الريح الحرب: امام بخاری رحمه الله د قتاده قول نقل کړې دې هغه د ریح تفسیر حرب سره کړې دې په دې صورت کښې د آیت مطلب دی که تاسو په خپل مینځ کښې جنګیږئ نو همت به موښکته شی یعنی کم به شی اوستاسو جنګی طاقت به هم ختمیږی.[1] د قتاده دا اثر عبدالرزاق رحمه الله په خپل تفسیرکښې عن معمر عن قتاده په طرق سره موصولاً نقل کړې دې.[2] مجاهد رحمه الله د ریح تفسیر نصر سره کړې دې.[3] یعنی د جګړو په صورت کښې به تاسو د الله تعالی د نصرت نه محروم شئ. یوقول دا هم دې چه ریح نه دولت او سلطنت مراددې یعنی د خپل مینځ اختلافات او جګړو د وجه نه به ستاسو حکومت او سلطنت ختم شی.[4]

[حدیث نمبر ۲۸۷۳][5] حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا وَكِيعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - بَعَثَ مُعَاذًا وَأَبَا مُوسَى إِلَى الْيَمَنِ قَالَ « يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا، وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا، وَتَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا ». [۴۰۸۶ _ ۴۰۸۸، ۵۷۷۳، ۶۷۵۱]

---

[1] ) فتح الباری: ۶/ ۲۰۰.
[2] ) تغلیق التعلیق لابن حجر: ۳/ ۴۵۷.
[3] ) عمدة القاری: ۲/ ۳۹۰.
[4] ) عمدة القاری: ۲/ ۳۹۰.
[5] ) مرتخریجه فی کتاب الاجارة باب استئجار الرجل الصالح رقم: ۲۲۶۱.

## رجال الحدیث

① **یحیی**: دا ابوزکریا یحیی بن جعفر ازدی البخاری البیکندی رحمه الله دې دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۱)

② **وکیع**: دامشهورامام محدث ابوسفیان وکیع بن الجراح بن ملیح الرواسی الکوفی رحمه الله دې دَ دوی حالات کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیرشوی دی (۲)

③ **شعبه**: دا شعبه بن الحجاج بن الورد العسکی واسطی رحمه الله دې دَ دوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې وړاندې تیرشوی دی (۳)

④ **سعیدبن ابی برده**: دا سعیدبن ابی بردة عامربن موسی الکوفی رحمه الله دې دَدوی تذکره وړاندې تیره شوې ده (۴)

⑤ **عن ابیه**: دَدې نه دَ سعیدبن ابی برده پلار عامر یا حارث بن موسی الاشعری رحمه الله مراد دې دَ دوی تذکره کتاب الایمان باب أی الاسلام أفضل لاندې تیره شوې ده (۵)

**عن جده**: دَدې نه دَ ابوبرده نیکه مشهورصحابی ابوموسی عبدالله بن قیس الاشعری رضی الله عنه مراد دې دَدوی تذکره هم په مذکوره کتاب اوباب کښې تیره شوې ده (۶)

**أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بعث معاذا وأبا موسی إلی الیمن قال: یسرا ولاتعسرا، وبشرا ولاتنفرا، وتطاوعا ولاتختلفا**

رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ او ابوموسی رضی الله عنهما دَ یمن طرف ته اولیګل داد حجة الوداع نه دَ وړاندې واقعه ده یعنی دا دواړه نی دَ یمن طرف ته حاکمان جوړولوسره اولیګل حضورپاک صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل په خلقو اسانی کوئې سختی مه کوئې هغوی ته خوشخبری اوروئې نفرت مه ورکوئی اتفاق کوئې اختلاف مه کوئی وړاندې کتاب المغازی کښې دا روایت په تفصیل سره راروان دې (۷)

**ترجمة الباب سره مطابقت**: په روایت کښې دی ولاتختلفا ترجمة الباب سره دَدې مطابقت ښکاره دې (۸)

---

(۱) کتاب الخوف باب یحزن بعضهم بعضا فی صلاة الخوف رقم:۹۴۵.

(۲) کشف الباری:۴/۲۱۹ — ۲۲۶.

(۳) کشف الباری:۱/۶۷۸.

(۴) کتاب الزکاة باب علی کل مسلم صدقة رقم:۱۴۴۵.

(۵) کشف الباری:۱/۲۹۰.

(۶) کشف الباری:۱/۲۹۰.

(۷) کشف الباری: کتاب المغازی:ص:۵۶۵.

(۸) عمدة القاری:۱۴/۳۹۰.

[حديث نمبر ۲۸۷۴] [1] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ - رضى الله عنهما - يُحَدِّثُ قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الرَّجَّالَةِ يَوْمَ أُحُدٍ - وَكَانُوا خَمْسِينَ رَجُلاً - عَبْدَ اللَّهِ بْنَ جُبَيْرٍ فَقَالَ « إِنْ رَأَيْتُمُونَا تَخْطَفُنَا الطَّيْرُ فَلاَ تَبْرَحُوا مَكَانَكُمْ هَذَا حَتَّى أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ، وَإِنْ رَأَيْتُمُونَا هَزَمْنَا الْقَوْمَ وَأَوْطَأْنَاهُمْ فَلاَ تَبْرَحُوا حَتَّى أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ » فَهَزَمُوهُمْ. قَالَ فَأَنَا وَاللَّهِ رَأَيْتُ النِّسَاءَ يَشْتَدِدْنَ قَدْ بَدَتْ خَلاَخِلُهُنَّ وَأَسْوُقُهُنَّ رَافِعَاتٍ ثِيَابَهُنَّ، فَقَالَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جُبَيْرٍ الْغَنِيمَةَ - أَىْ قَوْمِ - الْغَنِيمَةَ، ظَهَرَ أَصْحَابُكُمْ فَمَا تَنْتَظِرُونَ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جُبَيْرٍ أَنَسِيتُمْ مَا قَالَ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالُوا وَاللَّهِ لَنَأْتِيَنَّ النَّاسَ فَلَنُصِيبَنَّ مِنَ الْغَنِيمَةِ. فَلَمَّا أَتَوْهُمْ صُرِفَتْ وُجُوهُهُمْ فَأَقْبَلُوا مُنْهَزِمِينَ، فَذَاكَ إِذْ يَدْعُوهُمُ الرَّسُولُ فِي أُخْرَاهُمْ، فَلَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - غَيْرُ اثْنَىْ عَشَرَ رَجُلاً، فَأَصَابُوا مِنَّا سَبْعِينَ، وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَصْحَابُهُ أَصَابَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ بَدْرٍ أَرْبَعِينَ وَمِائَةً سَبْعِينَ أَسِيرًا وَسَبْعِينَ قَتِيلاً، فَقَالَ أَبُو سُفْيَانَ أَفِي الْقَوْمِ مُحَمَّدٌ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ، فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُجِيبُوهُ ثُمَّ قَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ الْخَطَّابِ ثَلاَثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى أَصْحَابِهِ فَقَالَ أَمَّا هَؤُلاَءِ فَقَدْ قُتِلُوا. فَمَا مَلَكَ عُمَرُ نَفْسَهُ فَقَالَ كَذَبْتَ وَاللَّهِ يَا عَدُوَّ اللَّهِ، إِنَّ الَّذِينَ عَدَدْتَ لأَحْيَاءٌ كُلُّهُمْ، وَقَدْ بَقِىَ لَكَ مَا يَسُوؤُكَ. قَالَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ، وَالْحَرْبُ سِجَالٌ، إِنَّكُمْ سَتَجِدُونَ فِي الْقَوْمِ مُثْلَةً لَمْ آمُرْ بِهَا وَلَمْ تَسُؤْنِي، ثُمَّ أَخَذَ يَرْتَجِزُ أُعْلُ هُبَلْ، أُعْلُ هُبَلْ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « أَلاَ تُجِيبُوا لَهُ ». قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا نَقُولُ قَالَ « قُولُوا اللَّهُ أَعْلَى وَأَجَلُّ ». قَالَ إِنَّ لَنَا الْعُزَّى وَلاَ عُزَّى لَكُمْ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « أَلاَ تُجِيبُوا لَهُ ». قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا نَقُولُ قَالَ « قُولُوا اللَّهُ مَوْلاَنَا وَلاَ مَوْلَى لَكُمْ ».

[۳۷۶۴، ۳۸۱۷، ۳۸۴۰، ۴۲۸۵].

## رجال الحديث

① **عمرو بن خالد**:- دا ابوالحسن عمروبن خالد بن فروخ بن سعيد التميمى الحرانى رحمه الله دي. د دوى تذكره كتاب الايمان باب الصلوة من الايمان لاندې تيره شوې ده. [2]

② **زهير**:- دا ابوخيثمه زهير بن معاويه بن حديج بن الرحيل بن زهير بن خيثمه الجعفى الكوفى رحمه الله دي. ددوى تذكره هم په مذكوره باب او كتاب كښې تيره شوې ده. [3]

[1] ) إخرجه البخارى أيضًا فى المغازى باب بلاترجمة رقم:۳۹۸۶وباب غزوة أحدرقم:۴۰۴۳وباب إذتصعدون ولاتلوون على أحد رقم:۴۰۶۷ وفى كتاب التفسير باب قوله تعالى ﴿وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ فِي أُخْرَاكُمْ﴾ رقم:۴۵۶۱.

[2] ) كشف البارى:۲/۳۶۶.

[3] ) كشف البارى:۲/۳۶۷.

④ **ابواسحاق** دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبيد السبيعي رحمه الله دي ددوى تذكره هم په مذكوره كتاب اوباب كښې تيره شوې ده [۱]

⑤ **براء بن عازب** رضي الله عنه دامشهورصحابي براء بن عازب بن الحارث بن عدي الانصاري الحارثي الادوسي رحمه الله دي ددوى تذكره هم په مذكوره كتاب اوباب كښې تيره شوې ده [۲]

**قوله** جعل النبي صلى الله تعالى عليه وسلم على الرجالة يوم أحد – وكانوا خمسين رجلا – عبدالله بن جبير: رسول الله ﷺ د احد په ورځ د پنځوسو كسانو امير عبدالله بن جبير رضي الله عنه مقرر كړو

الرجالة: دا خلاف قياس د راجل جمع ده [۳] يعني پيدل تلونكي

**قوله** فقال إن رأيتمونا تخطفنا الطير فلا تبرحوا مكانكم هذا حتى أرسل إليكم، فرزموهم: رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كه چرې تاسو مونږ اوګورئ چه مرغئ مونږ اوچته وي نوبيا به هم تاسو خپل ځائې نه پرېږدئ ترهغه وخته پورې چه زه تاسو ته پيغام دراوليګم نو مسلمانانو كافرانو ته شكست وركړو

تخطفنا: خَطِفَ يَخْطَفُ د نصر نه دې معنى ده اوچتول. راښكل. په زور اخستل شارحينو د دې جملې تقدير بيان كړې دې إن قتلنا وأكلت الطير لحومنا فلا تبرحوا مكانكم [۴] كه چرې مونږ قتل كړې شو او مرغئ زمونږ غوښه راكاږي خوري نوبيا هم تاسو دَخپل ځائې نه مه خوزېږئ

**قوله** وإن رأيتمونا هزمنا القوم وأوطأناهم فلا تبرحوا حتى أرسل إليكم: كه چرې تاسو مونږ اووينئ چه مونږ كفار قوم ته شكست وركړو او هغوى مو چخڼرې كړه نوبياهم د خپل ځائې نه اونه خوزئ ترهغه وخته پورې چه زه تاسو ته پيغام دراوليګم

أوطأناهم: وطأ الشئ وطأ معنى ده دَ خپولاندې كول. چخڼرې كول. وطئ العدو په دښمن باندې ورختل علامه كرماني رحمه الله فرمائي أوطناهم په شروع كښې همزه دَتعريض دَپاره ده أي جعلناهم في معرض الدوس بالقدم. [۵] يعني چه مونږ هغوى په داسې ځائې كښې واچوى چرته چه دَ خپو لاندې كولې شي

دَ احمد حاكم او طبراني روايت دې چه ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: أن النبي صلى الله تعالى عليه وسلم

---

[۱] كشف البارى: ۲/ ۳۷۰.

[۲] كشف البارى: ۲/ ۳۷۵.

[۳] عمدة القارى: ۱۴/ ۳۹۱ وإرشادالسارى: ۶/ ۵۰۸ – ۵۰۹.

[۴] عمدة القارى: ۱۴/ ۳۹۲ وإرشادالسارى: ۶/ ۵۰۹.

[۵] شرح الكرمانى: ۱۳/ ۳۷.

اقامهم في موضع ثم قال: احموا ظهورنا فان رائيتمونا نقتل فلاتنصرونا وان رأيتمونا قد غنمنا فلا تشركونا (۱)
يعنى رسول اكرم ﷺ دَ صحابه كرامو دغه ټولې په يوځائي باندې مقرركړو ورته ئې اوفرمائيل تاسو زما شاته خيال كوئي كه تاسو مونږ قتل كيدونكى اوګورئي نوزمونږ امدادمه كوئي اوكه تاسو مونږ په مال غنيمت اخستو سره اووينئي نو په هغې كښې مونږ سره شركت مه كوئي

**قوله** قال: فانا والله رأيت النساء يشددن، قد بدت خلا خلهن وأسوقهن رافعات ثيابهن..: براء بن عازب ﷺ وائي په خدائي ما (مشركانې) ښځې په داسې حال كښې منډې وهونكې اوليدلې چه دهغوى پائزيبونه او ښكاره وې او خپلې كپړې ئې اوچتې كړې وې

يشددن:- أي يسرعن في المشي (۲) يعنى ښځو منډې وهلې په تيزئي سره رواني وې يادا د حملې كولو په معنى كښې دې اومطلب دادې چه هغوى په كافرانو باندې حمله كونكې وې أي: يشتددن على الكفار يقال: شد عليه في الحرب أي حمل عليه. (۳) بعض نسخو كښې يسندن الفظ هم واردشوى دى. دا دَ سندنه دې يعنى دَ غرونودَلمن اوچته حصه. په دې صورت كښې مطلب دادې چه ښځې دَ غره دَ لمن په اوچته حصه كښې روانې وې دې دَپاره چه په غر وراوخيژي أي يمشين في سند الجبل يردن أن يرقين الجبل. (۴)

دَ دغه مشركانو ښځوتعداد پنځلس وو. ابن اسحاق په دوى كښې دَ بعضو ښځو نومونه هم ذكركړى دى ① هندبنت عتبه، دا ابوسفيان سره وه. ② ام حكيم بنت الحرث بن هشام. داخپل خاوندعكرمه بن ابو جهل سره وتلې وه. ③ فاطمه بنت وليدبن مغيره. داخپل خاوند حرب بن هشام سره وتلې وه. ④برزه بنت مسعود، دا صفوان بن اميه سره تلې وه. ⑤ ريطة بن شيبة. داخپل خاوندعمرو بن عاصي سره تلې وه. ⑥ سلافه بنت سعد. داخپل خاوند طلحه بن ابى طلحه الحجبى سره وتلې وه. (۵)

**قوله** فقال أصحاب ابن جبير: الغنيمة أي قوم الغنيمة، ظهر أصحابكم فما تنتظرون؟ فقال: عبدالله بن جبير......: دَعبدالله بن جبير ﷺ ملګرواووئيل دَ غنيمت مال وهنې ستاسو ملګرى غالب راغلى دى اوس دَ څه څيزانتظاردې؟ عبدالله بن جبير ﷺ اووئيل آيا تاسو دَ رسول الله ﷺ فرمان هيركړو؟ يعنى رسول الله ﷺ فرمائيلى وو

---

۱) مسندأحمدبن حنبل:۱/۲۸۷.
۲) إرشادالساري:۶/۵۰۹.
۳) عمدة القاري:۱۴/۳۹۲ وإرشاد الساري:۶/۵۰۹.
۴) عمدة القاري:۱۴/۳۹۲ وإرشادالساري:۶/۵۰۹ والنهاية لابن الاثير:۱/۸۵۰.
۵) عمدة القاري:۱۴/۵۰۹ وإرشاد الساري:۶/۵۰۹.

چه دخپل خائى نه مه خوزئى آياتاسو دافرمان هيركړو؟ د ابن جبير رضي الله عنه ملګرو اووئيل په خدائى مونږ خوبه دغه خلقو سره د غنيمت مال راغونډوو كله چه دا ټول د مال غنيمت دپاره لاړل نو كافرانو دهغوى مخونه واړول او شكست خوړلوسره واپس راغلل رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د دولسو كسانونه علاوه هيڅ څوك پاتې نه شواوكافرانوزمونږ اوياكسان شهيدان كړل او حضورپاك اودهغوى ملګرو د بدر په ورځ يوسل څلويښت كافرانو نقصان كړې وو اويائى قيدكړې وو او اويائى قتل كړې وو

دې نه پس ابوسفيان درې ځل اووئيل افي القوم محمد؟ آيا په دې خلقو كښې محمدشته؟ رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د جواب وركولونه منع اوكړه سوال بې فائدې وو په دې وجه حضورپاك جواب وركول د مصلحت خلاف اوګڼړلو ابوسفيان بيا درې ځل اووئيل افي القوم ابن ابي قحافة ايا په دې خلقو كښې ابن ابوقحافه (ابوبكر رضي الله عنه) شته؟ ابوقحافه د ابوبكر رضي الله عنه د پلار عثمان كنيت وو بياهغه درې ځل اووئيل افي القوم ابن الخطاب؟ آيا په دې خلقو كښې عمربن الخطاب شته؟ دې ونيلوسره ابوسفيان خپلو ملګروله لاړو وئى ونيل چه دا ټول خوقتل شوى دى حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په خپل خان باندې قابو اونه كړې شوه او بې اختياره ئى چغه كړه اې دالله دښمنه ته دروغ وې د چانومونه چه تا واخستل هغه ټول ژوندى دى او اوس په تاسو باندې خراب وخت راتلونكې دې ابوسفيان اووئيل د نن ورځ د بدر د ورځې بدله ده جنګ خود ډولچې په شان دې (كله د يوپه لاس كښې اوكله د بل په لاس كښې وى دغه شان فتح كله د يوې ډلې او كله د بلې ډلې وى) ته به په خپل قوم كښې مثله يعنى بوچې كيدل وينې ما ددې حكم نه وو وركړې خو ماته دا خراب هم ښكاره نه شو ابوسفيان دقريش مكه سرداروو اود مسلمانانو دښمن ددې جملې نه دهغه مقصد داخودل ووچه دمثله غوندې قبيح حركت حكم ماته وو وركړې څكه چه ددې نقصان هم دغه كاركونكى اوچتوى خوچه كله ماته ددې مثله علم اوشو نوماته بد اونه لګيدل څكه چه تاسو زمونږ دښمنان ئى تاسو ته تكليف رسيدو سره زه خوشحاليدې شم.

دې نه پس ابوسفيان رجزيه مصرعه اووئيله أُعْلُ هُبَلُ أُعْلُ هُبَلُ اې هبل ته اوچت اوسه. اې هبل ته اوچت اوسه هبل د قريشود بت نوم وو كوم چه عمرو بن لحى د قريشودپاره راوړلې وو اوكعبه كښې ئى كيخودې وو رسول اكرم صلى الله عليه وسلم صحابه كرامو ته اوفرمائيل آيا تاسو ده ته جواب نه وركوئى؟ صحابه كرامو عرض اوكړو مونږ څه جواب وركړو؟ حضورپاك اوفرمائيل جواب وركړئى الله أعلى وأجل الله تعالى د ټولونه اوچت او لوئى دې

ابوسفيان اووئيل إن لنا عزى ولا عزى لكم زمونږ دپاره عزى بت دې ستاسو دپاره نه دې حضورپاك اوفرمائيل تاسو ده ته جواب نه وركوئى؟ صحابه كرامو عرض اوكړو څه جواب وركړو؟ حضورپاك اوفرمائيل تاسو داسې وايئى الله مولانا ولامولالكم الله تعالى زمونږ مددګار دې او ستاسو هيڅوك مددګار نشته

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دا اوږدحديث امام بخارى رحمه الله ددې خودلودپاره نقل كړې دې چه په جنګ احد كښې د اهل اسلام د شكست سبب دعبدالله بن جبير رضي الله عنه ملګرى وو رسول الله

ﷺ هغوی ته حکم ورکړې ووچه لاتبرحوامکانکم تاسو دخپل ځائې نه مه خوزئې لیکن هغوی مخالفت اوکړو اودغه مخالفت د وجه نه مسلمانانوته شکست اوشو علامه عینی رحمه الله فرمائی د ترجمة الباب مناسبت د روایت دې جملې أصحاب عبدالله بن جبیر سره دې ځکه چه هم ددوی د مخالفت په نتیجه کښې مسلمانانو د شکست مخ لیدلې وو. (۱)

## باب ۱۶۲: إذا فزعوا بالليل

**د ترجمة الباب مقصد**.-حافظ ابن حجر علامه عینی او علامه قسطلانی رحمهم الله فرمائی دَدې ترجمة الباب نه امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی که د شپې داسې واقعه راپیښه شی په کوم سره چه په خلقوکښې ویره پیداشی نو امیرله پکاردی چه یاخودې پخپله دهغې دتحقیق دپاره اوځی اویا چه څوك ماسب کنړی دتحقیق دپاره دې اولیګی. (۲)

[حدیث نمبر ۲۸۷۵] (۳) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ -رضى الله عنه- قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَحْسَنَ النَّاسِ، وَأَجْوَدَ النَّاسِ، وَأَشْجَعَ النَّاسِ، قَالَ وَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَيْلَةً سَمِعُوا صَوْتًا، قَالَ فَتَلَقَّاهُمُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى فَرَسٍ لأَبِى طَلْحَةَ عُرْىٍ، وَهْوَ مُتَقَلِّدٌ سَيْفَهُ فَقَالَ «لَمْ تُرَاعُوا، لَمْ تُرَاعُوا». ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «وَجَدْتُهُ بَحْرًا». يَعْنِي الْفَرَسَ. [ر: ۲۴۸۴]

## رجال الحديث

① **قتیبه بن سعید**:- دا ابورجاء قتیبه بن سعید بن جمیل بن طریف الثقفی رحمه الله دې کتاب الایمان باب أفشا السلام من الاسلام لاندې د دوی تذکره تیره شوې ده. (۴)

② **حماد**:- داحمادبن زید بن درهم الازدی البصری رحمه الله دې کتاب الایمان باب المعاصی من أمرالجاهلیة ولایکفرصاحبها بارتکابها إلا بالشرك لاندې ددوی تذکره تیره شوې ده (۵)

③ **ثابت**:- داابومحمد ثابت بن اسلم البنانی البصری رحمه الله دې کتاب العلم باب القراءة والعرض على المحدث لاندې د دوی تذکره تیره شوې ده. (۶)

④ **انس**:- دامشهورصحابی انس بن مالك رضی الله عنه دې ددوی تذکره کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده. (۷)

---

۱) عمدة القاری: ۱۴/۳۹۱.
۲) فتح الباری: ۶/۲۰۱ عمدة القاری: ۱۴/۳۹۴ إرشادالساری: ۶/۵۱۱.
۳) مرتخریجه فی کتاب الهبة وفضلها ولتحرض علیها باب من استعار من الناس الفرس رقم: ۲۶۲۷.
۴) کشف الباری: ۳/۱۸۹.
۵) کشف الباری: ۲/۲۱۹.
۶) کشف الباری: ۳/۱۸۳.
۷) کشف الباری: ۲/۲۱۴.

حضرت انس رضی الله عنه وائی رسول الله صلی الله علیه وسلم د ټولونه زیات ښائسته د ټولونه زیات سخی اود ټولونه زیات بهادروو مدینې والااوویریدل هغوی څه آواز آوریدلې وو د خبراخستلودپاره د کورونه بهر راوتلې وو، رسول اکرم صلی الله علیه وسلم چه د ټولو نه وړاندې رسیدلې وو، د ابوطلحه رضی الله عنه په اس باندې په بربنډه ملاباندې سور توره زوړنده واپسی کښې هغه سره ملاؤ شو حضورپاک اوفرمائیل لم تراعوا لم تراعوا هیڅ ویره نشته هیڅ ویره نشته بیانی اوفرمائیل مونږ دا اس د سمندر په شان محسوس کړو دا اس د ابوطلحه رضی الله عنه وو رسول الله صلی الله علیه وسلم عاریتا اخستې وو. په ښه رفتار او ښه کولاؤ سل کښې حضورپاک دا سمندر سره تشبیه کړو اوداد حضورپاک د برکت اثروو دا روایت کتاب الهبه په آخراو مختلف ابواب کښې هم کتاب الجهادکښې خوځل تیرشوې دې (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت:**- ترجمة الباب سره **فتلقاهم النبی صلی الله تعالی علیه وسلم** سره مناسبت ښکاره دې.

## باب ۱۶۳: من رأی العدو فنادی بأعلی صوته: یاصباحاه، حتی یسمع الناس

یاصباحاه:- د حاء نه پس الف د استغاثه دپاره دې او په آخره کښې "ه" ندبه دپاره ده داجمله د استغاثه دپاره استعمالیږی او عربوبه دا حمله کونکی دښمن نه غافل خلق خبرولودپاره استعمالوله. شراح د دې وجه تسمیه دا تحریرکړې ده چه دښمنان به د شپې د جنګ نه منع کیدل اوبیابه سحر وختې تازه شو دوباره به ئی حمله کوله لکه چه په یاصباحاه سره به ئی قوم په دې خبردارکولو چه سحرشوې دې د حملې دپاره تیارشئی. **فکانه یرید بقوله یا صباحاه: قد جاء وقت الصباح فتاهبوا للقتال.** (۲)

**د ترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری دلته دا وئیل غواړی چه کافرانو به حمله کونکی دښمن اولیدلو نودخپل ملګرو د امداددپاره به ئي آواز کولووخت کښې د جاهلیت په زمانه کښې یاصباحاه وئیل دا جمله به سره ددې چه د جهالت په دورکښې کافرانو استعمالوله ولې د مسلمانانودپاره د دې په استعمال کښې هیڅ بدی نشته چه دا منهی عنها دعوی د جاهلیت نه نه ده. (۳)

[حدیث نمبر ۲۸۷۶] (۴) حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ قَالَ خَرَجْتُ مِنَ الْمَدِينَةِ ذَاهِبًا نَحْوَ الْغَابَةِ، حَتَّى إِذَا كُنْتُ بِثَنِيَّةِ الْغَابَةِ لَقِيَنِي غُلَامٌ لِعَبْدِ

---

(۱) کشف الباری: کتاب المغازی: ص: ۲۲۰.

(۲) النهایة فی غریب الحدیث والاثر لابن الاثیر: ۸/۲ وعمدة القاری: ۳۹۵/۱۴.

(۳) فتح الباری: ۲۰۲/۶.

(۴) وعند البخاری: ۶۰۳/۲ أیضًا فی المغازی، باب غزوة ذی قرد رقم: ۴۱۹۴ وعندمسلم فی صحیحه ۱۱۳/۲: فی الجهاد والسیر، باب غزوة ذی قرد وغیرها رقم: ۴۴ ۴ وعندأبی داؤد فی سننه: ۲۲/۲ فی الجهاد باب فی السریة ترد علی أهل العسکر رقم: ۲۷۵۲.

الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قُلْتُ وَيْحَكَ، مَا بِكَ قَالَ أُخِذَتْ لِقَاحُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قُلْتُ مَنْ أَخَذَهَا قَالَ غَطَفَانُ وَفَزَارَةُ. فَصَرَخْتُ ثَلَاثَ صَرَخَاتٍ أَسْمَعْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا يَا صَبَاحَاهْ، يَا صَبَاحَاهْ. ثُمَّ انْدَفَعْتُ حَتَّى أَلْقَاهُمْ وَقَدْ أَخَذُوهَا، فَجَعَلْتُ أَرْمِيهِمْ وَأَقُولُ:

أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعِ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ،

فَاسْتَنْقَذْتُهَا مِنْهُمْ قَبْلَ أَنْ يَشْرَبُوا، فَأَقْبَلْتُ بِهَا أَسُوقُهَا، فَلَقِيَنِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ، إِنَّ الْقَوْمَ عِطَاشٌ، وَإِنِّي أَعْجَلْتُهُمْ أَنْ يَشْرَبُوا سِقْيَهُمْ، فَابْعَثْ فِي إِثْرِهِمْ، فَقَالَ «يَا ابْنَ الْأَكْوَعِ، مَلَكْتَ فَأَسْجِحْ. إِنَّ الْقَوْمَ يُقْرَوْنَ فِي قَوْمِهِمْ». [٣٩٥٨]

## رجال الحديث

① **المكى بن ابراهيم** - دامكى بن ابراهيم بن بشير بن فرقد تميمى حنظلى بلخى رحمه الله دي كتاب العلم باب من أشار الفتيا باشارة اليد والرأس لاندې دَدوى تذكره تيره شوې ده (۱)

② **يزيدبن ابى عبيد** - دامشهور تابعى حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنه آزادكړې شوې غلام ابوخالد يزيد بن ابى عبيد اسلمى حجازى رحمه الله دي دَدوى تذكره كتاب العلم باب إثم من كذب على النبى صلى الله تعالى عليه وسلم لاندې تيره شوې ده (۲)

③ **سلمه** -دا سلمه بن عمر بن الاكوع الاسلمى المدنى رضي الله عنه دي دَدوى تذكره هم په مذكوره كتاب اوباب كښې تيره شوې ده (۳)

**قوله** خرجت من المدينة ذاهبًا نحوالغابة حتى إذا كنت بثنية الوداع لقينى غلام...: حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنه فرمائى زه دَ مدينې نه بهر غابه (صحرا) ته لاړم كله چه زه دَ غابه غرته اورسيدم نوماته دَ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه غلام ملاؤشو ماونيل ته دلته څنګه؟ هغه ونيل دَ رسول الله ﷺ اوښې نيولې شوى دى ما ونيل چا؟ غلام اوونيل دَ غطفان او فزاره خلقو. مادرې خل ياصباحاه په اوچت آواز سره چغه اووهله اودَمدينې دَ دوو كانړيجنې زمكو په مينځ كښې پوره آبادئى ته مې خپل آواز واورولو بيا زه مخكې لاړم تردې چه هغوى سره ملاؤشوم هغوى اوښې نيولې وې مابه په هغوى باندې غشې ورولو او دابه مې ونيل

أنا ابن الاكوع والیوم یوم الرضع

يعنى زه دَ اكوع خوئى يم اونن دَ كمينه خلقو دَ بربادئى ورځ ده مادهغوى نه هغه اوښې واخستې ددې نه وړاندې چه هغوى اوبه څكلې وې. زه وړاندې لاړم په دې كښې ماسره رسول الله ﷺ ملاؤشو ماعرض اوكړو: يارسول الله! إن القوم عطاش، وإني أعجلتهم أن يشربوا سقيهم، فابعث

---

(۱) كشف البارى: ٣/ ٤٨١.

(۲) كشف البارى: ٤/ ١٨٢.

(۳) كشف البارى: ٤/ ١٨٣.

في أثرهم. دغه خلق تکي دی ماد هغوی نه اوښې راخلاصې کړې د هغوی د اوبوڅکلو نه وړاندې لېذا تاسو هغوی پسې فوج روان کړئ. حضور پاك اوفرمائیل یاابن الاکوع! ملکت فاسجح، إن القوم یقرون في قومهم. اې ابن الاکوع! کله چه تا په قوم باندې غلبه بیاموندله نو اوس د نرمئ نه کار واخله ددې خلقو خو په خپل قوم کښې میلمستیا کیږی

یقرون:- دا د قراء نه د مضارع مجهول صیغه ده د قراء معنی ده میلمستیا ضیافت ددې جملې مطلب دادې چه اوس هغه خلق خپلې قبیلې غطفان ته اورسیدل هلته د هغوی خاطر تواضع او میلمستیا کیږی. په دې وجه اوس هغوی پسې فوج لیګلو هیڅ فائده نشته معناه أنهم وصلوا إلی غطفان وهم یضیفونهم ویساعدونهم فلا فائدة في الحال في البعث لأنهم لحقوا بأصحابهم (١)

د صحیح بخاری په بعض نسخو کښې دالفظ یقرون د یاء په زبر او د راء پیش سره راغلې دې ددې معنی ده هغوی د میلمانو ضیافت کوی په دې صورت کښې به د مذکوره جملې مطلب دا شی چه ته هغوی سره د نرمئ معامله اوکړه ځکه چه دا خلق د میلمانو ضیافت کوی رسول الله ﷺ ته د هغه خلقو د توبې ویستلو امید وو په دې وجه حضور پاك هغوی سره دا رعایت اوکړو (٢)

**فائده:**- دا حدیث د امام بخاری رحمه الله د ثلاثیات نه دې

**ترجمة الباب سره مناسبت:**- په حدیث باب کښې دی یاصباحاه یاصباحاه ترجمة الباب سره ددې مطابقت ښکاره دې

## باب ۱۶۴: من قال: خذها وأنا ابن فلان

**قوله خذها وأنا ابن فلان:**- دا جمله د فخر د ښکاره کولو دپاره استعمالیږی د حدیث شارحینو فرمائیلی دی دغه شان مختلف جملې د عربو بهادر جنګیالې په دښمن باندې د خپلې بهادرئ رعب اچولو او په امورحرب کښې خپل مهارت خودلو دپاره د فخریه توګه استعمالولې. خذها وأنا ابن فلان ویونکی به دا مقصد هم وو که په مقابل فریق کښې څوك د بهادرئ دعوی کوی نو هغه دې د مقابلې دپاره بهرراوځی. (٣)

**د ترجمة الباب مقصد:**- امام بخاری رحمه الله په دې ترجمة الباب سره دا باور ورکول غواړی که څوك په میدان جنګ کښې دښمن په رعب کښې راوستو دپاره خذها وأنا ابن فلان وائی نو دا جائزدی. اوکه د فخریه توګه ئې وائی نو جائز نه دی. ځکه چه فخر د کبر علامت دې او تکبر حرام دې. سره ددې چه داجمله اوریدونکوته فخریه معلومیږی خوکه نیت صرف د دښمن په رعب کښې راوستل وی او زړه ئې د فخرنه خالي وی نو ښکاره خبره ده چه داسې ویلو کښې څه بدی نشته. علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی د امام بخاری رحمه الله مقصد دا خودل دی چه دا جمله

---

(١) عمدة القاري: ١/٣٩٧ وإرشاد الساري: ٦/٥١٣.

(٢) إرشاد الساري: ٦/٥١٣.

(٣) شرح ابن بطال: ٥/١٩٩ وعمدة القاري: ١٤/٢٩٨.

داقتضاء حال د وجه نه دمنهی عنه افتخار په ذیل کښې نه راځی (۱)

**قوله** وَقَالَ سَلَمَةُ خُذْهَا وَأَنَا ابْنُ الأَكْوَعِ .ار ۲۸۷۶]

حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه داتعلیق من حیث المعنی د سابقه باب د روایت جزدې (۲)

[حدیث نمبر ۲۸۷۷] (۳) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللهِ عَنْ إِسْرَائِيلَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ سَأَلَ رَجُلُ الْبَرَاءَ-رضی الله عنه- فَقَالَ يَا أَبَا عُمَارَةَ، أَوَلَّيْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ الْبَرَاءُ وَأَنَا أَسْمَعُ أَمَّا رَسُولُ اللهِ-صلی الله علیه وسلم- لَمْ يُوَلِّ يَوْمَئِذٍ، كَانَ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ آخِذًا بِعِنَانِ بَغْلَتِهِ، فَلَمَّا غَشِيَهُ الْمُشْرِكُونَ نَزَلَ، فَجَعَلَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ، أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ قَالَ فَمَا رُئِيَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ أَشَدُّ مِنْهُ .ار ۲۷۰۹]

## رجال الحدیث

① **عبیدالله**:- داعبیدالله بن موسیٰ بن باذام عبسی کوفی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الایمان باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بنی الاسلام علی خمس لاندې تیرشوې دې. (۴)

② **اسرائیل**:- دااسرائیل بن یونس بن ابی اسحاق همدانی سبیعی کوفی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب العلم باب من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه فیقعوا فی أشد منه لاندې تیرشوی دی. (۵)

③ **ابواسحاق**:- دا ابواسحاق عمرو بن عبدالله بن عبید سبیعی دې. د دوی تذکره کتاب الایمان باب الصلوة من الایمان لاندې تیره شوې ده. (۶)

په روایت کښې دی چه یوسړی د براء بن عازب رضی الله عنه نه تپوس اوکړو اې ابوعماره آیا تاسو خلق د غزوه حنین په ورځ تختیدلی وئی. ابواسحاق وائی ما اوریده چه براء رضی الله عنه دا جواب ورکړو أما رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فلم یول یومئذ لیکن رسول الله صلی الله علیه وسلم خو په هغه ورځ نه وو تختیدلې ابوسفیان بن حارث بن عبدالمطلب د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم قچر واګه نیولې وه چه مشرکانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ګیرکړو نو حضورپاك اوفرمائیل

أنا النبی لاکذب أنا ابن عبد المطلب

---

(۱) فتح الباری:۲/۲.

(۲) فتح الباری:۲۰۲/۶ وعمدة القاری:۳۹۸/۱٤.

(۳) مرتخریجه فی کتاب الجهاد باب من قاد دابة غیره فی الحرب.

(۴) کشف الباری:۶۳۶/۱.

(۵) کشف الباری: ٥٤٦/٤.

(۶) کشف الباری:۳۷۰/۲.

یعنی زه نبی یم په دې کښې دروغ نشته اوزه دعبدالمطلب خوئی یم

**ترجمة الباب سره مطابقت** ترجمة الباب سره دحدیث باب جمله أنا النبي لاکذب مناسبت لري په دې کښې درسول الله ﷺ دبهادرئ اوپه جنګ کښې دثابت قدمئ تعریف کړې شوې دې (۱)

## باب ۱۶۵: إذا نزل العدو على حكم رجل

**د ترجمة الباب مقصد** - علامه عینی رحمه الله فرمائی چه باب کښې د إذا حرف شرط جواب محذوف دې اوتقدیری عبارت دادې ینفذ إذا أجازه الامام (۲)

ددې ترجمة الباب نه دامام بخاری رحمه الله مقصد داخودل دی که چرې کافران یومسلمان ته دااووائی او خپل ثالث ئې جوړ کړی چه زمونږ باره کښې هغه کومه فیصله هم کوی مونږ به ئې منو اوکه امام وخت هغه ته د فیصله کولو اجازت ورکړو نو دده فیصله نفاذ به جائزوی (۳)

[حدیث نمبر ۲۸۷۸] (۴) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ - هُوَ ابْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ - عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ - هُوَ ابْنُ مُعَاذٍ - بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَكَانَ قَرِيبًا مِنْهُ، فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ، فَلَمَّا دَنَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ». فَجَاءَ فَجَلَسَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ لَهُ «إِنَّ هَؤُلاَءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ». قَالَ فَإِنِّي أَحْكُمُ أَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ، وَأَنْ تُسْبَى الذُّرِّيَّةُ. قَالَ «لَقَدْ حَكَمْتَ فِيهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ». [۳۵۹۳، ۳۸۹۵، ۵۹۰۷]

## رجال الحدیث

① **سلیمان بن حرب:-** داابوایوب سلیمان بن حرب بن بجیل ازدی بصری رحمه الله دي. کتاب الایمان باب من کره أن یعود فی الکفر کما یکره أن یلقی فی النار من الایمان لاندې ددوی تذکره تیره شوې ده. (۵)

② **شعبه:-** دا شعبه بن الورد العسکی الواسطی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې وړاندې تیرشوی دی. (۶)

---

(۱) عمدة القاری: ۳۹۹/۱۴.

(۲) عمدة القاری: ۳۹۹/۱۴.

(۳) فتح الباری: ۲۰۳/۶ وعمدة القاری: ۳۹۹/۱۴ وإرشاد الساری: ۵۱۴/۶.

(۴) وعندالبخاری أیضًا: ۵۹۱/۲ فی المغازی باب مرجع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم من الاحزاب رقم: ۴۱۲۱ و۱/۵۳۶ – ۵۳۷ فی الاستئذان باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: قوموا إلی سیدکم رقم: ۶۲۶۲ وعندأبی داؤد فی سننه: ۲/ ۳۶۱ – ۳۶۲ فی کتاب الادب باب ماجاء فی القیام رقم: ۵۲۱۵.

(۵) کشف الباری: ۱۰۵/۲.

(۶) کشف الباری: ۶۷۸/۱.

④ **سعدبن ابراهيم** - دا سعدبن ابراهيم بن عبدالرحمن بن عوف القرشي المدني رحمه الله دي د دوی تذکره وړاندې تیره شوې ده [1]

④ **ابوامامه** دا ابوامامة اسعدبن سهل بن حنيف الانصاري المدني رحمه الله دي د دوی تذکره کتاب الايمان باب من کره أن يعود في الکفر کما يکره أن يلقى في النار من الايمان لاندې د دوی تذکره تیره شوې ده [2]

⑤ **ابوسعيد الخدري** رضی الله عنه - دامشهورصحابي سعدبن مالك بن سنان بن عبيدبن ثعلبه الانصاري الخزرجي دي. د دوی تذکره کتاب الايمان باب من الدين الفرار من الفتن لاندې تیره شوې ده [3]

**لمانزلت بنوقريظة على حکم سعدهوابن معاذبعث رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وکان قريبًا منه.......**

په روايت کښې دی چه کله بنوقريظه د حضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه په حکم اوفيصله د قلعه نه راکوزشو نورسول اکرم صلی الله علیه وسلم حضرت سعد راوغوښتلو چه حضورپاك سره نيزدې وو زيات لرې نه وو حضرت سعد رضی الله عنه په خرباندې سور چه کله نيزدې راغلونورسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل قوموا إلى سيدکم د خپل سردارد تعظيم د پاره اودريږئ حضرت سعد رضی الله عنه حضورپاك سره نيزدې کيناستو نوحضورپاك اوفرمائيل دا خلق ستا په فيصله باندې راضي شوی لاندې راکوز شول حضرت سعد رضی الله عنه عرض اوکړو چه زه دا فيصله کوم چه جنګ کونکي سړی دې قتل کړې شي اود دغوی ښځې او بچي دې قيديان کړې شي حضورپاك صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل حکمت فيهم بحکم الملك يعني تاد الله تعالى د حکم مطابق د دوی فيصله اوکړه د غزوه بنوقريظه دا واقعه وړاندې کتاب المغازي کښې په تفصيل سره راروانه ده [4]

**حکمت فيهم بحکم الملك** - الملك د لام کسره سره دې اوښکاره خبره ده چه دې نه الله تعالى مراددې بعض رواياتو کښې د ملك په ځائې لفظ الله تصريح ده [5] قاضي عياض رحمه الله فرمائي د صحيح بخاري په نسخو کښې ملك د لام کسره او فتحه دواړه شان ضبط کړې شوې دي که چرې فتحه صحيح اومنلې شي نودې نه به جبرائيل علیه السلام مراد وی اوتقديرعبارت به داسې شي لقدحکمت فيهم بالحکم الذي جاء به الملك عن الله تعالى يعني تاد دغوی فيصله صحيح د هغه حکم مطابق اوکړه کومه چه جبرائيل علیه السلام د الله تعالى د طرف نه راوړې [6]

حافظ ابن حجر رحمه الله د قاضي عياض رحمه الله په دې توجيه باندې رد کړې دې چه د ملك نه حضرت جبرائيل علیه السلام مراد دې د دغوی په نيزملك هم د لام کسره سره صحيح دې اود دې نه الله تعالى مراددې د دې دوه دليلونه دی

[1] ) كتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه.

[2] ) كشف الباري:۲/۱۲۲.

[3] ) كشف الباري:۲/۸۲.

[4] ) كشف الباري. كتاب المغازي: ص:۲۹۶ – ۳۰۷.

[5] ) عمدة القاري:۱۴/۴۰۰وإرشاد الساري:۶/۵۱۵.

[6] ) عمدة القاري:۱۴/۴۰۰وإرشاد الساري:۶/۵۱۵.

① رومبى دليل دادى چه په يو روايت كښى دا نه دى ذكر شوى چه په دى معامله كښى حضرت جبرئيل عليه السلام د اسمان نه څه حكم راوړى راغلى وى كه چرى داسى وى نو حضرت سعد رضي الله عنه ته به د جنتے د هغو دعوت نه شو وركولے

② دويم دليل دادى چه بعض روايات كښى قضيت بحكم الله تصريح ده لهذا د باب په روايت كښى ملك نه جبرئيل عليه السلام مراد اخستل صحيح نه دى (۱)

**د حديث نه مستنبط فوائد** - ① د روايت نه معلومه شوه چه كه چرى دوه خصم د يو ثالث په فيصله باندى رضامند شى نو د ثالث فيصله به په هر صورت منل واجب شى علامه عينى رحمه الله فرمائى چه د دى روايت سره د خوارج د نظريے ترديد كيږى چه د حضرت على رضي الله عنه د تحكيم نكرونى كړى وو (۲)

② كه د حكمران په مجلس كښى يو مسلمان د قبيلى سردار يا صاحب فضل سړے خو موجود وى نو حكمران له پكاردى چه د هغه د عزت حكم وركړى او د مجلس نورو حاضرينو ته اووائى چه د هغه د تعظيم د پاره او دريږى علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا طرز عمل د حضرت معاويه رضي الله عنه د دى حديث معارض نه دى په كوم كښى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى من سره أن يتمثل له الرجال قيامًا فليتبوأ مقعده من النار داځكه چه حضور پاك دا وعيد د متكبرينو او داسى خلقو د پاره كښى ارشاد فرمائيلى چه په خپل تعظيم كښى نه او دريدونكو باندى د غم او غصے اظهار كوى (۳)

## باب ۱۶۶: قتل الاسير، وقتل الصبر

الصبر - په لغت كښى د صبر معنى ده الحبس (۴) منع كول صبرًا د قتل كولو مطلب داوى چه د قيدى خپے لاسونه او تړلى شى او د هغے نه پس ئى قتل كړى (۵)

په پيش نظر نسخو كښى د ترجمة الباب دوه جزونه دى قتل الاسير او قتل الصبر د رومبى جزنه دا خودل مقصود دى چه قيدى په مروجه طريقه سره قتل كول جائزدى او د دويم جز مقصد دادى چه د قيدى خپے لاسونه په رسئى تړلو نه پس هم قتل كول جائزدى خو د كشميهنى په روايت كښى د باب عبارت دادى باب قتل الاسير صبرًا (۶) په دى روايت كښى دويم جز وقتل الصبر نشته كه د كشميهنى د روايت اعتبار اوكړے شى نو بيا ظاهره ده چه امام بخارى رحمه الله د د ته هم يو خبره خودل غواړى چه قيدى د خپو لاسونه نه تړلو سره قتل كول جائزدى

د علامه عينى رحمه الله د پيش نظر نسخے عبارت داسے دے باب قتل الاسير صبرًا وقتل الصبر په دى

---

(۱) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۰ وإرشاد السارى: ۶/ ۵۱۵.
(۲) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۰.
(۳) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۱-۴۰۰ .
(۴) النهاية فى غريب حديث والاثر: ۲/ ۹ وعمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۱ وإرشاد السارى: ۶/ ۵۱۵.
(۵) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۱ وإرشاد السارى: ۶/ ۵۱۵.
(۶) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۰۱ وإرشاد السارى: ۶/ ۵۱۵.

روایت کښې دباب د دواړو جملو هم یومطلب دې چه قیدی دځېو لاسونونه تړلوسره قتل کول جائزدی په دې وجه علامه عینی رحمه الله فرمانیلی چه دباب دویمه جمله وقتل الصبر لاطائل اوبې فاندې ده (۱)

د جمهورو په نیزد قیدیانوباره کښې امام المسلمین ته اختیاردې چه قتل نې کړی یا فدیه اخستوسره نې پریږدی یا احسانًا بغیرد فدیه اخستلو خلاص کړی یا هغه مسلمانان چه د دښمن په قیدکښې دی تبادله اوکړې شی. د دې امورو نه چه کوم دمسلمانانو په فائده کښې وی امام المسلمین ته په دې باندې دعمل کولو اختیاردې په دې مسئله کښې د مذاهبو تفصیل باب المن والفداء لاندې تیرشوې دې.

[حدیث نمبر ۲۸۷۹](۲) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ وَعَلَى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ، فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ إِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِأَسْتَارِ الْكَعْبَةِ، فَقَالَ «اقْتُلُوهُ». [ر ۱۷۴۹]

## رجال الحدیث

① **اسماعیل بن ابی اویس**:- دا ابوعبدالله اسماعیلی بن ابی اویس اصبحی مدنی رحمه الله دې ددوی تذکره کتاب الایمان باب تفاضل أهل الایمان فی الاعمال لاندې تیره شوې ده (۳)

② **مالک**:- دا امام دارالهجر مالک بن انس بن مالک بن ابی عام بن عمرو الاصبحی المدنی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن لاندې تیره شوې ده (۴)

③ **ابن شهاب**:- دامحمدبن مسلم بن عبدالله بن شهاب الزهری رحمه الله دې. د دوی تذکره بدء الوحی لاندې تیره شوې ده. (۵)

④ **انس بن مالک** رضی الله عنه:- دا مشهورصحابی رسول دې. ددوی تذکره کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده (۶)

أن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم دخل عام الفتح وعلی رأسه المغفر، فلمانزعه جاء رجل فقال: ان ابن خطل متعلق باستار الکعبه فقال: اقتلوه.

---

(۱) عمدة القاری:۶/۵۱۵.
(۲) مرتخریجه فی کتاب جزاء الصید. باب دخول الحرم ومکة بغیراحرام.
(۳) کشف الباری:۲/۱۱۳.
(۴) کشف الباری: ۲/۸۰ – ۸۱.
(۵) کشف الباری:۱/۳۲۶.
(۶) کشف الباری:۲/۴.

**المغفر** په کسره د میم سکون د غین معجمة وفتح الفاء وفي آخره راء د تورینی لاندې استر کوم چه زغري سره یوځانې شوې وی زره دینسج من الدروع علی قدر الرأس یلبس تحت القلنسوة (۱)
په روایت کښې دی چه د فتح مکه په کال رسول الله ﷺ په مکه کښې داخل شو د حضورپاك په سرمبارك باندې هغه د تورینی استر وو کله چه حضورپاك هغه کوزکړو نو یو سړې راغلو دا ابوبرزه اسلمی وو (۲) هغه اووئیل یارسول الله ﷺ ابن خطل د کعبې کپړه پورې زوړند شوې دی حضورپاك ﷺ اوفرمائیل هغه هم هلته مړ کړئ نوهغه ئې هم په هغه حالت کښې قتل کړو قتل کونکې څوك وو؟ په روایاتو کښې مختلف نومونه راغلي دی د بیهقی او حاکم په روایت کښې دی فاما هلال بن خطل فقتله الزبیر (۳) یعنی هلال ابن خطل حضرت زبیر رضی الله عنه قتل کړو مسندبزار او بیهقی په السنن الکبریٰ کښې دی. فاما عبدالله ابن خطل فادرك وهو متعلق باستار الکعبة فاستبق الیه سعید بن حریث وعمار بن یاسر فسبق سعید عمارًا وکان أشب الرجلین فقتله (۴)
یعنی ابن خطل د کعبه غلاف نیولې زوړند اولیدلې شو سعیدبن حریث اوعماربن ثاسر د هغه طرف ته وړاندې شو خو سعیدځوان وو په دې وجه هغه مخکې شو اوابن خطل ئې د عمار نه وړاندې قتل کړو
دغه شان ابن ابی شیبه د ابوعثمان الهندی په طریق باندې روایت نقل کړې دې أن أبا برزة الاسلمی قتل ابن خطل وهومتعلق باستار الکعبة (۵) ابوبرزه اسلمی رضی الله عنه ابن خطل قتل کړو هغه وخت هغه د کعبه غلاف پورې زوړندوو. د دې آخری روایت متابعت کښې عبدالله بن مبارك رحمه الله هم خپله د ابوبرزه اسلمی رضی الله عنه یوروایت نقل کړې دې (۶) دویمه خبره داده چه د ابن خطل د قاتل د نوم په تعیین کښې کوم روایات نقل دی د هغې په مقابله کښې دا روایت زیات صحیح دې علامه بلاذری رحمه الله د نورو علماء اخبارنه په دې باندې جزم کړې دی (۷) ابن هشام جزم سره وئیلی دی چه ابوبرزه اسلمی رضی الله عنه او سعید بن حریث رضی الله عنه دواړو په شریکه د ابن خطل خاتمه اوکړه. (۸) بعض حضراتو وئیلی دی چه سعیدبن ذویب ابن خطل قتل کړې (۹)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/ ۴۰۱.
(۲) إرشاد الساری: ۶/ ۵۱۶.
(۳) السنن الکبری للبیهقی: ۹/ ۲۱۲ کتاب الجزیة باب اللحربی إذا لجا إلی الحرم. والمستدرک علی الصحیحین للحاکم الیسابوری: ۲/ ۵۴.
(۴) السنن الکبری للبیهقی: ۸/ ۲۰۵ کتاب المرتد باب من قال فی المرتد یستتاب مکانه فان تاب وإلا قتل. والمصنف لابن أبی شیبة: ۲۰/ ۴۷۴ – ۴۷۵.
(۵) المصنف لابن أبی شیبة: ۲۰/ ۴۷۶.
(۶) فتح الباری: ۴/ ۷۹ دارالسلام.
(۷) فتح الباری: ۴/ ۷۹ دارالسلام.
(۸) فتح الباری: ۴/ ۷۹ دارالسلام.
(۹) فتح الباری: ۴/ ۷۹ دارالسلام.

علامه طبري رحمه الله واني چه زبير بن عوام رضي الله عنه هغه سړی دی چه ابن خطل ئی وژلی دی.[۱] شارحين په دې ټولو رواياتو کښې تطبيق کولو سره واني چه ممکن ده ابن خطل ټولو په شريکه قتل کړی وی او ابوبرزه اسلمي رضي الله عنه په دې کښې پرومبې شوی وی.[۲]

**ترجمة الباب سره مطابقت**- علامه عيني رحمه الله فرمائي رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ابن خطل صبراً د قتل کولو حکم ورکړې وو نو ترجمة الباب سره د روايت مطابقت ښکاره دې.[۳]

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت باندې اشکال او دهغې جواب**- دلته سوال داپيداکيږی چه ابن خطل خو پخپله د کعبه غلاف پورې انختې وو او په دغه حال کښې قتل کړې شوې وو لکه دا انختل داسې دی لکه چه خپې لاسونه ئی تړلې وی دغه شان په ده باندې د اسير قتل کيدل هم صادق شو. ځکه چه هغه وخت مسلمانانو مکه فتح کړې وه اوهغوی ته هرقسم قدرت اوطاقت حاصل شوې وو لکه چه ابن خطل هغه وخت د يوقيدی په حيثيت سره وو.[۴]

د جاهليت په زمانه کښې د ابن خطل نوم عبدالعزی وو. د اسلام راوړلونه پس رسول الله صلى الله عليه وسلم دهغه نوم عبدالله کيخودې وو. خو روستودا بدبخت مرتد شو. شارحين فرمائی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دا مباح الدم گرځولوسره د ده دقتل حکم ځکه ورکړې وو چه په هغه کښې د قتل مختلف اسباب جمع شوی وو. يوسبب خود ده مرتدکيدل وو بل د مرتد کيدونه پس به ده په شعرونوکښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سپکاوې کولو دغه شان دهغه دوه سندرغاړو وينځوبه هم د حضورپاك سپکاوې کولو. دويم سبب جنايت قتل وو. هغه خپل يومسلمان غلام بې گناه قتل کړې وو په دې وجه د پناه غوښتلوسره د کعبه غلاف پورې انختلو باوجود رسول الله صلى الله عليه وسلم ابن خطل قصاصاً د قتل کولو حکم ورکړو.[۵]

## باب ۱٦۷: هل يستاسر الرجل ومن لم يستاسر، ومن ركع ركعتين عند القتل

**د ترجمة الباب مقصد**:- د دې ترجمة الباب لاندې امام بخاري رحمه الله درې خبرې کول غواړی هل يستاسر الرجل لاندې دا ونيل غواړی که چرې داسې موقع راشی چه يومسلمان خپل ځان د کافرپه قيد کښې ورکول غواړی نوداسې کول جائزدی. دويم جز ومن لم يستاسر کښې دا ونيل غواړی که يوسړې په عزيمت باندې عمل کولوسره د کافرانو قيدی جوړيدو باندې تيارنه وی نوهغه د اباء اوانکار اجازت دې. آخری جز ومن رکع رکعتين عندالقتل کښې دا خودل غواړی چه کله ئی کافران قتل کوی نود شهادت په وخت دوه رکعته مونځ کول ښکاردی

---

[۱]) فتح الباري: ٤/ ٧٩ دارالسلام.
[۲]) فتح الباري: ٤/ ٧٩ دارالسلام وإرشاد الساري: ٦/ ٥١٦.
[۳]) عمدة القاري: ١٤/ ٤٠١.
[۴]) فتح الباري: ٤/ ٨١ كتاب جزاء الصيدباب دخول الهرم ومكة بغير إحرام.
[۵]) فتح الباري: ٤/ ٨١وعمدة القاري: ١٤/ ٤٠١.

(حدیث نمبر ۲۸۸۰) [1] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِي قَالَ أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي سُفْيَانَ بْنِ أَسِيدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِي - وَهُوَ حَلِيفٌ لِبَنِي زُهْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ أَبِي هُرَيْرَةَ - أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَشَرَةَ رَهْطٍ سَرِيَّةً عَيْنًا، وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ الأَنْصَارِي جَدَّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ، فَانْطَلَقُوا حَتَّى إِذَا كَانُوا بِالْهَدَأَةِ وَهُوَ بَيْنَ عُسْفَانَ وَمَكَّةَ ذُكِرُوا لِحَيٍّ مِنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُو لِحْيَانَ، فَنَفَرُوا لَهُمْ قَرِيبًا مِنْ مِائَتَيْ رَجُلٍ، كُلُّهُمْ رَامٍ، فَاقْتَصُّوا آثَارَهُمْ حَتَّى وَجَدُوا مَأْكَلَهُمْ تَمْرًا تَزَوَّدُوهُ مِنَ الْمَدِينَةِ فَقَالُوا هَذَا تَمْرُ يَثْرِبَ. فَاقْتَصُّوا آثَارَهُمْ، فَلَمَّا رَآهُمْ عَاصِمٌ وَأَصْحَابُهُ لَجَئُوا إِلَى فَدْفَدٍ، وَأَحَاطَ بِهِمُ الْقَوْمُ فَقَالُوا لَهُمُ انْزِلُوا وَأَعْطُونَا بِأَيْدِيكُمْ، وَلَكُمُ الْعَهْدُ وَالْمِيثَاقُ، وَلاَ نَقْتُلُ مِنْكُمْ أَحَدًا. قَالَ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ أَمِيرُ السَّرِيَّةِ أَمَّا أَنَا فَوَاللَّهِ لاَ أَنْزِلُ الْيَوْمَ فِي ذِمَّةِ كَافِرٍ، اللَّهُمَّ أَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ. فَرَمَوْهُمْ بِالنَّبْلِ، فَقَتَلُوا عَاصِمًا فِي سَبْعَةٍ، فَنَزَلَ إِلَيْهِمْ ثَلاَثَةُ رَهْطٍ بِالْعَهْدِ وَالْمِيثَاقِ، مِنْهُمْ خُبَيْبٌ الأَنْصَارِي وَابْنُ دَثِنَةَ وَرَجُلٌ آخَرُ، فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوا مِنْهُمْ أَطْلَقُوا أَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَأَوْثَقُوهُمْ فَقَالَ الرَّجُلُ الثَّالِثُ هَذَا أَوَّلُ الْغَدْرِ، وَاللَّهِ لاَ أَصْحَبُكُمْ، إِنَّ فِي هَؤُلاَءِ لأُسْوَةً. يُرِيدُ الْقَتْلَى، فَجَرَّرُوهُ وَعَالَجُوهُ عَلَى أَنْ يَصْحَبَهُمْ فَأَبَى فَقَتَلُوهُ، فَانْطَلَقُوا بِخُبَيْبٍ وَابْنِ دَثِنَةَ حَتَّى بَاعُوهُمَا بِمَكَّةَ بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ، فَابْتَاعَ خُبَيْبًا بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ، وَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ، فَلَبِثَ خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ أَسِيرًا، فَأَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عِيَاضٍ أَنَّ بِنْتَ الْحَارِثِ أَخْبَرَتْهُ أَنَّهُمْ حِينَ اجْتَمَعُوا اسْتَعَارَ مِنْهَا مُوسَى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَأَعَارَتْهُ، فَأَخَذَ ابْنًا لِي وَأَنَا غَافِلَةٌ حِينَ أَتَاهُ قَالَتْ فَوَجَدْتُهُ مُجْلِسَهُ عَلَى فَخِذِهِ وَالْمُوسَى بِيَدِهِ، فَفَزِعْتُ فَزْعَةً عَرَفَهَا خُبَيْبٌ فِي وَجْهِي فَقَالَ تَخْشَيْنَ أَنْ أَقْتُلَهُ مَا كُنْتُ لأَفْعَلَ ذَلِكَ.

وَاللَّهِ مَا رَأَيْتُ أَسِيرًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ خُبَيْبٍ، وَاللَّهِ لَقَدْ وَجَدْتُهُ يَوْمًا يَأْكُلُ مِنْ قِطْفِ عِنَبٍ فِي يَدِهِ، وَإِنَّهُ لَمُوثَقٌ فِي الْحَدِيدِ، وَمَا بِمَكَّةَ مِنْ ثَمَرٍ وَكَانَتْ تَقُولُ إِنَّهُ لَرِزْقٌ مِنَ اللَّهِ رَزَقَهُ خُبَيْبًا، فَلَمَّا خَرَجُوا مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوهُ فِي الْحِلِّ، قَالَ لَهُمْ خُبَيْبٌ ذَرُونِي أَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ. فَتَرَكُوهُ، فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ لَوْلاَ أَنْ تَظُنُّوا أَنَّ مَا بِي جَزَعٌ لَطَوَّلْتُهَا اللَّهُمَّ أَحْصِهِمْ عَدَدًا.

وَلَسْتُ أُبَالِي حِينَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا ... عَلَى أَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلَّهِ مَصْرَعِي

وَذَلِكَ فِي ذَاتِ الإِلَهِ وَإِنْ يَشَأْ ... يُبَارِكْ عَلَى أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعِ

فَقَتَلَهُ ابْنُ الْحَارِثِ، فَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ سَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ لِكُلِّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ قُتِلَ صَبْرًا،

---

[1] ) وعندالبخارى فى صحيحه:۲/۵۸۵ – ۵۸۶ فى المغازى باب غزوة الرجيع رقم:۴۰۸۶و ۱۱۰۰/۲ فى التوحيد باب مايذكر فى الذات والنعوت وأسامى الله. وعند أبى داؤد فى سننه :۴/۲ فى الجهاد باب الرجل يستاسر رقم:۲۶۶۰ – ۲۶۶۱و ۸۷/۲ فى الجنائز باب المريض يؤخذ من أظفاره وعانته رقم:۳۱۱۲.

فَاسْتَجَابَ اللّٰهُ لِعَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ يَوْمَ أُصِيبَ، فَأَخْبَرَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- أَصْحَابَهُ خَبَرَهُمْ وَمَا أُصِيبُوا، وَبَعَثَ نَاسٌ مِنْ كُفَّارِ قُرَيْشٍ إِلَى عَاصِمٍ حِينَ حُدِّثُوا أَنَّهُ قُتِلَ لِيُؤْتَوْا بِشَيْءٍ مِنْهُ يُعْرَفُ، وَكَانَ قَدْ قَتَلَ رَجُلاً مِنْ عُظَمَائِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ، فَبُعِثَ عَلَى عَاصِمٍ مِثْلُ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ، فَحَمَتْهُ مِنْ رَسُولِهِمْ، فَلَمْ يَقْدِرُوا عَلَى أَنْ يَقْطَعَ مِنْ لَحْمِهِ شَيْئًا. [٣٧٦٧، ٣٨٥٨، ٤٩٦٧]

## رجال الحديث

① **ابواليمان** - دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى رحمه الله دي. دَ دوى تذكره بدء الوحى كنبې تيره شوې ده.[1]

② **شعيب** - دابوبشر شعيب بن ابى حمزه القرشى الاموى رحمه الله دي. دوى تذكره هم بدء الوحى كنبې تيره شوې ده.[2]

③ **زهرى** - دامشهورمحدث محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دي. دَدوى حالات بدء الوحى لاندې تيرشوى دى.[3]

④ **عمرو بن ابى سفيان** - دا دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په مصاحبين كښې وو. بعض حضراتو ددوى نوم عمر (په ضمه دَعين) ليكلې دې.[4] صحيح عمرو (په فتح دَ عين)دې. امام بخارى رحمه الله هم په خپل تاريخ كښې دده نوم عمرو ليكلې دې.[5] هغه دَ عبدالله بن عمر بن خطاب رضي الله عنه عمربن خطاب رضي الله عنه ابوموسى اشعرى رضي الله عنه او ابوهريره رضي الله عنه نه احاديث روايت كړى دى. دَ دوى نه روايت كونكونومونه دادى: الحجاج بن فرافصه، عبدالله بن عبدالرحمن بن ابى حسين، دده وراره عبدالملك بن عبدالله بن ابي سفيان بن اسيدبن جاريه الثقفى، محمدبن مسلم بن شهاب الزهرى او هشام بن سعد رحمهم الله.[6] امام بخارى امام مسلم امام ابوداؤد او امام نسائى رحمهم الله دې تولوحضراتو دَ عمرو بن ابى سفيان روايت نقل كړې دې.[7] ابن حبان رحمه الله دَدوى تذكره په ثقات كښې كړې ده.[8] او حافظ ابن حجر په تقريب كښې دې ثقه ګرخولې دې.[9]

⑤ **ابوهريره** رضي الله عنه: دَدوى حالات كتاب الايمان باب أمور الايمان لاندې تفصيل سره تيرشوى دى.[10]

---

[1] ) كشف البارى: ١/٤٧٩.
[2] ) كشف البارى: ١/٤٨٠.
[3] ) كشف البارى: ١/٣٢٦.
[4] ) تهذيب الكمال: ٢٢/٤٥.
[5] ) التاريخ الكبير: ١/٣٣٦ رقم الترجمة: ٦٥٦٧.
[6] ) تهذيب الكمال: ٢٢/٤٥ تهذيب التهذيب: ٨/٤١.
[7] ) تهذيب الكمال: ٥/٢٢/٤٥.
[8] ) ثقات ابن حبان: ٥/١٨٠.
[9] ) تقريب التهذيب: ٦/٨١.
[10] ) كشف البارى: ١/٦٥٩.

په دې روايت كښې د غزوه رجيع واقعه بيان كړې شوې ده دا روايت امام بخارى رحمه الله په مغازى كښې هم د غزوه رجيع لاندې په تفصيل سره نقل كړې دې [1] حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى **بعث رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم عشرة رهط سرية عينا وأمر عليهم عاصم بن ثابت الأنصارى جد عاصم بن عمر بن الخطاب** رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د لسو كسانو يو ټولګې د جاسوسئ په غرض روان كړو او حضرت عاصم بن ثابت رضي الله عنه چه د عاصم بن عمر بن خطاب نيكه وو په هغوى باندې امير مقرر كړو

رهط - لس يا د لسو نه كم كسانو باندې مشتمل ډله ارهط او ارهاط د دې جمع ده [2]

**قوله فانطلقوا حتى كانوا بالهدأة......** - داخلق روان شو اوچه مقام هداة ته اورسيدل كوم چه د مكې او عسفان په مينځ كښې دې نو چا بنولحان خبر كړو چه د قبيله هزيل يو څانګه ده هغوى دوه سوه غشى ويشتونكى صحابه كرامو پسې راوليګل دې خلقو د صحابه كرامو د خپو چاپونو پسې روان شو يو ځائې صحابه كرامو كهجورې خوړلې وې كومې چه د مدينې نه خان سره اخستې وې هغوى د كهجورو كټكى اوپيژندل چه داد مدينې كهجورې دى دا خلق د هغوى د خپو په نښو باندې روان وو كله چه عاصم رضي الله عنه او د هغه ملګرو دوى اوليدل نو هغوى په يو بله ښكته غونډئى كښې پناه واخستله. كافرانو هغوى راګير كړل او ورته ئې اووئيل راكوز شئى او خپل ځان مونږ ته حواله كړئى ستاسو د پاره عهدوپيمان دې مونږ به تاسو كښې هيڅوك نه قتل كوو.

په دې باندې د جماعت امير عاصم رضي الله عنه اووئيل **أما أنا فوالله لا انزل اليوم فى ذمة كافر اللهم أخبر عنا نبيك.** زه په الله تعالى قسم چه د كافر په پناه كښې به راكوز نه شم. اې الله زمونږ د حال نه خپل نبى خبر كړه. بيا كافرانو په هغوى باندې د غشو باران شروع كړو او عاصم رضي الله عنه ئې د اووه ملګرو سره شهيد كړو. خبيب انصارى ابن دثنه او يو بل سړې عبدالله بن طارق د هغوى په عهدوپيمان باندې لاندې راكوز شول. كله چه كافرانو هغوى قابو كړل نو د لندو مزى ئې كولاؤ كړل او په هغه مزو ئې دريواړه اوتړل

په دې باندې هغه دريم سړى عبدالله بن طارق اووئيل دا ړومبې غدارى ده زه تاسو سره نه ځم زما د پاره خو په دغه شهيدانو كښې يوه نمونه ده كافرانو هغه راښكلو او خان سره ئې د بوتلو كوشش اوكړو. عبدالله بن طارق انكار اوكړو نو هغه ئې قتل كړو او خبيب او زيد بن دثنه ئې بوتلو د غزوه بدر نه پس ئې په مكه كښې خرڅ كړل خبيب د حارث بن عامر خامنو واخستلو ځكه چه حارث حضرت خبيب رضي الله عنه په بدر كښې قتل كړې وو نو د پلار قصاص اخستلو د پاره د حارث ځامنو واخستلو. حضرت خبيب رضي الله عنه هغوى سره د قيدى په حيثيت حصار وو.

[1]) كشف البارى: كتاب المغازى ص:۲۵۳ — ۲۶۱.

[2]) النهاية فى غريب الحديث:۱/۷۰۷.

**قوله** فاخبرني عبدالله بن عياض...... - ابن شهاب زهرى رحمه الله وائى دَ حارث لور زينب، هغه ته اوخودل چه كله هغوى دَ خبيب رضي الله عنه دَ قتل كولو اراده اوكړه نوخبيب رضي الله عنه دَ زينب نه چاړه اوغوښتله چه دَ نامه لاندې دَ ويښتو صفائى اوكړى زينب ورته چاړه وركړه وړاندې وائى چه ماته پته نه وه چه زما يوخوني خبيب له راغلې دې ما اوكتل چه هغه ماشوم په خپله پنډئى باندې كينولى دې او چاړه دَهغه په لاس كښې ده دې كتلو سره زه ډيره اوويريدلم خبيب زما ويريدونكى مخ ليدو سره پوهه شو ونى وئيل چه ته په دې خبره ويريږې چه زه به دې قتل كړم زه به دې نه قتل كوم والله مارأيت أسيرًا قط خيرًا من خبيب والله لقد وجدته يومًا يأكل من قطف عنب في يده، وإنه لموثق في الحديد......

زينب وائى والله ماد خبيب نه ښه قيدى نه دې ليدلې ماهغه دَ انګورو دَ غونچې نه په خوړلو ليدلې اوهغه دَ اوسپنې په بيړو كښې تړلې شوې وو دغه ورځو كښې په مكه كښې ميوه بالكل نه وه دادَ الله تعالى روزى وه چه خبيب له ئى وركړې وه. بياچه دې خلقو خبيب دَ قتل كولودَپاره دَ حرم نه بهر بوتلو نوحضرت خبيب اووئيل ذرونى ارکع رکعتين ماته دَ دوو رکعتو مونځ كولوموقع راكړئى. خبيب رضي الله عنه دوه ركعته مونځ اوكړو بيا قاتلانو طرف ته متوجه شو ونى وئيل كه چرې تاسو داګمان نه كولوچه زه دَ مرګ نه ويريږم نو (خپل مونځ) به مې اوږد كړې وو يا الله دا كافران يو يو هلاك كړه بياهغه دا شعر اووئيل:

ما أن أبالي حين أقتل مسلما على أى جنب كان لله مصرعى

وذلك في ذات الإله وإن يشا تبارك على أوصال شلو ممزع

① چه زه دَ مسلمانيدو په حال كښې قتل كيږم نوزما دَدې خبرې هيڅ فكر او پرواه نشته چه دَ الله تعالى دَپاره به په كوم اړخ باندې (په زمكه) پريوتل وى.

② اوزما قتل كيدل دَالله تعالى دَ رضادَپاره دى كه چرې هغه اوغوښتل نو په ټكړې ټكړې شوى اندامونو جوړونوباندې به بركت نازل كړى.

دې نه پس عقبه بن حارث هغه شهيد كړو. خبيب رضي الله عنه دَهرمسلمان قيدى دَپاره په شهيديدو باندې دَ دوه ركعته مونځ سنت قايم كړل حضرت ابوهريره رضي الله عنه دې ته خكه سنت اووئيل چه خبيب رضي الله عنه دا عمل دَ رسول الله ﷺ په ژوند كښې كړې وو اوحضورپاك دا خوښ كړى وو.[1]

**قوله** فاستجاب الله لعاصم بن ثابت يوم أصيب. - په كومه ورځ چه عاصم بن ثابت قتل شو الله تعالى دَهغه دعاقبوله كړه عاصم رضي الله عنه چه دَ وړوكى لښكر اميروو هغه دعاكړې وه اللهم أخبرنا عنا نبيك اې الله زمونږ په حال باندې خپل نبى خبركړه مطلب دا چه دَهغوى دادعا قبوله شوه او رسول اكرم ﷺ دَهغوى دَ حال نه خبرشو هم په هغه ورځ حضورپاك خپل صحابه كرام دَ دغه واقعه نه خبر كړل او په هغوى چه كوم تكليفونه تيرشوى وو هغه ئى بيان كړل.

---

[1] ) إرشاد السارى: ۶/۵۲۰.

وبعث ناس من کفار قریش إلی عاصم حين حدثوا أنه قتل ليؤتوا بشئ منه يعرف وكان قد قتل رجلا من عظمائهم يوم بدر يعنی بعض د قریشو کافرانو ته چه د عاصم ﷺ د شهادت خبر ملاؤشو نوهغوی یو څوکسان روان کړل چه لاړشئی د عاصم د بدن یوه داسې ټکړه راپرې کړئی راوړئ په کوم سره چه د هغه پیژندګلو کیدې شی عاصم ﷺ د بدر په موقع د قریشو یو سردار (عقبه بن ابی معیط) قتل کړې وو لکه چه د قریشو کافرانو د انتقام هغه غصه پوره کول غوښتل

**قوله فبعث علی عاصم مثل الظلة من الدبر فحمته من رسولهم، فلم يقدروا علی أن يقطعوا من لحمه شيئا:** د عاصم ﷺ په بدن باندې د مچو یوه داسې دسته راولیګلې شوه چه د قریشو د رالیګلوشو سړو نه د حضرت عاصم حفاظت اوکړو دې خلقو د حضرت عاصم ﷺ د بدن یوه حصه پرې کولو باندې طاقت حاصل نه کړې شو بعث دلته د مجهول صیغه ده. وړاندې د مغازی په روایت کښې دی. فبعث الله علی عاصم په دې روایت کښې تصریح ده چه الله تعالی د مچو دسته راولیګله.

الظلة: (د ظاء په ضمه سره) سوری ته وئیلې شی

الدبر:- (د دال فتحه او دال سکون سره) د مبرو او مچوته وئیلې شی

**ترجمة الباب سره مناسبت:-** ① هل يستأسر الرجل کښې خودلې شوی دی چه خپل ځان د کافرانو په قید کښې ورکول جائزدی. په حدیث کښې دی فنزل إليهم ثلاثة رهط بالعهد والميثاق درې سړی (خبیب انصاری، زیدبن دثنه عبدالله بن طارق) د کافرانو په عهدوپیمان باندې راکوز شو. د حدیث باب د دې جز مناسبت د ترجمة الباب د رومبی جز سره ښکاره دې

② دویم جز من لم يستأسر کښې خودلې شوی دی چه خپل ځان د کافرانو په قید کښې ورکولو نه انکارکول هم جائزدی. په حدیث باب کښې وقال عاصم بن ثابت أمير السرية: أما أنا فوالله لا أنزل اليوم في ذمة كافر. امیرسریه عاصم بن ثابت ﷺ اووئیل چه زما دې په الله قسم وی د کافر په پناه کښې به راکوز نه شم. په دې جمله کښې مناسبت ترجمة الباب دغه دویم جزسره واضح دې

③ ترجمة الباب دریم جز من ركع ركعتين عند القتل کښې خودلی شوی دی چه د شهادت په وخت دوه رکعته مونځ کول پکاردی. د حدیث باب داجمله دې سره مطابقت لری: قال لهم خبیب: ذروني أركع ركعتين فتركوه فركع ركعتين.[1]

## باب ۱۶۸: فكاك الاسير

د شراح حدیث په نیزدلته عبارت مقدر دې: باب وجوب فكاك الاسير من أيدي العدو أو بغيره.[2]

---

[1] عمدة القاري: ۴۰۳/۱۴.

[2] عمدة القاري: ۴۰۸/۱۴ فتح الباري: ۱۶۷/۶ إرشاد الساري: ۴۲۱/۶.

**فكاك** . فاء مفتوح لوستل هم صحيح دی اومکسورهم [1] دَدې معنی دد خلاصول پریخودل [2]

**دَ ترجمة الباب مقصد** . دَدې ترجمة الباب نه دَامام بخاري رحمه الله مقصد دادې چه دَ دښمن په لاس راګیر یدونکی مسلمان قیدی راخلاصول واجب دی او دَ خلاصی په عوض کښې مال یا دَ هغه دَمتبادل دَ بل څه څیز مطالبه اوکړې شی نو هغه پوره کول پکار دی [3]

**قوله** فيه عن أبي موسى، عن النبي صلى الله عليه وسلم:

**دَ مذکوره تعلیق تخریج** . دا تعلیق امام بخاری رحمه الله کتاب النکاح [4] او کتاب الاحکام [5] د لاندې مسدد په طریق سره او کتاب الاطعمة [6] کښې عن محمد بن کثیر عن سفیان په طریق او کتاب المرضی [7] کښې قتیبه بن سعید په طریق موصولاً روایت کړې دې [8]

دې نه علاوه سنن ابوداؤد کښې کتاب الجنائز [9] لاندې دَامام نسائی رحمه الله سنن الکبری کښې کتاب السیر لاندې هم مذکوره تعلیق موصولاً روایت کړې شوې دې [10]

**دَ مذکوره تعلیق مقصد** . په دې تعلیق سره امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه په دې باب کښې کوم حدیث روایت دې هغه دَ رسول اکرم صلى الله عليه وسلم نه ابوموسی اشعری رضي الله عنه روایت کړې دې [11] مطلب دادې چه هم ابوموسی اشعری رضي الله عنه دَ باب حدیث روایت کولو کښې دَ یرشهرت لري علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی دَ ابوذر په روایت کښې دغه مذکوره تعلیق نشته [12]

امام بخاری رحمه الله دَ ترجمه مدعی ثابتولو دَپاره دلته دوه احادیث نقل کړی دی.

[حدیث نمبر ۲۸۸۱] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضي الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « فُكُّوا الْعَانِيَ - يَعْنِي الأَسِيرَ - وَأَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَعُودُوا الْمَرِيضَ ».[۴۸۷۹، ۵۰۵۸، ۵۳۶۵، ۶۷۵۲]

---

[1] ) عمدة القاری: ۴۰۸/۱۴.

[2] ) عمدة القاری: ۴۰۸/۱۴.

[3] ) عمدة القاری: ۴۰۸/۱۴ فتح الباری: ۱۶۷/۶ إرشادالساری: ۴۲۱/۶.

[4] ) أخرجه فی صحیحه: ۷۷۷/۲ فی باب حق إجابة الولیمة رقم: ۵۱۷۴.

[5] ) أخرجه: ۱۰۶۰۳/۲ باب إجابة الحاکم الدعوة رقم: ۷۱۷۳.

[6] ) أخرجه: ۸۰۹/۲ فی باب قول الله تعالی ﴿كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ﴾ رقم: ۵۳۷۳.

[7] ) أخرجه فی صحیحه فی: ۲/۲ باب وجوب عبادة المریض رقم: ۵۶۴۹ فتح الباری: ۱۶۷/۶.

[8] ) عمدة القاری: ۴۰۸/۱۴.

[9] ) أخرجه أبوداؤد فی سننه فی باب الدعاء للمریض عندالعبادة رقم: ۳۷۰۵.

[10] ) أخرجه النسائی فی السنن الکبری: ۲۰۲/۵ فی باب الامر بفکاک الاسیر رقم: ۸۶۶۶.

[11] ) عمدة القاری: ۴۰۸/۱۴ فتح الباری: ۱۶۷/۶ إرشادالساری: ۴۲۱/۶.

[12] ) إرشادالساری للقسطلانی: ۵۲۱/۶.

# رجال الحدیث

① **قتیبه بن سعید**:- دا شیخ الاسلام ابورجاء قتیبه بن سعیدبن جمیل بن طریف ثقفی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الایمان کښې تیرشوی دی (۱)

② **جریر**:- دا حضرت جریر بن عبدالحمید بن قرط ضبی رازی دې د دوی حالات کتاب العلم لاندې تیرشوی دی (۲)

③ **منصور**:- دا ابوعتاب منصور بن المعتمر سلمی کوفی رحمه الله دې د دوی حالات هم کتاب العلم لاندې تیرشوی دی (۳)

④ **ابووائل**:- دا مشهور تابعی ابووائل شقیق بن سلمه اسدی کوفی رحمه الله دې د رسول اکرم ﷺ زمانه ئې لیدلې خو د زیارت سعادت ورته نه دې حاصل شوې د دوی حالات کتاب الایمان لاندې تیرشوی دی (۴)

⑤ **ابوموسیٰ**:- دا مشهور او جلیل القدر صحابی ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه دې د دوی حالات کتاب الایمان لاندې تیرشوی دی (۵)

**قال رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فکوا العانی یعنی الاسیر** یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل قیدی خلاص کړئی.

العانی:- په وزن د قاضی د قیدی په معنی کښې دې عناة د دې جمع ده د مؤنث نه د دې جمع عوان اومفرد عانیة دې. عنا یعنو(ن) نه د دې معنی ذلت اورسوائی ده العانی بالعین المهملة وبالنون مثل القاضی من عنا یعنو فهو عان والجمع عناة، والمرءة عانیة، والجمع عوان، وقال ابن الاثیر: والعانی الاسیر وکل من ذل واستکان وخضع فقد عنا (۶)

یعنی الاسیر:- دا مدرج من الراوی دې او د فکوا العانی تفسیر دې (۷) علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه د ابوذر په روایت کښې دلته یعنی په ځائې أی ضبط شوې دې (۸)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دا ادراج د قتیبه یا جریر کیدې شی خو امام بخاری رحمه الله روایت په کتاب الطب کښې ابوعوانه عن منصور اوکتاب الاطعمة کښې ثوری عن منصور په طریق

---

(۱) کشف الباری:۲/۱۸۹.
(۲) کشف الباری:۳/۲۶۸.
(۳) کشف الباری:۳/۲۸۰.
(۴) کشف الباری:۲/۵۵۹.
(۵) کشف الباری:۱/۶۹۰.
(۶) عمدة القاری:۱۴/۲۹۴ وفتح الباری:۶/۱۶۷.
(۷) عمدة القاری:۱۴/۲۹۴ وفتح الباری:۶/۱۶۷.
(۸) إرشادالساری شرح صحیح البخاری:۶/۵۲۱.

سره هم نقل کړې دي په رومبی طریق کښې د مذکوره ادراج تصریح نشته البته د ثوری عن منصور والا طریق په آخره کښې دا اضافه ده قال سفیان العاني الاسیر لکه چه په دې طریق کښې څه ابهام نشته حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی

**والتفسیر من قبل جریر أو قتیبة، وإلا فقد أخرجه المصنف في الطب من طریق أبي عوانة عن منصور فلم یذکره، وأخرجه في الأطعمة من طریق الثوري عن منصور وقال في آخره قال سفیان: العاني الأسیر.**[1]

د کلام خلاصه دا شوه چه د حافظ ابن حجر رحمه الله د قول په رڼا کښې دا ادراج د قتیبه یا جریر کیدې شی چونکه د روایت په باب کښې د قائل تصریح نشته په دې وجه تعیین نه شی کیدې

**د مسلمان قیدی د راخلاصولو مسئله:** - علامه ابن بطال فرمائی د مسلمان قیدی راخلاصول بالاجماع فرض کفایه دی په دې باندې هغه **وعلیه کافة العلماء** ونیلو سره د جمهور اتفاق نقل کړې دې.[2] البته په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې چه د مسلمان قیدی په راخلاصولو کښې دښمن ته څه څیزورکړې شی. د اسحاق بن راهویه رحمه الله رائې ده چه مال دې ورکړې خلاص دې کړې[3] په یوروایت د امام مالك رحمه الله نه هم دغه قول نقل دې.[4] امام احمدبن حنبل رحمه الله[5] او امام شافعی رحمه الله په نیزد راس بدله راس دې.[6] مطلب دادې چه د مسلمان قیدی د خلاصولو بدله کښې به کافر قیدی خلاصولې شی. ترکومې چه د مال په بدله د خلاصی حکم دې په دې سلسله کښې امام احمد رحمه الله دې سره اختلاف کړې دې هغه فرمائی **وأما بالمال فلا أعرفه.**[7] او د امام اعظم رحمه الله نه دوه اقوال نقل دی.

① **د امام اعظم ابوحنیفه رومبې قول:** - د یوقول مطابق د هغوی په نیزد راس بدله کښې راس ناجائز دې. په دې سلسله کښې هغوی دادلیل پیش کړې دې چه د خلاصی نه پس به کافر قیدی دوباره اهل اسلام سره جنګ کوی. د کافر قیدی په خلاصیدوسره به د دښمن د فوج شمیرزیات شی اود هغوی په طاقت کښې به زیاتې کیږی. ښکاره خبره ده چه دا معامله د مسلمانانو دپاره فائده منده نه ده بلکه نقصان ورکونکې ده. په دې وجه د مسلمان قیدی د راخلاصولو په مقابله کښې د دغه نقصان بندیز راوستل ډیر بهتر دی کوم چه به د کافر قیدپه راخلاصولو پیدا کیږی. چنانچه په هدایه کښې دی: **ولا یفادی بالاساری عند أبي حنیفة - إلی أن قال- له أن فیه معونة الکفرة، لأنه یعود حربا علینا، ودفع شر حرابه خیر من استنقاذ الاسیر المسلم.**[8]

---

[1] فتح الباري: ۲۰۵/۶.

[2] شرح ابن بطال: ۲۱۰/۵.

[3] فتح الباري: ۱۶۷/۶ وعمدة القاري: ۲۹٤/۱٤.

[4] فتح الباري: ۱۶۷/۶ وعمدة القاري: ۲۹٤/۱٤.

[5] فتح الباري: ۱۶۷/۶ وعمدة القاري: ۲۹٤/۱٤.

[6] المجموع شرح المهذب: ۸۰/۲۱ وهداية: ۵۶۷/۲.

[7] فتح الباري: ۱۶۷/۶ وعمدة القاري: ۲۹٤/۱٤.

[8] هداية: ۵۶۷/۲ وردالمختار على الدر المختار: ۵۳۵/۱۲.

**دویم قول** - دامام اعظم رحمہ اللہ دویم قول دادې چه دَ رأس په بدله کښې رأس جائزدې یعنی دَ مسلمان قیدی په بدله کښې کافر قیدی خلاصولې شی هم دغه رائې دَ صاحبین رحمهما الله هم ده (۱) دَ دوی استدلال دعمران بن حصین رضی اللہ عنہ دَ روایت نه دې چه رسول الله ﷺ دَ یومشرک قیدی په بدله کښې دوه مسلمانان قیدیان راخلاص کړې وو لانه فدی رجلین من المسلمین برجل من المشرکین (۲) داحضرات فرمائی چه کافرقیدی قتل کول یا هغه دَمسلمانانو په فائده کښې استعمالولونه زیات بهتردی چه مسلمان قیدی ته دَ هغه په بدله کښې خلاصې ملاؤشی دامام اعظم رحمہ اللہ دویم قول امام محمد رحمہ اللہ په سیرکبیرکښې نقل کړې دې هم دا امام زیلعی رحمہ اللہ او علامه بن همام رحمہ اللہ (۳) أظهرالروایتین عن أبی حنیفة گرځولې دې

چنانچه علامه زیلعی رحمہ اللہ فرمائی: وعن أبی حنیفة رحمه الله أنه لابأس بان یفادیٰ بهم أساری المسلمین، وهوقول محمد، لان تخلیص المسلم من أیدیهم واجب، ولا یتوصل إلیه إلابه........، ومنفعة تخلیص المسلم أولی من استرقاقهم أو جعلهم ذمة، وقد روی أنه علیهم الصلوٰة والسلام فادیٰ بهم أسری المسلمین، وذکر فی السیرالکبیرأن هذا هو أظهرالروایتین عن أبی حنیفة. (۴)

**دَنوی مسلمان شوی قیدی دَ خلاصولوحکم**: - که چرې کافر قیدی اسلام راوړی نو دَهغه په بدله کښې دَمسلمان قیدی خلاصول په دې شرط باندې جائزدی چه کله دَ مسلمان په قیدکښې اسلام راوړونکې دا نوې مسلمان قیدی په دغه بدلولو باندې راضی وی اودَ اسلام په لارکښې دَ څه قسم خطراتو کښې اخته کیدو اندیښنه ورته نه وی چنانچه په هدایه کښې دی ولوکان أسلم الاساریٰ فی أیدینا لا یفادیٰ بمسلم أسیرفی أیدیهم، لانه لا یفید إلا إذا طابت نفسه به، وهو مامون علی إسلامه. (۵)

**دَ علامه ابن همام رحمہ اللہ تسامح**: - دَ صاحبینو په نیزدَ مسلمان قیدی دَ راخلاصولوپه عوض دَاهل اسلام په قیدکښې پاتې کیدونکې غیرمسلم ښځه پریخودل ناجائزدی خو امام شافعی رحمہ اللہ اوامام احمد رحمہ اللہ په مذکوره صورت کښې دَ جواز قائل دې دَ دې حضراتو په نیزبه دې صورت باندې عمل کولوکښې هیڅ قباحت نشته خوصاحب دَ فتح القدیر علامه ابن همام رحمہ اللہ ته په دې مسئله کښې نقل مذاهبوکښې تسامح شوې دې دَ هغه دَ صنیع نه

---

(۱) حدایة:۵۶۷/۲ وردالمختار علی الدرالمختار:۵۳۵/۱۲.

(۲) أخرجه مسلم فی صحیحه کتاب الایمان باب لاوفاء لنذر فی معصیة الله ولا فیما لایملک العبد رقم: ۱۶۴۱ وأبوداؤد فی سننه کتاب الایمان باب النذر فیما لایملک رقم:۳۳۱۶ وأحمدفی مسنده مسندالکوفیین حدیث عمران بن حصین رضی اللہ عنہما رقم:۱۰۱۰۳.

(۳) فتح الباری:۴۷۴/۵.

(۴) تبیین الحقائق للزیلعی رحمہ اللہ ۹۹/۴ وردالمختار:۵۳۵/۱۲.

(۵) هدایه:۵۲۷/۲.

معلومیږی چه د صاحبینو په شان امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله هم د عدم جواز قائل دی[1] حالانکه د دې حضراتو نقطه نظر هم هغه دې کوم چه مونږ پورته بیان کړې دې د علامه ابن همام رحمه الله اتباع کولوسره صاحب د اعلاء السنن مولانا ظفراحمد عثمانی رحمه الله ته هم د مذاهبو په نقل کولو کښې مغالطه شوې ده

چنانچه په اعلاء السنن کښې دی وعن أبي حنيفة أنه يفادى بهم كقول أبي يوسف ومحمد، والشافعي وأحمد إلا بالنساء فانه لاتجوز المفاداة بهن عندهم. [2] حالانکه په شرح المهذب کښې امام شافعی رحمه الله مسلك او المغنی کښې د امام احمد رحمه الله مسلك بالکل واضحه دې چه د مسلمان قیدی د خلاصولو په عوض کافره ښځه پریخودل جائزدی او په دې کښې هیڅ کراهت نشته د دې حضراتو دلیل د مسلم شریف دا روایت دې چه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په جهاد کښې حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه ته یوه قیدی ښځه ورکړې وه چه روستو سلمه بن اکوع رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته هدیه کړې وه رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغې په بدله کښې د فتح مکه په موقع بندی مسلمانان قیدیان آزاد کړی وو [3]

د صحیح مسلم روایت نقل کولونه پس د امام شافعی رحمه الله د مسلك وضاحت کولوسره امام نووی رحمه الله فرمائی. وفي الحديث: جواز المفاداة، وجواز فداء الرجال بالنساء الكافرات [4] هم د دې حدیث نه استدلال کولوسره ابن قدامة رحمه الله د امام احمد رحمه الله د نقطه نظر وضاحت کړې دې په المغنی کښې دی: وجوز أن يفادى بهن أسارى المسلمين لان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم فادى بالمرءة التى أخذها من سلمة بن الاكوع [5]

**د احنافو استدلال:-** د صاحبینو په نیزد کافرې ښځې په بدله کښې مسلمان قیدی راخلاصول ځکه جائزنه دی چه د ښځې د پریخودو په نتیجه کښې به د اهل کفر په توالد وتناسل کښې ترقی کیږی او ښکاره خبره ده چه دا د کافرانو په شوکت اوقوت کښې د اضافې سبب دې

**د علامه ابن عابدین شامی توجیه:-** لیکن علامه ابن عابدین شامی رحمه الله تحریرفرمائی چه ممکن دی د احنافو په نیز دا ممانعت د مال په عوض د کافرقیدی د راخلاصولو متعلق وی

---

[1] ) فتح القدير:٥/٤٧٥.

[2] ) اعلى السنن:١٢/١٠٤.

[3] ) أخرجه مسلم فى صحيحه فى كتاب الجهاد باب التنفيل وفداء المسلمين بالاسارى رقم: ١٧٥٥عن سلمة بن الاكوع – رضى الله عنه – خرجنا مع أبى بكر أمره علينا رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم - إلى أن قال – فلقينى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فى السوق فقال لى: ياسلمة هب لى المرءة لله أبوك: أعنيى التى كان أبوبكر نفله إياها. فقلت فى لك يا رسول الله. والله ماكشفت لها ثوبا. فبعث بها رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم ففدى بها ناسامن المسلمين كانوا أسروا بمكة أنظر أيضا شرح المهذب:٢١/٧٩ حيث نقله مستدلاً به.

[4] ) المجموع شرح المهذب:٢١/٨٠.

[5] ) المغنى لابن قدامة:١٠/٣٩٨.

کښې د احنافو په نيزد کافرانو قيديانو په بدله کښې مسلمان قيديان راخلاصول جائز دی او په دې صورت کښې دهغوی په نيز هيڅ کراهت نشته سره دَدې چه کافران سړی قيديان هم د توالد اوتناسل ذريعه ده مطلب دا چه د ممانعت هغه علت چه دَ احنافو په نيز د مسلمانانو قيديانو دَ راخلاصولو په عوض په کافرانو ښځو پريخودو کښې موجودوو هغه دکافرانو سړو په عوض د مسلمانانو راخلاصولو په وخت هم موجود وی په دې وجه رأس بالرأس په صورت کښې هم ناجائز کيدل پکاردی کله چه دَ کافرانو سړو د بدلون په صورت کښې جائزدې نوبيا به د کافرانو ښځو دَ بدلون په صورت کښې هم جائزوی په ردالمختار کښې علامه شامی رحمه الله تحرير فرمائی: قوله: واتفقوا أنه لايفادیٰ بنساء وصبيان لما إذا الصبيان يبلغون فيقاتلون، والنساء يلدن، فيكثر نسلهم، ولعل المنع فيما إذا أخذ البدل مالا، وإلا فقد جوز وادفع أسراهم فداء لاسرانا، مع أنهم إذا ذهبوا الدارهم يتناسلون. (1)

**قوله: أطعموا الجائع وعودوا المريض:-** په اوږى باندې خوراك کوئى اوَدَ بيمارتپوس کوئى. په نهرباندې خوراك کول فرض کفايه ده خوکه دَ اولږې دَ زياتوالی نه څوك مړکيدو انديښنه وی او بل سړی سره په هغه باندې دَخوړلودومره څه وی په څه سره چه هغه ژوندې پاتې شی په دې صورت کښې په دغه سړی باندې خوراك کول فرض عين دې په دې شرط چه ددې نه علاوه دَ خوراك دپاره نورڅه موقع موجودنه وی. البته په عدم ضرورت اوعام حالاتو کښې خوراك ورکول مندوب اومستحسن دی. (2)

**قوله: وعودوا المريض:-** دَ بيمارتپوس کول دَ جمهورو علماؤ په نيزمستحب دې خودَ اصحاب ظواهر په نيز واجب دې. امام بخاری رحمه الله په كتاب المرضى کښې باب وجوب عيادة المريض باب قايمولوسره دَ خپل مسلك طرف ته اشاره کړې ده دَهغه استدلال دَ عودوا المريض نه دې کوم چه مفيد وجوب دې اوجمهور دا په ندب باندې محمول کوی (3) علامه عينی رحمه الله وائی چه دَ مريض پوښتنه کول فرض کفايه دې (4) دَ بعضو په نيزسنت مؤکده دې. (5)

**دَ حديث نه دَترجمة الباب اثبات:-** دَ ترجمة الباب مناسبت فكوا العانى سره ښکاره دې.

1) ردالمختار: ۵۳۷/۱۲.
2) عمدة القارى: ۴۰۸/۱۴.
3) كشف البارى ص: ۴۷۹ كتاب المرضى باب وجوب عيادة المريض.
4) عمدة القارى: ۴۰۸/۱۴.
5) عمدة القارى: ۴۰۸/۱۴.

احديث نمبر ٢٨٨٢] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ أَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُمْ عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ -رضى الله عنه- قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ -رضى الله عنه هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ مِنَ الْوَحْيِ إِلاَّ مَا فِي كِتَابِ اللَّهِ قَالَ وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ مَا أَعْلَمُهُ إِلاَّ فَهْمًا يُعْطِيهِ اللَّهُ رَجُلاً فِي الْقُرْآنِ، وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ. قُلْتُ وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ قَالَ الْعَقْلُ وَفَكَاكُ الأَسِيرِ، وَأَنْ لاَ يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ. [ر: ١١١]

## رجال الحديث

① **احمدبن يونس**:- دا احمد بن عبدالله بن يونس بن عبدالله بن قيس تميمى يربوعى رحمه الله دى د ده تذكره كتاب الايمان باب من قال إن الايمان هو العمل لاندې تيره شوې ده. (٢)

② **زهير**:- دا زهير بن معاويه بن حديج بن رحيل بن زهير بن خيثمه جعفى رحمه الله دى. د دوى تذكره كتاب الايمان باب الصلوة من الايمان لاندې تيره شوې ده. (٣)

③ **مطرف**:- دا مطرف بن طريف حارثى كوفى رحمه الله دى. د دوى تذكره كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې تيره شوې ده.

④ **عامر**:- دا ابوعمرو عامر بن شراحيل شعبى كوفى رحمه الله دى. د دوى تذكره كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده. (٤)

⑤ **ابوجحيفة** رضي الله عنه:- دا صحابى رسول ﷺ ابوجحيفه وهب بن عبدالله رضي الله عنه دى. د دوى تذكره

---

(١) والحديث أخرجه البخاري أيضًا في صحيحه: ١/٢٥٠، ٢٥٢ كتاب فضائل المدينة باب حرم المدينة رقم: ١٨٧٠ و ١/٤٥٠ الجزية والموادعة باب ذمة المسلمين وجوارهم واحدة يسعى بها أدناهم، رقم: ٣١٧٢ و ١/٤٥١ كتاب الجزية والموادعة باب إثم من عاهد ثم غدر رقم: ٣١٧٩ و ٢/١٠٠٠ كتاب الفرائض باب إثم من تبرأ من مواليه رقم: ٦٧٥٥ و ٢/١٠٢٠ كتاب الديات باب العاقلة رقم: ٢٩٠٣ و ٢/١٠٢١ كتاب الديات باب لايقتل المسلم بالكافر رقم: ٦٩١٥ و ٢/١٠٨٤ كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة باب مايكره من التعمق والتنازع في العلم والغلو في الدين والبدع رقم: ٧٣٠٠ وعند مسلم في صحيحه في كتاب الحج باب فضل المدينة رقم: ٣٢٢٧ – ٣٢٢٩ وفي كتاب العتق باب تحريم تولي العتيق غير مواليه رقم: ٣٧٩٤ وعند الترمذي في جامعه في أبواب الديات باب ماجاء لايقتل مسلم بكافر رقم: ١٤١٢ وفي ابواب الولاء والهبة باب ماجاء في تولي غير مواليه أو ادعى إلى غير أبيه رقم: ٢١٢٧ والنسائي في سننه في كتاب القسامة باب القود بين الاحرار والمماليك رقم: ٤٧٣٨، ٤٧٣٩ وباب سقوط القود من المسلم للكافر رقم: ٤٧٤٨ – ٤٧٥٠ وعند أبي داؤد في سننه في كتاب المناسك باب في تحريم المدينة رقم: ٢٠٣٤ وفي كتاب الديات باب إيقاد المسلم من الكافر رقم: ٤٥٣٠ وعند ابن ماجة في سننه في كتاب الديات باب لايقتل مسلم بكافر رقم: ٢٦٥٨.

(٢) كشف الباري: ٢/١٥٩.

(٣) كشف الباري: ٢/٣٦٧.

(٤) كشف الباري: ١/٦٧٩.

كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې تيره شوې ده

**ددې روايت په تخريج كښې د علامه عبدالغنى نابلسى تسامح:-** د ترجمة الباب د دې روايت متعلق علامه عبدالغنى نابلسى ﷫ ذخائر المواريث كښې ليكلي دى چه امام بخارى ﷫ دا روايت ديات كښې د احمدبن يونس په طريق سره ذكر كړې دې [۱] دا د هغه تسامح دې. ځكه چه په كتاب الديات كښې دا روايت احمدبن يونس په طريق سره نه بلكه د صدقه بن الفضل په طريق سره نقل كړې دې [۲]

**قوله** قلت لعلى رضى الله عنه هل عندكم شئ من الوحى إلا ما فى كتاب الله؟.......: دې حديث ته حديث قرطاس وئيلې شى كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې په دې باندې تفصيلى بحث تيرشوې دې

**ترجمة الباب سره مناسبت:-** د ترجمة الباب مناسبت وفكاك الاسير سره دې ابوجحيفه ﷛ چه كله د حضرت على ﷛ نه پوښتنه اوكړه چه په دې صحيفه كښې څه دى؟ نوحضرت على ﷛ جواب وركړو. العقل وفكاك الاسير ترجمة الباب سره د دې جملې مناسبت بالكل ښكاره دې [۳]

## باب ۱۶۹: فداء المشركين

**باب سابق سره مناسبت:-** په وړاندينى باب كښې د كافرانو اومشركانو په قيدكښې راګيرشوى مسلمانان قيديانو د راخلاصولوحكم بيان كړې شوې وو او په دې باب كښې د كافراومشرك قيدى د راخلاصولومتعلق حكم بيانولې شى چه په جنګ كښې قيدكيدونكى مشركان د فديه اخستلونه پس خلاصولې شى؟

**د ترجمة الباب مقصد:-** علامه ابن بطال ﷫ فرمائى چه د دې باب لاندې امام بخارى ﷫ دا خودل غواړى چه د مسلمانانو په لاس ګرفتار كيدو سره قيديان جوړيدونكى مشركان د جنګ او وينوبهيولونه پس فديه اخستلوسره خلاصول جائزدى. په حديث كښې چه د حضرت عباس ﷛ كومه واقعه ذكرده چه هغه د خپل خان اوعقيل ﷛ د طرف نه فديه وركولوسره خلاصې حاصل كړې وو. دا صورت د وينو بهيولو (اثخان) نه وړاندې وو په دې باندې د الله تعالى د طرف نه رټنه نازل شوې وه. په دې وجه فديه اخستلوسره مشرك قيدى خلاصول صرف په هغه صورت كښې جائزدى چه كله د مسلمانانو اوكافرانو په مينځ كښې جنګ شوې وى. يابيادا چه د مسلمانانو په مقابله كښې مشركان كمزورې وى. [۴]

---

[۱] ذخائر المواريث: ۲/۳۴۴ – ۳۴۵ رقم: ۵۴۴۵ قال النابلسى: أخرجه البخارى فى كتاب الجهاد وفى الديات عن أحمد بن يونس.

[۲] صحيح البخارى: ۲/۱۰۲۱ كتاب الديات باب لايقتل المسلم بالكافر رقم: ۶۶۱۵.

[۳] عمدة القارى: ۱۴/۴۰۹.

[۴] شرح ابن بطال: ۵/۲۱۲.

د بخاری رحمه الله د ترجمة الباب په اثبات کښې دلته درې احاديث نقل کړی دی.

حديث [۲۸۸۳] (۱) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي أُوَيْسٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ-رضي الله عنه-أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْأَنْصَارِ اسْتَأْذَنُوا رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ ائْذَنْ فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ أُخْتِنَا عَبَّاسٍ فِدَاءَهُ. فَقَالَ «لَا تَدَعُونَ مِنْهَا دِرْهَمًا». [ر: ۲۴۰۰]

## رجال الحديث

① **اسماعيل بن ابی اویس**- دا ابوعبدالله اسماعيل بن ابی اویس عبدالله بن اویس بن مالك بن ابی عامر اصحى مدنی رحمه الله دې. ددوی تذکره کتاب الايمان لاندې تیره شوې ده (۲)

② **اسماعيل بن ابراهيم**- دا اسماعیل بن ابراهیم بن عقبه بن ابی عیاش قرشی اسدی رحمه الله دې. دې د امام المغازی موسی بن عقبه وراره دې. (۳) دَدوی تذکره وړاندې تيره شوې ده (۴)

③ **موسی بن عقبه**- دا امام المغازی موسی بن عقبه اسدی رحمه الله دې. ددوی تذکره وړاندې تيره شوې ده (۵)

④ **ابن شهاب**- دا جليل القدر امام حديث ابوبكر محمد بن شهاب زهری رحمه الله دې. دَدوی حالات هم بدء الوحی کښې د دريم حديث لاندې تيرشوی دی. (۶)

⑤ **انس بن مالک** رضی الله عنه- دا مشهور صحابی رسول صلی الله علیه وسلم انس بن مالك رضی الله عنه دې. دَدوی تذکره کتاب الايمان لاندې تیره شوې ده. (۷)

**قوله** أن رجالا من الانصار استاذنوا رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فقالوا: يارسول الله! ائذن لنا فلنترك لابن أختنا عباس فداءه؟ فقال: لاتدعوا منه درهما...: حضرت انس رضی الله عنه وائی چه دَ انصارو بعض کسان دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضرشو اجازت ئې اوغوښتلو چه هغه خپل خورئې عباس رضی الله عنه فديه معاف کول غواړی هغه وخت حضرت عباس رضی الله عنه اسلام نه وو راوړلې او د بدر قيديانوسره

(۱) والحديث أخرجه البخاری رحمه الله أيضًا فی المغازی باب شهود الملائكة بدرًا وفی كتاب العتق باب إذا إسر أخو الرجل أوعمه.
(۲) كشف الباری:۲/۱۱۳.
(۳) تهذيب الكمال للحافظ المزی: ۱۷/۳ رقم الترجمة:٤١٥.
(۴) كتاب جزاء الصيد باب ماينهى من الطيب للمحرم والمحرمة.
(۵) كتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء.
(۶) كشف الباری:۱/۳۲۶.
(۷) كشف الباری:۲/٤.

دَ مسلمانانو په لاس گرفتار شوي وو رسول الله ﷺ هغوی ته دَ داسې كولو اجازت ورنه كړو او ورنه فرمائيل دَ هغه په فديه كښې يو درهم هم معاف نه كړئي
حضرت عباس رضي الله عنه دَ رسول الله تره وو انصاری صحابه كرامو په حضور پاك باندې دَ خان اوزړه نه قربان وو په دې وجه دَ خپلولئی د وجه نه هغوی دَ رسول الله ﷺ رعايت كولوسره دَ حضرت عباس رضي الله عنه دَ فديه معاف كولو درخواست كړې وو ليكن دَ هغوی خيال ووچه په فديه وركولو كښې به دَ مشركانو سپكاوې كيږی اوپه دې سره به دَ هغوی طاقت كمزورې شی په دې وجه حضور پاك خپلولی نظرانداز كولوسره دَ فديه وصول كولو حكم وركړو (۱)

**دَ ترجمة الباب اثبات:-** علامه عينی رحمه الله فرمائي چه دَ ترجمة الباب مناسبت ائذن لنا سره دې (۲) صحابه كرام رضي الله عنهم **ائذن لنا فلنترك لابن أختنا عباس فداءه** ونيلوسره دَ رسول الله ﷺ نه دَ حضرت عباس رضي الله عنه دَ فديه معاف كولو درخواست كړې وو چه هغه وخت نی لا اسلام نه وو راوړلې ددې نه معلومه شوه چه فديه اخستلوسره دَ مشركانو قيديانو خلاصولوصورت موجودوو په دې وجه ترجمة الباب سره ائذن لنا مناسبت ښكاره دې.

[حديث: ۲۸۸۴] وَقَالَ إِبْرَاهِيمُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ ، فَجَاءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ ، أَعْطِنِي فَإِنِّي فَادَيْتُ نَفْسِي ، وَفَادَيْتُ عَقِيلاً . فَقَالَ « خُذْ » . فَأَعْطَاهُ فِي ثَوْبِهِ .[ر ۴۱۱]

## رجال الحديث

① **ابراهيم بن طهمان:-** دا ابراهيم بن طهمان هروی دې دَ دوی تذكره كتاب الغسل باب من اغتسل عريانا وحده فى الخلوة لاندې تيره شوې ده.
② **عبدالعزيزبن صهيب:-** داعبدالعزيربن صهيب بنانی بصری رحمه الله دې دَ دوی حالات كتاب الايمان لاندې تيرشوی دی. (۳)
③ **انس بن مالک** رضي الله عنه:- دَ ترجمة الباب په رومبی حديث كښې دَ دوی حواله تيره شوې ده

**أن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم أتى بمال من البحرين، فجاءه العباس فقال: يارسول الله! أعطنى، فانى فاديت نفسى، وفاديت عقيلا. فقال: خذ فاعطاه فى ثوبه**

دَ حضرت انس رضي الله عنه روايت دې دَ رسول الله ﷺ په خدمت كښې دَ بحرين خراج راغلو نو حضرت عباس رضي الله عنه دَ حضور پاك په خدمت كښې عرض اوكړو يارسول الله ﷺ ماته هم راكړه خكه (دَ بدر په موقع) ماخپله اودَ عقيل فديه اداكړې ده حضورپاك اوفرمائيل واخله اودَ هغه حصه نی دَ هغه په جولئی كښې واچوله.

---

(۱) شرح ابن بطال:۵/۲۱۲.
(۲) عمدة القاری:۱۴/۴۰۹.
(۳) كشف الباری:۲/۱۲.

دَ بدر په موقع گرفتارشوو مشرکانو قیدیانو کښې حضرت عباس رضی الله عنه هم شامل وو هغه وخت ډوی اسلام نه وو راوړلې چونکه په معاشي لحاظ سره مالداران او آسوده حال وو په دې وجه نې خپله اوډ عقیل فدیه ورکولوسره خلاصې حاصل کړو. حافظ ابن حجر رحمه الله وائی چه د یوروایت مطابق هغه سره حارث بن نوفل هم قیدیانو کښې شامل وو حضرت عباس رضی الله عنه دهغه دَ طرف نه هم فدیه اداکړې وه. (۱)

**فائده** - خوعلامه ابن بطال رحمه الله یوقول نقل کړې دې چه دا فدیه حضرت عباس رضی الله عنه په قرض اخستلوسره اداکړې وه دَ اسلام راوړلوپورې دغه رقم دَ هغه په ذمه باندې اداکول پاتې وو دَ بحرین دَ خراج دَ مال نه حضرت عباس رضی الله عنه دَ څه اخستلو مطالبه هم په دې وجه کړې وه چه خپل قرض ورکړې شی. (۲)

**دَ مذکوره تعلیق تخریج**:- دا تعلیق امام بخاری رحمه الله دلته په اختصارسره او کتاب الصلوٰة کښې په تفصیل سره روایت کړې دې اوپه کتاب الصلوٰة کښې هم دامعلق دې (۳) خو حافظ ابونعیم مستخرج کښې اوحاکم په مستدرك کښې احمدبن حفص په طریق سره دا تعلیق موصولاً روایت کړې دې. (۴)

**دَ تعلیق مقصد**:- په دې تعلیق کښې پخپله حضرت عباس رضی الله عنه دَ جنګ بدر په موقع باندې خپل او دَ عقیل فدیه ادا کولو تصریح کړې ده چه دَ ترجمة الباب دَ روایت دپاره مؤید دې دویمه خبره دَدې تعلیق نه دامعلومه شوه چه کومه فدیه هغوی په قرض اخستلوسره اداکړې هغه قرض تردغه وخته پورې دَهغه په ذمه واجب الادا وه لکه چه علامه ابن بطال رحمه الله نقل کړې دی. اودا قرضه روستوهغوی دَ بحرین دَ جزئیه یا مال خراج نه اداکړه. (۵) امام بخاری رحمه الله هم دَ دې وجوهاتو په وجه مذکوره تعلیق نقل کړې دې چه یوخودا تعلیق دَ ړومبی روایت دَ پاره مؤید دې. بل دَ زیاتی فائدې په توګه دَدې نه یوه نوې خبره معلومه شوه.

**ترجمة الباب سره مناسبت**:- په روایت باب کښې داجمله **فانی فادیت نفسی وفادیت عقیلا** مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دې. (۶)

---

(۱) كشف البارى: ۲۰۶/۶۰.

(۲) شرح ابن بطال: ۲۱۲/۵قيس أنه كان يداين فى ذلک عباس، وبقى عليه الدين إلى وقت إسلامه. ولذلک قال للنبى صلى الله تعالى عليه وسلم أعطنى فانى فاديت نفسى وفاديت عقيلا. فغرم النبى صلى الله تعالى عليه وسلم ماتحمله العباس من ذلک بعدإسلامه مما آفاء الله على رسوله.

(۳) صحيح بخارى: ۶۰/۱ كتاب الصلوة باب القسمة وتعليق القنو فى المسجد رقم: ۴۲۱.

(۴) فتح البارى: ۵۱۶/۱ كتاب الصلوة باب القسمة وتعليق القنوفى المسجد.

(۵) دَ بحرین دا مال دَ جزئیه یا خراج دَ قبیل نه وو؟ دَدې تفصیل په کتاب الجزیه کښې راروان دې.

(۶) عمدة القارى: ۴۰۹/۱۴.

احديث ۲۸۸۵ [۱] : حَدَّثَنِي مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ - وَكَانَ جَاءَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ - قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ. [ر: ۷۳۱]

## رجال الحديث

① **محمود** - محمود بن غيلان العدوى المروزى دى. دَ دوى حالات كتاب مواقيت الصلوة باب النوم قبل العشاء لمن غلب لاندې تيرشوى دى

② **عبدالرزاق** - دا عبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانى يمانى رحمه الله دى. دَدوى تذكره كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء لاندې تيره شوې ده [۲]

③ **معمر** - دامعمربن راشد ازدى بصرى رحمه الله دى. دَدوى تذكره بدء الوحى پنځم حديث لاندې تيره شوې ده. [۳]

④ **زهرى** :- دامشهورمحدث محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دى. دَدوى حالات بدء الوحى لاندې تيرشوى دى [۴]

⑤ **محمدبن جبير** :- دامشهورتابعى محمدبن جبير معظم ابن عدى دى. دَجبيربن معطم رضي الله عنه خوئى دې. دَ دوى شمير دَ علم الانساب په مشهورو ماهرينو كښې كيږى كتاب الاذان باب الجهر فى المغرب لاندې دَ دوى حالات تيرشوى دى

⑥ **عن ابيه** :- دې نه دَمحمدبن جبير پلارجبيربن مطعم رضي الله عنه مراد دې. دَدوى حالات كتاب الغسل باب من أفاض على رأسه ثلاثا لاندې تيرشوى دى.

**قوله**: وكان جاء فى أسارى بدر :- دَدې حديث تفصيلى بحث كتاب الاذان باب الجهر فى المغرب لاندې تيرشوې دې.

**ترجمة الباب سره مناسبت** :- دَ حديث پاك داجمله وكان جاء فى أسارى بدر دَ ترجمه مناسب ده. [۵] حضرت جبيربن مطعم رضي الله عنه فديه وركړه اودَ بدر دَ قيديانودَ خلاصولودَپاره نبى رسول الله صلى الله عليه وسلم سره معاهده كولودَپاره راغلې وو چونكه په دې كښې دَ فديه ذكردې په دې وجه ترجمة الباب سره دَدې مطابقت ښكاره دې

---

[۱] ) وقدسبق تخريج الحديث فى كتاب الاذان باب الجهر فى المغرب رقم: ۷۶۵.
[۲] ) كشف البارى: ۲/۴۲۱.
[۳] ) كشف البارى: ۱/۴۶۵.
[۴] ) كشف البارى: ۱/۳۲۶.
[۵] ) فتح البارى: ۶/۱۶۸ وعمدة القارى: ۱۴/۴۱۰ وإرشادالسارى: ۵/۱۶۷ وتحفة البارى: ۳/۵۱۰.

## باب ۱۷۰: الحربي إذا دخل دار الاسلام بغير أمان

**باب سابق سره مناسبت**: په وړاندینی باب کښې په جهاد کښې ګرفتار شوی قیدیانو حکم بیان کړې شوې وو ددې باب لاندې دامان غوښتلو بغیر دارالاسلام کښې داخلیدونکی حربی حکم بیانولې شی چه دا قتل کړې شی که قید کړې شی؟

**دترجمة الباب مقصد**: علامه عینی رحمه الله فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دلته یو سوال اوچت کړې دې که چرې حربی په دارالاسلام کښې داخل شی نو هغه قتل کولې شی؟ په دې صورت کښې به عبارت مقدر وی باب الحربي إذا دخل دار الاسلام بغير أمان، هل يجوز قتله؟ [۱] علامه عینی رحمه الله فرمائی دامسئله چونکه مختلف فیها ده په دې وجه امام بخاری رحمه الله په ترجمه کښې د حکم تصریح نه ده فرمائیلې. [۲]

احديث: ۲۸۸۶ [۳] حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا أَبُو الْعُمَيْسِ عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الأَكْوَعِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - عَيْنٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَهْوَ فِي سَفَرٍ، فَجَلَسَ عِنْدَ أَصْحَابِهِ يَتَحَدَّثُ ثُمَّ انْفَتَلَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اطْلُبُوهُ وَاقْتُلُوهُ». فَقَتَلَهُ فَنَفَّلَهُ سَلَبَهُ.

## رجال الحديث

① **ابونعيم**:- دامشهور محدث ابونعيم الفضل بن دكين الملائى الكوفي الاحول رحمه الله دې دَدوی حالات كتاب الايمان باب فضل من استبرألدينه کښې تیر شوی دی. [۴]

② **ابوالعميس**:- دا ابوالعميس عتبه بن عبدالله بن عتبه بن عبدالله بن مسعود الهذلى المسعودى الكوفى رحمه الله دې. دَ دوی تذکره كتاب الايمان باب زيادة الايمان ونقصانه لاندې تیره شوې ده

③ **اياس بن سلمه**:- دادَ مشهور صحابي سلمة بن اكوع رضي الله عنه خوئې ابوسلمة اياس بن سلمه بن اكوع الاماني المدني رحمه الله دې. [۵] ده دَخپل پلار سلمه بن اكوع رضي الله عنه نه حديث روايت کړې دې [۶] امام ذهبی رحمه الله فرمائی چه ماته معلومه نه شوه چه ده دَخپل پلار نه علاوه دَ بل چانه

---

[۱] ) عمدة القاري: ۱۰/۱٤ ٤ والابواب والتراجم للشيخ زكرياالكاندهلوى ص: ۲۰۳.

[۲] ) عمدة القاري: ۱۰/۱٤ ٤ والابواب والتراجم للشيخ زكرياالكاندهلوى ص: ۲۰۳.

[۳] ) الحديث عندمسلم فى صحيحه ۸۸/۲ فى كتاب الجهاد باب استحقاق سلب اللقتيل رقم: ۱۷۵٤ وعندأبى داؤد فى سننه ۳/۲ فى كتاب الجهاد باب فى الجاسوس المستامن رقم: ۲۶۵۳ وعند ابن ماجه فى سننه ص: ۲۰۳ فى الجهاد باب المبارزة والسلب رقم: ۲۸۳۶.

[۴] ) كشف البارى: ۶۶۹/۲.

[۵] ) تهذيب الكمال: ٤۰۳/۳ رقم الترجمة: ۵۹۰.

[۶] ) تهذيب الكمال: ٤۰۳/۳ وسير أعلام النبلاء: ٤٤٤/۵ رقم الترجمة: ۱۰۷.

حدیث روایت کړې دې [1] لیکن حافظ مزی ﷫ د محمد ابن عمار بن یاسر تصریح کړې ده چه ایاس بن سلمه د هغه هم حدیث روایت کړې دې [2]
په دواړو اقوالو کښې څه تعارض نشته ځکه چه د علامه ذهبی نه پیژندل د دې خبرې دلیل نه دې چه په واقع کښې هم ایاس بن سلمه ﷫ د خپل پلار نه علاوه د بل چانه حدیث روایت کړې نه وی حافظ یوسف مزی ﷫ د ده نه روایت حدیث کونکو ۲۰ رجال حدیث فهرست نقل کړې دې په کوم کښې ابوالعمیس عتبه بن عبدالله محمدبن بشیر عکرمه بن عمار او محمدبن شهاب زهری رحمهم الله غوندې جلیل القدر اعلام حدیث شامل دی [3]
د ده باره کښې امام یحیی بن معین ﷫ فرمائی ثقه [4]
امام احمدبن عبدالله العجلی او امام نسائی هم هغه ته ثقه وئیلې دې [5]
ابن سعد ﷫ فرمائی وكان ثقة وله أحاديث كثيرة [6]
ابن حبان ﷫ د هغوی ذکر په ثقات کښې کړې دې [7]
امام حاکم ﷫ فرمائی اتفق جميعا على الحجة به من أبيه. [8]
طبقات ابن سعد کښې دی چه د هغه وفات مدینه منوره کښې په کال ۱۱۹هجری کښې شوې ۷۷ کاله عمرئې وو [9]

**قوله ایاس بن سلمه تابعی ووکه صحابی؟**- ابن عبدالبر ﷫ فرمائی چه دا صحابی وو [10] حقیقت دادې چه دا تابعی وو د هغه په صحابی کیدوباندې هیڅ دلیل موجودنه دې. قرائن او آثار د هغوی صحابی نه کیدوباندې صریح دی.
**د حافظ ابن حجر ﷫ رد**:- حافظ ابن حجر ﷫ عبدالبر ﷫ پسې کیدو سره وائی که چرې دا هم هغه ایاس بن سلمه دې چانه چه ابوالعمیس ﷫ د حدیث روایت کړې دې نوبیا رسول الله ﷺ سره د دوی صحبت ثابت نه دې. ځکه چه د ایاس ولادت د حضرت عثمان ﷛ په دور خلافت کښې شوې دې دې نه ثابتیږی چه رسول الله ﷺ سره د دوی ملاقات نه دې شوې حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی چه عبدالبر ﷫ د دوی ذکر د صحابه کرامو په فهرست کښې د کولو نه پس

---

[1]) قال العلامة الذهبي: وما علمته روى عن غير أبية انظر سير أعلاء النبلاء: ٥/ ٢٤٤.
[2]) تهذيب الكمال: ٣/ ٤٠٣.
[3]) تهذيب الكمال:٣/ ٤٠٣ – ٤٠٤.
[4]) سيرأعلاء النبلاء للذهبي:٥/ ٢٤٤وتهذيب الكمال:٣/ ٤٠٤.
[5]) تهذيب الكمال للحافظ المزي:٣/ ٤٠٤.
[6]) طبقات ابن سعد:٥/ ١٨٤.
[7]) كتاب الثقات لابن حبان:١/ ٤٣.
[8]) إكمال تهذيب الكمال للعلامة علاء الدين مغلطائي:٢/ ٣٠٣.
[9]) طبقات ابن سعد:٥/ ١٨٤وسيرأعلاء ا لنبلاء للذهبي:٥/ ٢٤٤وتهذيب الكمال:٣/ ٤٠٤والكاشف للذهبي:١/ ١٥٨ رقم الترجمة:٤٩٨.
[10]) الاصابة لابن حجر:١/ ٨٩.

نیکلی دی دوی د حضورپاك په شان کښې مدحیه اشعارهم ونیلی دی مرزبانی رحمه الله د حافظ ابن عبدالبر رحمه الله نه هم وړاندې دې هغه معجم کښې د ایاس رحمه الله صحابی کیدلوتصریح نه ده کړې (۱)

د ایاس بن سلمه رحمه الله د تابعی کیدو دویم دلیل دادې چه د ده وفات په ۱۱۹هجری کښې شوې (۲) حالانکه مؤرخین اوجمهور محدثینو په نیزد ۱۱۰هجری نه پس د رسول الله ﷺ صحبت اوچتونکی صحابه کرامو قافلې یوکس هم په دې دنیاکښې باقی پاتې نه وو د عامربن واثله رضی الله عنه وفات د ټولونه آخرکښې ۱۱۰هجری کښې شوې

چنانچه علامه ذهبی رحمه الله فرمائی عامربن واثلة أبو الفضل الکنانی وکان من محبی علی رضی الله عنه وبه ختم الصحابة فی الدنیا، مات سنه عشر ومأة علی الصحیح. (۳)

**قوله أتی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم عین من المشرکین وهوفی سفر:** رسول الله ﷺ ته په سفرکښې یومشرك جاسوس راغلو حافظ ابن حجر رحمه الله وائی چه ما ته د هغه جاسوس نوم معلوم نه شو (۴)

**عین** - د دې معنی د جاسوس ده (۵) په عربی کښې لیکلې شی إعتان له: أی أتاه بالخبر. د عین اطلاق په سترکه باندې کیږی جاسوس ته عین ځکه ونیلې شی چه د هغه ټول اهم امور د نظر توجه او غیرمعمولی ارتکاز سره پوره کیږی یا په نورو لفظونوکښې د هغه د نظر په ارتکازکښې دومره انهماك او توجه وی لکه چه هغه د سرنه واخله ترخپو پورې سترګې جوړې شوی وی. وسمی الجاسوس عینا، لان جل عمله بعینه، أو لشدة اهتمامه بالرؤیة واستغراقه فیها کان جمیع بدنه صار عینا (۶)

**وهوفی سفر:** - په صحیح مسلم کښې امام مسلم رحمه الله د ترجمة الباب متذکره روایت د عکرمه بن عمار په طریق سره نقل کړې دې په هغې کښې تصریح ده چه دا د غزوه هوازن سفروو (۷)

---

(۱) وذکره ابن عبدالبر فی الصحابة وقال مدح النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بشعر. وفیه نظر. إن کان هوالذی روی عنه أبوالعمیس فلیست له صحبة. لانه ولدفی زمن عثمان رحمه الله وقال بعد أسطر - وقدسبق ابن عبدالبرالی ذلک المرزبانی فی معجمه لکن لم یصرح بان له صحبة بل قال فی ترجمته: وهوالقائل بمدح النبی صلی الله تعالی علیه وسلم انظر الاصابة للحافظ ابن حجر:۸۹/۱.

(۲) طبقات ابن سعد: ۱۸۴/۵.

(۳) الکاشف للذهبی:۵۲۷/۱.

(۴) فتح الباری:۲۰۷/۶.

(۵) النهایة فی غریب الحدیث:۳۳۱/۳.

(۶) فتح الباری:۱۶۸/۶.

(۷) صحیح مسلم:۸۸/۲کتاب الجهاد باب استحقاق القاتل سلب القتیل رقم:۱۷۵۴.وفیه: قال (سلمة بن الاکوع رضی الله عنه)غزونامع رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم هوازن..... الخ.

**قوله فجلس عند أصحابه يتحدث ثم انفتل** - بيا هغه صحابه كرامو سره كيناستو هغوى سره ئى خبرې اترې كولې اوبيا هغه واپس لاړو

**انفتل** - اي انفتل سريعا يعنى په تيزئى سره واپس كرځيدل [1] د امام نسائى رحمه الله په سنن كبرىٰ كښې دا روايت د جعفر بن عون عن ابى العميس په طريق سره مروى دې په دې كښې دى فلما طعم انسل [2] يعنى د خوراك نه فارغيدوسره هغه پټه شان لاړو خو په صحيح مسلم كښې د عكرمه متذكره روايت كښې زيات وضاحت موجود دې د صحيح مسلم الفاظ دادې فقيد الجمل، ثم تغدى مع القوم وجعل ينظر، وفينا ضعفة ورقة في الظهر، إذ خرج يشتد [3]
خلاصه داچه د بهرنه راتلونكې داجاسوس د صحابه كرامو په ډله كښې شامل شو هغوى سره يوځائى شو هغوى سره ترخوراك پورې اوكړو اوهغوى ته خبر اونه شو چه دا د دښمن مخبر اوجاسوس دې بيا دا چه هغه په پټه باندې په داسې مهارت سره اوتختيدو چه صحابه كرامو ته قطعا احساس اونه شو

**قوله اطلبوه واقتلوه، فقتله، فنفله سلبه** - حضورپاك اوفرمائيل هغه اولټوئى اوقتل ئى كړئى نو حضرت سلمه بن اكوع رضى الله عنه هغه قتل كړو اود هغه وسله او سامان حضورپاك هم هغه ته وركړل مستخرج ابونعيم كښې يحيى بن حمانى عن ابى العميس په طريق باندې چه كوم روايت نقل دې په هغې كښې دى چه حضوراوفرمائيل أدركوه فانه عين هغه كرفت ركړئى ځكه چه دغه جاسوس دې [4]

**فنفله سلبه** - دا د راوى سلمه بن اكوع رضى الله عنه الفاظ دى د متكلم صيغه استعمالولو په ځائې هغه خلاف قياس د غائب صيغه استعمال كړه دا التفات من المتكلم إلى الغائب د قبيل نه دې د قياس موافق داسې وئيل پكار وو فقتلته ونفلنى سلبه [5]
د نفل جمع انفال راځى ددې معنى د زياتوالى ده. فاء ساكن اومتحرك دواړه شان لوستل صحيح دى لهذا فنفله سلبه معنى به په دې صورت كښې داسې شى رسول الله صلى الله عليه وسلم سلمه بن اكوع رضى الله عنه ته د هغه د مقرر حصې نه زياته وركړه. په نفلى مونځ باندې هم د نوافل اطلاق ددې د پاره كيږى چه هغه زياتى فرائض وى ابن اثير رحمه الله ليكى النفل بالتحريك: الغنيمة، وجمعه أنفال. والنفل بالسكون وقد يحرك: الزيادة، وبه سميت النوافل فى العبادات، لانها زائدة على الفرائض. [6]

---

[1] ) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۱۰.
[2] ) السنن الكبرى للنسائى: ۵/ ۲۶۵ كتاب السير باب قتل عيون المشركين رقم: ( ) فتح البارى: ۶/ ۲۰۷.
[3] ) صحيح مسلم: ۲/ ۸۸ كتاب الجهاد باب استحقاق القاتل سلب القتيل. وفتح البارى: ۶/ ۲۰۷.
[4] ) فتح البارى: ۶/ ۱۶۸ وعمدة القارى: ۱۴/ ۴۱۱.
[5] ) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۱۱ وفتح البارى: ۶/ ۱۶۹ وإرشاد السارى: ۵/ ۱۶ وتحفة البارى: ۳/ ۵۱۱.
[6] ) النهاية لابن اثير: ۵/ ۹۹ وفتح البارى: ۵/ ۵۱۲.

**سلب** - هوفعل بمعنی مفعول: أی مسلوب (۱) هغه څیزچه دَقتل شوی نه اخستې شوې وی قسطلانی رحمه الله فرمائی هوالشیئ المسلوب سمی به، لانه یسلب عن المقتول (۲)
**دَ سلب مصداق** - دَ سلب اطلاق دَ مقتول نه اخستې شوی دې څیزونو باندې کیږی سورلی، لباس، وسله، زین بل دَ مقتول په سفری بیگ کښې موجود دَهغه مال اومتاع (۳)
**په دارالاسلام کښې دَ کافرحربی دَ داخلیدومسئله** - دَامام مالك رحمه الله په نیز که چرې کافرحربی دَ امان طلب کولو نه بغیردَ دارالاسلام په حدودوکښې داخل شی نوامام ته اختیاردې چه که هغه ئې قتل کوی قیدی ئې جوړه وی اوکه فدیه اخستوسره ئې پریږدی (۴) امام شافعی رحمه الله په نیزقتل کولوغلام جوړولو او فدیه اخستل پریخودلوسره دَ امن اواحسان اختیارهم حاکم وخت ته حاصل دې (۵)
که چرې کافر حربی دعویٰ اوکړی چه هغه دَخپل ملك دَحاکم دَ طرف نه دَ قاصد په حیثیت سره راغلې دې نو احناف (۶) او حنابله (۷) په نیز دَدغه دا خبره به په دې شرط قبلولې شی چه هغه سره دَ حاکم وخت تحریروی اویقین وی چه دا تحریر هم دَ حاکم وخت دې. اوکه چرې کافر حربی اووائی چه ما امان راوړلې راغلې یم نوامام اوزاعی امام شافعی او امام احمد رحمهم الله په نیزدې دَ هغه داخبره ردکړې شی او امام ته اختیاردې چه هغه دې دَ خپل اختیار مطابق دَه ته کوم قسم سزا هم چه وی ورکړی (۸) هم دغه مسلك دَ امام مالك رحمه الله هم دې (۹) البته دَ احنافو دَ فقهاؤ په نیز حربی جاسوس دَ خپلې دعوی دَ تصدیق دَپاره دې ثبوت پیش کړی نودې نه تعارض کول جائزنه دی. سزا ورکولونه دې بغیرپریخودې شی. (۱۰) امام محمد رحمه الله فرمائی هغه چه چاله په لاس ورغلودَهغه غلام دې جوړکړې شی. (۱۱) امام احمد رحمه الله فرمائی که چرې دَ تجارت په غرض په دارالاسلام کښې دَ حربیانو تگ راتگ معمول وی او په دې صورت کښې مشتبه جاسوس دَ یوسوداگرپه حیثیت سره خپله پیژندګلو اوکړی نودې نه به تعارض نه شی کولې. (۱۲)

---

(۱) النهایة لابن الاثیر:۳۸۷/۲.
(۲) إرشادالساری:۱۶۸/۵.
(۳) عمدة القاری:۴۱۱/۱۴وفتح القدیر۵/۵۱۴ وإرشادالساری:۱۶/۵ وتحفة الباری:۵۱۱/۳.
(۴) فتح الباری:۱۶۸/۶.
(۵) المجموع شرح المهذب للنوی:۲۳۸/۲۱ باب عقد الذمة.
(۶) ردالمختارعلی الدرالمختار: ۱۶۸/۴سعید.
(۷) المغنی لابن قدامة: ۱۰/۴۳۳ فصل:۷۴۹۱.
(۸) المغنی لابن قدامة: ۴۳۳/۱۰ فصل:۷۴۹۱.
(۹) شرح ابن بطال:۲۱۳/۵.
(۱۰) ردالمحتار علی الدرالمختار: ۱۶۸/۴سعید.
(۱۱) شرح ابن بطال:۲۱۳/۵.
(۱۲) المغنی لابن قدامة: ۴۳۳/۱۰.

علامه شامی رحمه الله په ردالمحتار کښې لیکلي دي که یو مسلمان کافرحربي ته د امان ورکولو دعوی اوکړي نود دوو مسلمانانو ګواهانو نه دې د دې دعوی تصدیق واخلي چه واقعتاً هغه دې حربي ته امان ورکړې دې؟ که ګواهانو تصدیق اوکړو نو دې به پریخودې شي (۱)

**د حربي مسلم حکم** مذکوره تفصیل د کافرانو اهل حرب سره متعلق وو که په دارالاسلام کښې داخلیدونکي حربي مسلمان وي نود امام ابوحنیفه امام شافعي او بعض فقهاء مالکیه رائې داده چه امام وخت دې هغه ته د خپلې خوښې مناسب سزا ورکړي دې قتل کول جائز نه دي (۲) امام مالک رحمه الله فرمائي یجتهد فیه الامام خو علامه عیني او امام نووي رحمه الله فرمائي چه د دغه اجتهاد وضاحت امام مالک رحمه الله نه دې فرمائیلي چه د دې مطلب څه دې؟ (۳) البته قاضي عیاض رحمه الله فرمائي چه د بعض فقهاء مالکیه د رائې مطابق مسلمان حربي قتل کول جائز دي.

وقال عیاض: قال کبار أصحابه - أی أصحاب مالك - یقتل (۴)

**ترجمة الباب او حدیث باب مناسبت باندې اشکال او د هغې جواب** - ابن منیر رحمه الله فرمائي چه په روایت کښې د جاسوس ذکردې خو په ترجمة الباب کښې امام بخاري رحمه الله د حربي ذکرکړې دې په ظاهره په دواړو کښې مناسبت نشته. ځکه چه مطلق حربي د کوم چه په ترجمة الباب کښې ذکردې اومشرک جاسوس دواړه جدا جدا شرعاً حکم لري لهذا دلته دعوی د دلیل نه اعم ده:

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه په شروع کښې د صحابه کرامو خیال وو چه دا جاسوس حربي مستامن دې. د دې حقیقت ادراک هغوی ته روستو اوشو چه هغه حربي مستامن نه وو بلکه جاسوس وو اوبغیر د امان نه راغلي وو. کله چه هغوی سره ملاؤشو او خوراک ئې اوکړو او د صحابه کرامو د حالاتو د جائزه اخستلو نه پس په پټه طریقه سره اووتلو اوتختیدو نومعلومه شوه چه مستامن نه وو بلکه جاسوس وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: قال ابن المنیر: ترجم بالحربي إذا دخل بغیر أمان، وأورد الحدیث المتعلق بعین المشرکین وهو جاسوسهم، وحکم الجاسوس مخالف لحکم الحربي المطلق الداخل بغیر أمان، فالدعوی أعم من الدلیل. وأجیب بان الجاسوس المذکور أوهم أنه ممن له أمان، فلما قضی حاجته من التجسیس انطلق مسرعا ففطن له، فظهر أنه حربي دخل بغیر أمان (۵)

## باب ۱۷۱: یقاتل عن أهل الذمة ولا یسترقون

**باب سابق سره مناسبت:-** په وړاندیني باب کښې د امان طلب کولونه بغیر دارالاسلام کښې داخلیدونکي حربي د مشرکانو د جاسوس حکم بیان کړې شوې وو چونکه جاسوس یا حربي

---

۱) ردالمحتار علی الدرالمختار: ۶/۲۶۶ کتاب الجهاد فصل فی استئمان الکافر. دارالمعرفة بیروت.

۲) عمدة القاری: ۱۴/۲۹۷.

۳) شرح النووی علی صحیح مسلم: ۲/۸۹ وعمدة القاری: ۱۴/۲۹۷.

۴) عمدة القاری: ۱۴/۲۹۷ وبذل المجهود: ۱۲/۱۷۸ الابواب والتراجم ص: ۲۰۳.

۵) فتح الباری: ۶/۱۶۹.

ته دَ اهل اسلام دَ حفاظت دَخاطره سزا ورکولې شی کوم چه دَ وخت دَحکومت فریضه ده په دې وجه په زیر نظر باب کښې تبعاً دَ اهل ذمه حکم بیان کړې شو چه په شرعی لحاظ سره څنګه چه دَ مسلمانانو حفاظت ضروری دې دغه شان دَ معاهد ذمی حفاظت او دهغه دمال املاک تحفظ هم ضروری دې والله اعلم

**دَترجمة الباب مقصد** - امام بخاری رحمه الله دلته دا باورکول غواړی چه په امصار اسلام کښې څنګه دَمسلمانانو دَ خان اومال حفاظت اودهغوی په حمایت کښې دښمنانوسره جنګیدل دَ حکومت وخت فریضه ده دغه شان دَ ذمیانو دَ خان اومال عزت اوناموس دَحفاظت دپاره دښمن سره جنګ کول دَ وخت په حکومت او مسلمانانو باندې فرض دی ځکه چه اهل ذمه ددې تحفظ دپاره جزیه ادا کوی (۱)

دَ فلايسترقون مطلب دادې چه اهل ذمه نقض عهد اوکړی نوبیاهم هغه غلام جوړول جائزنه دی (۲)

[حدیث: ۲۸۸۷] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عُمَرَ - رضی الله عنه - قَالَ وَأُوصِيهِ بِذِمَّةِ اللَّهِ وَذِمَّةِ رَسُولِهِ - صلی الله علیه وسلم - أَنْ يُوفَى لَهُمْ بِعَهْدِهِمْ، وَأَنْ يُقَاتَلَ مِنْ وَرَائِهِمْ، وَلَا يُكَلَّفُوا إِلَّا طَاقَتَهُمْ. [ر ۱۳۲۸]

## رجال الحدیث

① **موسیٰ بن اسماعیل**:- دا ابوسلمه موسیٰ بن اسماعیل التبوذکی البصری رحمه الله دې دَ دوی تذکره بدء الوحی لاندې تیره شوې ده. (۳)

② **ابوعوانه**:- دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله یشکری رحمه الله دې دَدوی تذکره هم بدء الوحی لاندې تیره شوې ده (۴)

③ **حصین**:- دا ابوالهذیل حصین بن عبدالرحمن السلمی الکوفی رحمه الله دې دَ دوی تذکره کتاب مواقیت الصلوة، باب الاذان بعد ذهاب الوقت لاندې تیره شوې ده

④ **عمربن میمون**:- داعمر بن میمون الاودی الکوفی رحمه الله دې دَ دوی تذکره کتاب الوضوء باب إذا القی علی ظهر المصلی قذر أو جیفة لم تفسد علیه صلاته لاندې تیره شوې ده

⑤ **عمر** رضی الله عنه:- دامشهورصحابی حضرت عمر ابن الخطاب رضی الله عنه دې دَ دوی حالات بدء الوحی لاندې تیرشوی دی (۵)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۴/۴۱۱ – ۴۱۲ وتحفة الباری: ۳/۵۱۱.
(۲) فتح الباری: ۶/۲۰۸.
(۳) کشف الباری: ۱/۴۳۳.
(۴) کشف الباری: ۱/۴۳۴.
(۵) کشف الباری: ۱/۲۳۹.

**قوله** وأوصیه بذمة الله وذمة رسوله، أن يوفي لهم بعهدهم، وأن يقاتل من وراءهم: دا روایت په کتاب الجنائز کښې په تفصیل سره راغلې دې دلته امام بخاری رحمه الله د باب په مناسبت سره حدیث مختصراً نقل کړې دې روایت کښې دی چه حضرت عمر رضی الله عنه (د وفات نه لږ وړاندې) اوفرمائیل چه زه ماپسې راتلونکی خلیفه ته د دې خبرې وصیت کوم چه ذمیانوسره د الله تعالی اودهغه د رسول صلی الله علیه وسلم کوم عهد دې هغه پوره کړی اودهغوی د تحفظ دپاره دې جنګ کوی

وړاندې دمناقب په یواوږدروایت کښې حضرت عمر رضی الله عنه باندې د قاتلانه حملې تفصیلی واقعه اود وفات نه وړاندې خپل خان پسې راتلونکی خلیفه وخت ته چه هغه کوم وصیت کړې دهغې تفصیلی ذکردې (۱) دلته امام بخاری رحمه الله د باب په مناسبت سره د ذمیانومتعلق وصیت ذکرکولوباندې اکتفاکړې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ذمیانوسره کومه معاهده کړې وه هغې په رڼاکښې په اسلامی حکومت کښې هغوی چه دوی ته کوم رعایت ورکړې وو راتلونکی خلیفه له پکاردې چه دغه معاهده پوره کړی. که چرې په ذمیانوباندې حمله اوکړې شی نودهغوی دحفاظت دپاره حمله کونکوسره دې جنګ هم اوکړی.

**دذمیانو غلام جوړولوحکم:-** د ذمیانود حفاظت دپاره جنګیدل اوهغوی د حمله کونکونه آزادول په اسلامی حکومت باندې فرض دی. که حربیانو حمله اوکړه او ذمیان ئې ګرفتارکړل او دارالحرب ته ئې بوتلل قیدئی کړل نودهغوی د راخلاصولواو واپس دارالاسلام ته راوستلودپاره حربیانوسره جنګ کول به واجب وی

سوال دادې چه کله ذمیان د دارالحرب نه خلاصیدونه پس دارالاسلام ته راوستلې شی نوهغوی به غلامان جوړولې شی که د وړاندې په شان به آزاد پریخودلې شی؟

ائمه اربعه امام شعبی، لیث، اوزاعی، اسحاق بن راهویه اود اشهب مالکی رحمهم الله مسلك دادې چه ذمیان په هیڅ صورت سره غلامان جوړول جائزنه دی. څکه چه دهغوی د طرف نه څه داسې اقدام نه دې شوې چه نقض عهد (عهدماتول) باندې دلالت اوکړی په دې وجه دهغوی عقدذمه به باقی پاتې وی او هغوی به غلامان جوړول جائزنه وی (۲) البته مالکیه نه د ابن قاسم مالکی رائې ده که چرې ذمیانود نقض عهدارتکاب نه وی کړې نوبیا هم دارالاسلام ته د راوستونه پس هغوی غلامان جوړولې شی (۳)

**د مذاهب په نقل کولوکښې په ابن قدامه باندې دابن حجر رحمه الله اعتراض اود علامه عینی جواب:-**

د مذاهبو په نقل کولوکښې ابن قدامه رحمه الله داغراب طرف ته نسبت کولوسره حافظ ابن

---

(۱) صحیح بخاری: ۱/۵۲۳ – ۵۲۵ کتاب الفضائل أصحاب النبی صلی الله تعالی علیه وسلم باب قصة البیعة والاتفاق علی عثمان بن عفان رضی الله عنه وفیه مقتل عمر الخطاب رضی الله عنه رقم: ۳۷۰۰.

(۲) المغنی لابن قدامة: ۹/۲۲۷ – ۲۲۸ رقم: المسئلة: ۷۵۶۶وعمدة القاری: ۱۴/۱۹۷ وفتح الباری: ۶/۱۷۰ولامع الدراری: ۷/۲۷۵.

(۳) عمدة القاری: ۱۴/۴۱۲ دارالکتب العلمیة بیروت.

حجر رحمه الله فرمائي وأغرب ابن قدامة فحكى الاجماع، وكأنه لم يطلع على خلاف ابن القاسم [۱] يعنى دارالاسلام ته د منتقل كيدونه پس ذميان غلامان جوړول جائزنه دى په دې باندې ابن قدامة رحمه الله اجماع نقل كړې ده حالانكه د ابن قاسم مالكي رحمه الله رائې د اجماع خلاف ده لكه چه ابن قدامه رحمه الله ته داعلم اونه شو چه دابن قاسم قول د جمهورو خلاف دې كنى هغه به دا اجماع مسئله نه كرخوله

علامه عينى رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله پسې كيدوسره د ابن قدامة د طرف نه دا جواب وركړې دې ممكن دې چه د لفظ اجماع نه د ابن قدامه په نيزد ائمه اربعه اجماع مراد وى. په عمدة القاري كښې دى: وقيل: أغرب ابن قدامة فحكى الاجماع فكأنه لم يطلع على خلاف ابن القاسم، قلت: يحتمل أنه أراد به إجماع الائمة الاربعة. [۲]

**د باب نه د حديث په مناسبت د ابن التين رحمه الله اشكال اودابن منير رحمه الله رد:** - علامه ابن التين رحمه الله فرمائى چه په حديث باب كښې د ذميانوغلامان جوړولو د ممانعت تصريح نشته په دې وجه د ترجمة الباب دويم جزء ولا يسترقون سره د حديث باب مناسبت نشته. [۳]

ابن منير رحمه الله د دې جواب وركړې چه امام بخارى رحمه الله په دې ترجمة الباب كښې واوصيه بذمة الله مناسبت سره قايم كړې دې. ځكه چه د دغه وصيت تقاضا داده چه ذميانو سره د نرمئى تلطف او ښه سلوك معامله اوكړې شى. او غلام جوړول د دې وصيت د مقتضى منافى دى. [۴]

**دعلامه عينى رحمه الله توجيه:** - علامه عينى رحمه الله فرمائى چه ممكن ده ولايسترقون نه دامام بخارى رحمه الله ترجمة الباب كښې زيربحث مسئله مختلف فيها كيدوطرف ته اشاره فرمائيلې وى چه ذميان د دارالحرب نه دارالاسلام ته منتقل كولونه پس غلامان جوړولې شى كه نه؟ د ابن قاسم مالكى رحمه الله رائې په دې مسئله كښې د جمهورو خلاف ده. [۵] والله اعلم

**قوله:** ولايكلفون إلا طاقتهم: - د هغوى د طاقت او وسعت نه زيات بوج په هغوى مه اچوئى. مطلب دا چه د جزيه مقدار د هغوى د مالى حيثيت رعايت كولوسره مقرر كوئى. داسې چه د مالدارنه زيات او متوسط نه كم او غريبانانو نه ډير كم واخستې شى. كوم خلق چه د آمدن ذرائع نه لرى د ځا د معيشيت انحصار چه د نورو په وركړه باندې دې په هغوى باندې جزيه معاف كړئى. د جزيه په مقررولو كښې د دې خبرې خيال ساتل ضرورى دى چه داسې رقم

---

[۱] ) فتح البارى: ۶/ ۱۷۰.

[۲] ) عمدة القارى: ۱۴/ ۱۹۷ ولامع الدرارى: ۷/ ۲۸۵.

[۳] ) عمدة القارى: ۱۴/ ۱۹۷ وفتح البارى: ۶/ ۲۰۸.

[۴] ) چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله تحرير فرمائى (فتح البارى: ۶/ ۱۷۰) وقد تعقبه ابن التين بانه ليس فى الحديث مايدل على ماترجم به من عدم الاسترقاق. وأجاب ابن المنير بانه أخذ من قوله: وأوصيه بذمة الله فان مقتضى الحديث بالاشفاق على أن لايدخلوا فى الاسترقاق.

[۵] ) عمدة القارى: ۱۴/ ۴۱۲ قلت يحتمل أنه ذكره لمكان الخلاف فيه. فان مذهب ابن القاسم: إنهم يسترقون إذا نقضوا العهد.

مقرر کړې شی د کوم ادا کول چه د هغوی د پاره اسان وی

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** په روایت کښې دی وأن يقاتل من وراءهم ترجمة الباب سره د دې مطابقت ښکاره دې [1]

## باب ۱۷۲: جوائز الوفد هل يستشفع إلى أهل الذمة ومعاملتهم

**د ابواب په ترتیب کښې د نسخو اختلاف:-** د صحيح بخاری د زیرنظر نسخه مطابق باب جوائز الوفد لاندې څه حدیث نقل کولو بغیر متصلاً دویم باب شروع کیږی د کوم لاندې چه د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث نقل کړې شوې دې د فربری رحمه الله په ټولو نسخو کښې هم دغه ترتیب دې البته هم د فربری رحمه الله نه ابن علی بن شبویه چه کومه نسخه روایت کړې ده په هغې کښې باب هل يستشفع إلى أهل الذمة؟ ومعاملتهم وړاندې او باب جوائز الوفد روستو دې د علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله رائې ده چه هم دغه ترتیب مناسب اوقرین قیاس دې ځکه چه ترجمة الباب سره د حدیث باب مناسبت هم په دې ترتیب پیش نظر کیدې شی په حدیث باب کښې وأجيزوا الوفد مناسبت باب جوائز الوفد سره بالکل ښکاره دې د دې برعکس چه د اول ذکرشوو نسخو کوم ترتیب دې چه جوائز الوفد باب اول او باب هل يستشفع..... روستو دې د هغې مطابق ترجمة الباب نه د حدیث باب مناسبت نه شی کیدې [2]

اوس پوهه شئی چه په اصل کښې امام بخاری رحمه الله باب هل يستشفع.... ترجمه قایمولو سره بیاض پریخودې وو چه په باب کښې به د دې مناسب حدیث نقل کولې شی خو امام صاحب ته د دې موقع نه ده ملاؤ شوې لیکن نساخ بخاری د امام بخاری پریخودې شوې بیاض نظر انداز کولو سره دواړه ابواب یوځائې کړل [3]

د صحيح بخاری چه کومه نسخه علامه نسفی رحمه الله روایت کړې ده په باب جوائز الوفد هډو موجود نه دې په دې نسخه کښې حدیث ابن عباس رضی الله عنهما باب هل يستشفع لاندې نقل کړې شوې دې حالانکه دې ترجمه سره د ابن عباس رضی الله عنهما د حدیث مناسبت قایم کول د تکلف نه خالی نه دی [4]

**د حافظ ابن حجر رحمه الله توجیهات:-** البته حافظ ابن حجر رحمه الله علامه نسفی رحمه الله د نسخې مذکوره

---

[1] ) عمدة القاری: ۱۲/۱۴ ٤ وتحفة الباری للامام زکریا الانصاری: ۵۱۱/۳.

[2] ) عمدة القاری: ۱۲/۱۴ ٤ قال العینی: هکذا وقع هذان البابان ولیس بینهما شئ فی جمیع النسخ من طریق الفربری إلا فی روایة أبی علی ابن شبویه عن الربری وقع باب جوائز الوفد بعد باب هل یستشفع وهذا أصواب الان حدیث الباب مطابق لترجمة جوائز الوفد لقوله: وأخیز والوفد بخلاف الترجمة الاخری. وفتح الباری: ۲۰۹/۶.

[3] ) نفس المصدرین السابقین ونص ماقاله العینی: وکان لبخاری وضع هاتین اترجمتین وأخلی بینهما بیاضا لیجد حدیثا بناسبهما فلم یتفق ذللک. ثم إن النساخ أبطلو البیاض وقرنوابیهما.

[4] ) عمدة القاری: ۱۲/۱۴ ٤.

ترتيب پيش نظر باب **هل يستشفع إلى أهل الذمة؟ ومعاملتهم** سره دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما
مناسبت فيمولو دپاره مختلف توجيهات كړى دى

**رومبې توجيه** - دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په حديث كښې دى **أخرجوا المشركين** دَدې مقتضى
دا ده چه دَ ذميانو سفارش مه كوئى دَدې جملې مناسبت دَترجمة الباب جزء اول **هل يستشفع إلى أهل الذمة** سره ممكن كيدې شي دغه شان په حديث باب كښې دى **وأجيزوا الوفد** دَدې
مقتضىٰ دا ده چه مشركانو سره دَنرمئى اوښه سلوك كوئى دَدې جملې مناسبت دَ ترجمة
الباب دويم جزء **ومعاملتهم** سره ممكن دې

**دويمه توجيه** - هل يستشفع إلى أهل الذمة كښې به إلى دَ لام په معنى كښې اخستې شى
عبارت به مقدروى هل يستشفع لهم عند الامام وهل يعاملون؟ يعنى اې امام وخت ته دَ
ذميانو سفارش كيدې شى؟ اوهغوى سره حسن سلوك جائزدې؟
په دې صورت كښې ترجمة الباب سره دَ حديث دواړه وصيتونه أخرجوا المشركين او وأجيزوا
الوفد مناسبت ممكن دې [1]

**دَ حافظ ابن حجر په توجيهات باندې دَ علامه عينى رحمه الله رد** - ليكن علامه عينى رحمه الله فرمائى چه
دلته دَدې توجيهاتو ضرورت نشته هغه دَحافظ صاحب توجيهات بې محل او تكلف گرځولى
دى [2]

**دَترجمة الباب مقصد** - **هل يستشفع إلى أهل الذمة ومعاملتهم** نه امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى
چه امام ته دَ اهل ذمه سفارش كول جائزدى او هغوى سره حسن سلوك كول هم جائزدى ليكن
كه اهل ذمه معاهده ماته كړه نوبيابه هغوى دَ دغه سلوك قابل نه وى [3]

باب دَ مضاف لوستلو په صورت كښې به **ومعاملتهم** مجرور وى [4] خوكه په باب باندې تنوين
اولوستلې شى نو په دغه صورت كښې به مرفوع وى [5] بل چه إلى دَ لام په معنى كښې وى نو
په دغه صورت كښې به عبارت مقدروى **هل يستشفع لهم عند الامام** او دَ هل جواب **لايشفع لهم ولا
يعاملون إذا انقضوا العهد** به محذوف وى [6]

---

[1] قال ابن حجر رحمه الله (فتح الباري:٦/٢٠٩) ولعله من جهة ان الاخراج يقتضي رفع الاستشفاع. والحض على إجازة الوفد يقتضى حسن المعاملة. أو لعل إلى فى الترجمة بمعنى اللام. أى:هل يستشفع لهم عندالامام وهل يعاملون؟ ودلالة أخرجوهم من جزيرة العرب و أجيزوالوفد لذلك ظاهرة. والله اعلم.

[2] عمدة القارى:١٤/٤١٢ قال رحمه الله ولقدتكلف بعضهم فى توجيه المطابقة فقال.....الخ.

[3] تحفة البارى:بشرح صحيح البخارى للامام زكرياالانصارى:٣/٥١٢.

[4] تحفة البارى:بشرح صحيح البخارى للامام زكرياالانصارى:٣/٥١٢.

[5] تحفة البارى:٣/٥١٢.

[6] تحفة البارى:٣/٥١٢قال: وإلى بمعنى اللام أى هل يشفع لهم عندالامام. وجواب هل محذوف أى لايشفع لهم ولايعاملون إذا انقضوا العهد.

[حديث ۲۸۸۸] حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ الأَحْوَلِ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهما - أَنَّهُ قَالَ يَوْمُ الْخَمِيسِ، وَمَا يَوْمُ الْخَمِيسِ ثُمَّ بَكَى حَتَّى خَضَبَ دَمْعُهُ الْحَصْبَاءَ فَقَالَ اشْتَدَّ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَجَعُهُ يَوْمَ الْخَمِيسِ فَقَالَ «ائْتُونِي بِكِتَابٍ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ أَبَدًا». فَتَنَازَعُوا وَلاَ يَنْبَغِي عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوا هَجَرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. قَالَ «دَعُونِي فَالَّذِي أَنَا فِيهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُونِي إِلَيْهِ». وَأَوْصَى عِنْدَ مَوْتِهِ بِثَلاَثٍ «أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ، وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ أُجِيزُهُمْ». وَنَسِيتُ الثَّالِثَةَ.

وَقَالَ يَعْقُوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ سَأَلْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ. فَقَالَ مَكَّةُ وَالْمَدِينَةُ وَالْيَمَامَةُ وَالْيَمَنُ. وَقَالَ يَعْقُوبُ وَالْعَرْجُ أَوَّلُ تِهَامَةَ. [ر ۱۱۴]

د علامه نسفي رحمه الله اوفربري رحمه الله تقريبًا په ټولو نسخوکښې د حديث باب سند د قبيصه په طريق سره نقل کړې شوې دې البته د فربري رحمه الله چه کومه نسخه ابن السکن رحمه الله روايت کړې ده په هغې کښې د سند شروع په ځائې د قبيصه د قتيبه نه کيږي په پوره صحيح بخاري کښې د سفيان بن عيينه رحمه الله نه د قبيصه هم دغه يوروايت نقل دې دهغه اکثر روايات د سفيان ثوري رحمه الله نه مروي دي (۱) بل هم دغه روايت په مغازي کښې د قتيبه په طريق سره نقل دې علامه عيني رحمه الله هم د يو روايت په مذکوره دوو طرق کښې تطبيق کولو سره فرمائي چه ممکن ده امام بخاري رحمه الله دا روايت د قبيصه او قتيبه دواړو نه اوريدلې وي (۲)

## رجال الحديث

① **قبيصه**:- دا ابوعامر قبيصه بن عقبه محمدبن سفيان السوائي الکوفي رحمه الله دې د دوې تذکره کتاب الايمان لاندې تيره شوې ده. (۳)

② **ابن عيينه**:- دا مشهور امام حديث سفيان بن عيينه بن ميمون ابومحمد الکوفي رحمه الله دې د دوي حالات وړاندې تيرشوي دي (۴)

③ **سليمان الاحول**:- دا سليمان بن ابي مسلم الاحول رحمه الله دې د دوي حالات کتاب التهجد ذباب التهجدبالليل لاندې تيرشوي دي. (۵)

④ **سعيدبن جبير**:- دامشهورتابعي سعيدبن جبيربن هشام اسدي رحمه الله دې د دوي حالات کتاب العلم باب السمرفي العلم لاندې په تفصيل سره تيرشوي دي (۶)

---

(۱) فتح الباري: ۶/۲۰۹.
(۲) عمدة القاري: ۱۴/۴۳.
(۳) کشف الباري: ۲/۲۷۵ — ۲۷۶.
(۴) کشف الباري: ۱/۲۳۸.
(۵) کتاب التهجد ذ باب التهجد بالليل.
(۶) کشف الباري: ۴/۴۱۸.

⑤ **ابن عباس** رضی الله عنهما دا مشهور صحابی عبدالله بن عباس بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدالمناف دی د رسول الله ﷺ د تره خوئی دی د دوی حالات بدء الوحی څلورم حدیث لاندې په تفصیل سره تیرشوی دی (۱)

**تنبیه** ـ ترجمة الباب سره مذکوره روایت متعلق بحثونه کتاب العلم لاندې په تفصیل سره تیرشوی دی امام بخاری رحمه الله دا حدیث وړاندې کتاب المغازی کښې هم روایت کړې دې هلته به هم دد ې متعلقه مباحث په تفصیل سره بیانیږی. دلته مونږ د حدیث باب د بعض جملو تشریح او ترجمة الباب مناسبت زیربحث موضوع سره متعلق تفصیلی بیان کوو

**قوله** فتنازعوا ولا ینبغی عندنبی تنازع :- صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف او نزاع یعنی جګړه کوله حالانکه د یونبی په وړاندې اختلاف او جګړه کول مناسب نه دی

**د دې جملې قائل څوک دې؟** ـ علامه کرمانی رحمه الله فرمائی کیدې شی چه د دې جملې قائل پخپله رسول الله ﷺ یا بیا حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې (۲)

**په کرمانی رحمه الله باندې د علامه عینی رحمه الله رد:-** علامه عینی رحمه الله ته د علامه کرمانی رحمه الله په رائې باندې حیرانتیاده هغه وائی چه کرمانی خپله رائې د سیاق کلام نه ثابتولوسره وائی چه د دې قائل یا خو رسول الله ﷺ دې اویا حضرت ابن عباس رضی الله عنهما دې حالانکه د دې تردد هیڅ ضرورت نشته ځکه چه کتاب العلم والا روایت کښې پخپله رسول الله ﷺ تصریح فرمائیلې ده: ولا ینبغي عندي التنازع. د کرمانی دا وینا د دې نه هم زیاته حیرانونکې ده ومر شرح الحدیث في باب کتابة العلم یعنی د دې حدیث تشریح باب کتاب العلم لاندې تیره شوې ده. مطلب دا دې چه د کتاب العلم والا روایت پخپله د علامه کرمانی د قول نه ثابتیږی چه د هغوی مخې ته وو. په کوم کښې چه ولاینبغي عندي التنازع واضح الفاظ موجود دی خو د دې باوجود دا وینا کول ډیره حیرانونکې ده چه کیدې شی دا جمله رسول الله ﷺ یا بیا د ابن عباس رضی الله عنهما وی چنانچه علامه عینی لیکی: قال الکرماني: لفظ: ولاینبغي....، إما قول رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وإما قول ابن عباس، والسیاق یحتملها، والموافق لسائر الروایات الاولى. قلت: لاحاجة هذا الترديد، لانه ـ عليه الصلوة والسلام ـ صرح في الحديث الذي سبق في كتاب العلم بقوله: ولاينبغي عندي التنازع، والعجب منه ذلك مع أنه قال: ومر شرح الحديث في باب كتابة العلم. (۳)

**قوله** أخرجوا المشرکین من جزیرة العرب - په روایت کښې د رسول الله ﷺ وصیت دې چه مشرکان د جزیره العرب نه اوباسئی په مرقاة کښې د ابن ملک په حواله سره ملاعلی قاری رحمه الله نقل کړی دی چه د مشرکین نه یهود اونصاری مراددی (۴) د حضرت عمر رضی الله عنه په

---

۱) کشف الباری:۱/۴۳۵ ـ ۴۳۶.

۲) شرح الکرمانی:۱۳/۵۰.

۳) عمدة القاری: ۱۴/۴۱۴.

۴) مرقاة اللمفاتیح للملاعلی قاری رحمه الله ۷/۶۵۰ رقم:۴۰۵۲.

روايت كښې هم د يهود اونصارى لفظ راغلې دې د صحيح مسلم په روايت كښې د حضرت عمر رضي الله عنه قول دې لاخرجن اليهود والنصارى من جزيرة العرب حتى لا أدع إلا مسلما [1] يعنى زه به په هرحال كښې يهود اونصارى د جزيرة العرب نه اوباسم بغيرد مسلمانانو نه به هيڅ څوك اوسيدو ته نه پريږدم.

**د جزيرة العرب نه د يهودواونصارى د وطن نه د ويستلو مسئله.** رسول الله صلى الله عليه وسلم يهود اونصارى د جزيرة العرب نه د ويستلو وصيت ځكه فرمائيلې وو دې دپاره چه د دين اسلام مركز د هميشه دپاره د غيرود اثرنه محفوظ پاتې شى د حضرت عائشه رضي الله عنها په روايت كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم پخپله د دې وجه بيان كړې ده د مسنداحمد په روايت كښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى آخر ما عاهد رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم أن قال: لايترك بجزيرة العرب دينان [2] يعنى د حضورپاك آخرى وصيت داوو چه په جزيرة العرب كښې به هيڅ كله دوه دينونه جمع نه شى حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه په خپل دور حكومت كښې د دې وصيت د پوره كولو موقع ملاؤنه شوه د هغوى په دور خلافت كښې هنګامى مسائلواو فتنو سر اوچت كړو اود هغې د سربنكته كولو اومقابله كولو كښې دومره مشغول شو چه يهود اونصارى د جزيرة العرب نه د ويستلو هغوى ته موقع ملاؤنه شوه. [3]

البته حضرت عمر رضي الله عنه په خپل دورخلافت كښې د دې وصيت پوره والى كړې په روايت كښې دى چه هغه څلويښت زره كسان د وطن نه ويستې وو. [4] د يمن ملك هم په جزيرة العرب كښې داخل دې ليكن خلفاء اسلام كښې چاهم د دې ځائى نه يهوداونصارى د دغه ځائى نه د ويستلو حكم نه دې وركړې هم د دې وجوهاتو په وجه جمهور فقهاء محدثين مسلك دې چه يهود اونصارى د جزيرة العرب نهه ويستل د عربو په حكمرانانو باندې واجب دى. البته په جزيرة العرب كښې واقع كيدو نه باوجود د جمهورو په نيزبه د يمن نه يهود اونصارى نه شى ويستلې. ځكه چه د خلفاء راشدين وغيرهم د اثرنه داثابت نه دى. علامه عينى رحمه الله فرمائى كه د څه مصلحت لاندې د وخت خليفه يوه ډله ته په عارضى توګه جزيرة العرب ته د راتلواجازت وركړى نود احنافو اومالكيه په نيز په دې كښې هيڅ بديت نشته. [5]

---

[1] رواه مسلم فى صحيحه: ۹۴/۲ فى كتاب الجهاد باب إجلاء اليهود من الحجاز رقم:۱۷۶۷وعند أبى داؤد فى سننه:۷۳/۲ فى كتاب الخراج والا مارة. باب فى إخراج اليهود من جزيرة اللعرب رقم: ۳۰۳۰ وعند الترمذى فى جامعه :۲۸۸/۱ فى كتاب السير باب ماجاء فى إخراج اليهود من جزيرة العرب رقم: ۳۰۲۹.

[2] رواه أحمدفى مسنده:۲۷۵/۶.

[3] عمدة القارى: ۴۱۴/۱۴.

[4] عمدة القارى: ۴۱۴/۱۴.

[5] فتح البارى:۲۰۰/۶ قال الحافظ ابن حجر رحمه الله لكن الذى يمنع المشركون من سكناهم منها الحجاز خاصة. وهو مكة. والمدينة واليمامة. وما والاها. لافيما سوى ذلك مما يطلق عليه اسم جزيرة العرب. لاتفاق الجميع على أن اليمن لايمنعون منها مع أنها من جملة جزيرة العرب.

**مسجدحرام او عام مساجدوكې د مشركانو يهوديانو اونصارى د داخليدو مسئله** - دلته دويمه مسئله دادد چه مشركان يهودونصارى يا اهل ذمه ته په مسجدحرام يا عام جماتونوكښې د داخليدو اجازت شته كه نه؟ په دې مسئله كښې د انمه اختلاف دې د كوم اصل منشاء چه د سورت توبه دا آيت دې ﴿ إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ﴾
يعنى مشركان نجس دى نودې كال نه پس هغوى دې مسجدحرام ته نيزدې هم رانه شي په كال نهم د هجرى چه كله حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه حج اداكولو د مشركانونه د براءت داحكم هم په دغه كال موسم حج كښې نازل شو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت على رضي الله عنه ته حكم وركړو چه هغه دې آيت په اوريدوسره دې حكم اعلان اوكړى چه دې كال نه پس هيڅ يومشرك ته د خپل مشركانه رسوماتو سره او په بربنډه د حج كولواجازت نشته [1] د دې روايت الفاظ وړاندې د مذاهب په تفصيل كښې راځى د جمهورمفسرينو په نيز د سورت توبه آيت په ۹ هجرى كښې نازل شوې [2] په دې وجه ﴿ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ﴾ كښې د هذا مشاراليه ۹ هجرى دې اومطلب دادې چه د ۹ هجرى نه پس د لسم هجرى نه به د دې حكم د نفاذ اطلاق كيږى چه هيڅ يومشرك ته دحج په اراده په مسجدحرام كښې د راتلونكى وخت نه به اجازت نه وى

**د امام مالك رحمه الله مذهب اود هغه استدلال** - امام مالك رحمه الله فرمائى چه شرعًا سره د مسجدحرام په عام مساجدو كښې هم د ناپاك او نجس سړى د داخليدلواجازت نشته د سورت توبه د مذكوره آيت نه كله چه د كافرانو او مشركانو نجس كيدل ثابت شو نوهغوى سره د مسجدحرام په عام جماتونوكښې هم د داخليدو اجازت نه وى [3]

① هغوى ړومبې استدلال د امراء او حكام په نوم د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله نه كړې دې په كوم كښې چه هم دا آيت ذكركولوسره هغوى كافرانو ته د مسلمانانو په عام مساجدوكښې د نه داخليدو هدايت كړې وو. [4]

② د هغوى دويم استدلال د سورت نور د دې آيت نه دې ﴿ فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَنْ تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ ﴾ يعنى هغوى داسې كورونو ته (خى عبادت كوى) د كوم د نسبت چه الله تعالى حكم كړې دې چه د هغې ادب اوكړې شى اوپه هغې كښې د الله تعالى نوم واخستې شى جماتونوته د كافرانو او مشركانو داخليدل د ادب احترام او رفع ذكر منافى دى په دې وجه د دې آيت د مقتضى په موجب هغوى ته په يوجمات كښې هم د داخليدو اجازت نشته. [5]

③ د هغوى دريم استدلال هغه حديث نه دې په كوم كښې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارك ارشاد

---

[1]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۱۰۶/۸ وأحكام القرآن للجصاص:۳۷/۳ وروح المعانى للعلامه الالوسى:۷۷/۶.

[2]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۱۰۶/۸ وأحكام القرآن للجصاص:۳۲/۳.

[3]) تفسير قرطبى:۱۰۴/۸ وهداية: ۲۳۲/۴ كتابالكراهية فصل فى مسائل متفرقة. وأحكام القرآن للجصاص:۱۳۱/۳.

[4]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۱۰۴/۸.

[5]) الجامع لاحكام القرآن للقرطبى:۱۰۴/۸.

فرمائیلي لا احل المسجد لحائض ولا جنب یعنی زه په جمات کښې یوحائضه ښځې او جنبي سړي ته د دننه راتلو اجازت جائزنه گنړم. ځکه چه مشرك اوکافر هم د جنابت د غسل او طهارت اهتمام نه کوی په عام توګه په نجاست کښې وی. په دې وجه داحکم د هرمشرك اوکافر د پاره سره د مسجدحرام د ټولو جماتونوسره متعلق دې چه یومشرك اوکافرته سره د مسجدحرام په یو جمات کښې د داخلیدو اجازت نشته (۱)

**د امام شافعي رحمه الله مسلک اود هغه دلیل** امام شافعي رحمه الله هم دغه فرمائي چه د سورت توبه په آیت کښې مشرکانو ته نجس ونیلې شوی دی لهذا دآیت په رڼا کښې ټول مشرکان نجس دی خود امام شافعي رحمه الله په نیزد ممانعت حکم صرف مسجد حرام سره متعلق دې په دې وجه د مسجدحرام نه علاوه په عامو جماتونوکښې د مشرکانو داخلیدل ناجائزنه دی تفسیرقرطبي کښې دی وقال الشافعی: الایة عامة فی سائر المشرکین، خاصة فی المسجد الحرام، ولایمنعون من دخول غیره، فاباح دخول الیهودی والنصرانی فی سائر المساجد (۲)

مطلب دادې چه په آیت کښې مشرك ته نجس ونیلې شوی دی ددې اطلاق په ټولو مشرکانو باندې دې ولې په دې کښې د دخول ممانعت صرف مسجدحرام سره خاص دې عام مساجدددې نه مستثنی دی. په دې وجه د مسجدحرام نه علاوه په نورو مساجدوکښې د داخلیدونه هغوی نه شی منع کولې. دامام شافعي رحمه الله په نیزددې تفصیل په رڼا کښې د یهود اونصاری د مسلمانانو په عام مساجدکښې داخلیدل مباح او جائزدی

**د امام شافعي رحمه الله په استدلال باندې رد** - خوحقیقت دا دې چه د امام شافعي رحمه الله استدلال تام نه دې ځکه چه د هغوی په نیزکله چه په مسجدحرام کښې د ممانعت دخول علت نجاست ګرځولې شوې دې نوبیا دا حکم مسجدحرام سره خاص کول صحیح نه دی ځکه چه د نجس سړی دپاره په عام مساجدکښې هم داخلیدل جائزنه دی. د امام شافعي رحمه الله د استدلال طریق مخې ته ساتلوسره د مشرکانو او یهود اونصاری دپاره په عام مساجدوکښې داخلیدل هم ناجائزکیدل پکاروو. لهذا دا استدلال صرف دامام مالك رحمه الله د مذهب مطابق تام دې چنانچه علامه ابن همام رحمه الله فرمائي : أقول: لایذهب علیك أن هذا الدلیل لوتم لدل علی أن لایدخل شیئا من المساجد، ومذهب الشافعی أنه لایجوز دخول الکافر المسجد الحرام دون سائر المساجد، فلم یکن هذا الدلیل ملائما لمذهبه، وانما کان مناسبا لمذهب مالك رحمه الله (۳)

**دامام ابوحنیفه رحمه الله مسلک اود هغه دلائل** - د امام اعظم رحمه الله په نیز﴿ إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ ﴾ کښې نجاست نه نجاست اعتقادی مراد دې (۴) او ﴿ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَٰذَا ﴾ مطلب

---

۱) الجامع لاحکام القرآن للقرطبی:۱۰۵/۸ والهدایة للمرغینانی:۲۳۲/۴ وردالمختار لابن عابدین الشامی:۲۷۴/۵ کتاب الحظر والاباحة. فصل فی البیع. رشیدیه.

۲) ایضا.

۳) فتح القدیر:۶۳/۱۰ کتاب الکراهیة.وردالمختار علی الدرالمختار:۲۷۴/۵ کتاب الحظر والاباحة. فصل فی البیع

۴) أحکام القرآن للجصاص: ۱۳۲۰۲۱/۳ وقال:قوله تعالی ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ﴾ ... [بقیه برصفحه آئنده

دادې چه ۹هجرى نه پس مشركانوته د مشركانه رسم سره د حج داداكولو په اراده سره مسجد حرام كښې د داخليدو اجازت نشته د احنافو په نيز په دې كښې د مشركانودپاره مسجد حرام او عامو مساجدو كښې د داخليدوممانعت نه دې كړې شوې بلكه دممانعت حكم په هغه صورت باندې محمول دې كله چه اهل شرك يا يهود اونصارى په مشركانه طرز باندې په بربنډه د حج وغيره كولو يا استيطان او تسلط او استيلاء په مقصد سره په حرم كښې داخليږى كنى په مسافرانه حيثيت سره په عام حالاتو كښې مصلحتا د حاكم وخت په اجازت سره په حدود حرم كښې اوعام مساجدو كښې دهغوى په داخليدو كښې هيڅ بديت نشته لهذا د سورت توبه مذكوره آيت مطلب به دا شى چه مشركان دې په راتلونكى كال كښې د حج په اراده مسجدحرام ته نه راځى. (١)

په حقيقت كښې مسجدحرام كښې د داخليدو ممانعت صرف د حج په غرض سره راتلونكي مشركانودپاره دې په دې باندې پخپله د قرآن مجيد د آياتونو سياق اوسباق هم دلالت كوى اود صحيح احاديثونه هم ددې تائيد كيږى.

① د احنافوږومبې استدلال د ثقيف د وفدواقعه ده په روايت كښې دى عن حماد بن سلمة عن سلمة عن الحسن عثمان بن أبي العاص رضى الله عنهم: أن وفد ثقيف لما قدموا على رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم ضرب لهم قبة فى المسجد فقالوا قوم أنجاس فقال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: إنه ليس على الارض من أنجاس الناس شئ إنما أنجاس الناس على أنفسهم. (٢)

عثمان بن ابى العاص رضي الله عنه نه روايت دې چه كله د ثقيف وفد د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضرشو نوحضورپاك په جمات كښې خيمه اولګوله اوهغوى ئى كينول صحابه كرام په دې موقع باندې موجودوو ونى وئيل داخو نجس خلق دى دهغوى مقصدوو چه دا خو نجس او كافردى په دې وجه دوى په مسجد كښې كينولوسره د مسجد بې حرمتى كيږى. په دې باندې حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه د مسجد په زمكه باندې د دوى د نجاست هيڅ اثر نه پريوځى

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] إطلاق اسم النجس على المشرك من جهة أن الشرك الذى يعتقده يجب اجتنابه كما يجب اجتناب النجاسات والاقذار.

(١) الهداية: ٢٣٢/٤ قال العلامة المرغيناني: ولاباس بان يدخل أهل الذمة المسجد الحرام. وقال: الشافعي: يكره ذلك. وقال مالك: يكره فى كل مسجد. للشافعي رحمه الله قوله تعالى: ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ﴾ ولان الكافر لايدخلو عن جنابة. لانه لا يغتسل اغتسالا لايخرجه عنها. والجنب يجنب المسجد وبهذا يحتج مالك. والتعليل بالنجاسة عام. فينتظم المساجد كلها. ولان ماروى: أن النبى صلى الله تعالى عليه أنزل وفد الثقيف فى المسجد. وهم كفار. ولان الخبث فى اعتقادهم. فلايؤدى إلى طويث السجد. والاية محمولة على الحضور استيلاء واستعلاءً. أو طائفين عرة. كما كانت عادتهم فى الجاهلية. (كتاب الكراهية فصل فى مسائل متفرقة) وردالمحتار لابن عابدين الشامي: ٢٧٤/٤ واحكام القرآن للجصاص: ١٣١/٣. ١٣٢ وعمدة القارى: ٤١٥/١٤. ٤١٦.

(٢) أحكام القرآن للجصاص: ١٣١/٣و الهداية للعلامة المرغيناني: ٢٢٣/٤ كتاب الكراهية وردالمحتار لابن عابدين الشامي: ٢٧٤/٤.

خکه چه نجاست د دوی په ظاهری بدن باندې نه بلکه، د دوی په زړونو کښې دې
دا روایت امام احمد رحمه الله په مسند (۱) او امام طبرانی رحمه الله په معجم (۲) کښې روایت کړې دې
په مراسیل ابی داؤد کښې هم دا روایت نقل دې (۳)، البته د سنن ابوداؤد د روایت الفاظ
مختلف دی په هغې کښې دی: عن عثمان بن أبي العاص: أن وفد ثقيف لما قدموا على رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم أنزلهم المسجد ليكون أرق لقلوبهم فاشترطوا عليه أن لايحشروا أولا يعشروا ولا يجبوا: فقال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: ولكم أن لاتحشروا أولا تعشروا ولا خير في دين ليس فيه ركوع. (۴)
په روایت کښې دی چه کله د بنوثقیف وفد د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضرشو نوحضورپاك هغوی په جمات کښې کینول دې د پاره چه د هغوی زړونه نرم شی هغوی د خپل اسلام راوړلو شرط داکیخودو چه د زکوة جهاد او مانځه نه مونږ مستثنی کړې شو رسول الله ﷺ اوفرمائیل د زکوة او جهاد باره کښې خو پریخودې شی مګر د مانځه باره کښې نه، خکه چه په کوم دین کښې رکوع (مونځ) نه وی په هغه دین کښې خیر نشته
امام اعظم رحمه الله د سورت توبه آیت کښې د نجس کومه معنې مراد اخستې ده دې روایت سره د هغې تائید کیږی چه اهل شرك ته نجس وئیلو سره د هغوی د عقیدې (کفر او شرك) نجاست مراد دې (۵)

② د احنافودویم استدلال صحیحین او سنن نسائی او جامع ترمذی (۶) وغیره دا روایت دې په کوم کښې چه د سورت توبه د آیاتونو د نزول نه پس د حضرت علی رضی الله عنه د اعلان براءت صریح الفاظ دا وو لایحج بعد العام مشرك، ولا يطوف بالبيت عريان یعنی د دې کال نه پس یو مشرك ته د حج کولو او په بربنډه د طواف کولو اجازت به نه وی په آیت کښې ﴿ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا ﴾ معنی د دې اعلان په وړاندې هم دغه ده چه مشرکان په حقیقت کښې صرف د حج وغیره د اداکولو نه منع کړې شوی دی. ګنی د حاکم وخت یا امیرالمؤمنین په اجازت سره

---

(۱) مسنداحمدبن حنبل رحمه الله: ۲۱۸/٤ وفی مسندالشاميين رقم: ١٨٠٨٤.
(۲) المعجم الكبير للطبراني: ٥٤/٩ رقم: ٨٣٧٢
(۳) نصب الراية لاحاديث الهداية للعلامة الزيلعي: ٢٧٠/٤ كتاب الكراهية فصل في مسائل متفرقة.
(۴) سنن أبي داود: ٧٢/٢ كتاب الخراج باب خبر الطائف رقم: ٣٠٢٤.
(۵) أحكام القرآن للجصاص: ١٣٠/٤ و الهداية للعلامة المرغيناني: ٢٢٣/٤ كتاب الكراهية وردالمحتار لابن عابدين الشامي: ٢٧٤/٤.
(۶) أخرجه البخاري: ٥٣/١ في الصلوة باب مايستر من العورة. وفي الحج: ٢٢٠/١ باب لايطوف بالبيت عريان: ٤٥١/١ وفي الجهاد باب كيف ينبذ إلى أهل العهد. و: ٦٢٦/٢ في المغازي. باب حج أبي بكر رضي الله عنه بالناس. و ك ٦٧١/٢ في سورة البراءة. باب قولة: فسيحوا في الارض أربعة أشهر. وأخرجه مسلم في صحيحه: ٤٢٥/١ في كتاب الحج. باب لايحج البيت مشرك. وأبوداؤد: ٢٦٨/١ في الحج باب يوم الحج الاكبر. والنسائي: ٣١/٢ في الحج باب قوله: ﴿ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ ﴾ والترمذي: ١٣٩/٢ في كتاب التفسير باب ومن سورة البراءة.

حدودحرم كښې دهغوى په داخله باندې شرعا څه قدغن نشته

③ علامه ابوبكرجصاص رحمه الله په احكام القرآن كښې شريك عن اشعث عن الحسن په طريق سره دحضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه روايت نقل كړې دې په كوم كښې چه د حضورپاك ارشاد مبارك دې لايقرب المشركون المسجد الحرام بعد عامهم هذا إلا أن يكون عبدًا أو أمة يدخله لحاجة [۱]

يعنى مشرك ته په مسجدحرام كښې د داخليدو اجازت نشته البته غلام او وينځه ددې حكم نه خلاص دى هغوى ته د ضرورت په وخت د داخليدو اجازت دې

دا روايت هم د احنافو تائيدكوى په كوم كښې چه د ممانعت علت واضح كړې شوې دې څكه چه غلام او وينځه د يومشرك په شان په اعتقادى نجاست كښې ككړنه وى كه چرې حدودحرم كښې د داخلې ممانعت مشرك سره تړلې وې نو ددې ممانعت لاندې به قياسا غلام او وينځه هم شامل وو د احنافودې رائې تائيد مشرك او ذمى وغيره حدود حرم كښې داخليدې شى ددې تائيد دحضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه دبل روايت نه هم كيږى

④ مصنف عبد الرزاق كښې دى: أخبرنا عبد الرزاق قال: أخبرنا ابن لجريج قال: أخبرنا أبو الزبير أنه سمع بن عبدالله يقول فى هذه الاية: ﴿ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا ﴾ قال: لا، إلا أن يكون عبدًا أو أحدًا من أهل الجزية. [۲]

په روايت كښې دى چه حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنه د سورت توبه مذكوره آيت لوستلوسره اوفرمائيل چه غلام يا ذمى ددې ممانعت نه خلاص دې هغوى په حدود حرم كښې داخليدې شى بهرحال فقهاء احناف د امام اعظم رحمه الله محقق رائې هم دغه تحرير كړې ده چه مشرك يهود نصارىٰ او ذمى [۳]، دامير المؤمنين په اجازت سره مصلحتًا حدود حرم كښې داخليدې شى سره ددې چه د كفريه نجاست كښې ملوث وى. اود سورت نور په آيت كښې ددوى په مطلق داخليدو باندې پابندى نه ده لګولې شوې بلكه ددې مطلب د احاديث اوآثار نه پخپله متعين شو چه كافران اومشركان وغيره د تسلط غلبه او استيلاء او استيطان ناپاك ارادې لرى نو بيا دهغوى دپاره په حدودحرم كښې د داخليدو هيڅ ګنجائش نشته

**قوله:** وقال يعقوب بن محمد

## رجال الحديث

① **يعقوب بن محمد:** - دا يعقوب بن محمد بن عيسىٰ بن عبدالمالك بن حميد بن عبد الرحمن

---

[۱] ) أحكام القرآن للجصاص:۳۲/۳.

[۲] ) المصنف للحافظ أبي بكرعبدالرزاق بن همام: ۵۳/۶ كتاب أهل الكتاب باب لايدخل الحرم مشرك وأخرجه أيضًا فى كتاب أهل الكتابين باب هل يدخل المشرك الحرم:۳۵۶/۱ رقم:۱۹۳۵۷ وأحكام القرآن للجصاص: ۳۲/۳.

[۳] ) الارشاد والنظائر للعلامة ابن نجيم ص:۳۸۶ فى أحكام الذمى. قال: ولايمنع – الذمى – من دخول المسجد جنبا بخلاف المسلم ولايتوقف جواز دخوله على إذن مسلم عندنا ولوكان المسجد الحرام دمشق

بن عوف الزهری المدنی دی (۱) ابویوسف د دوی کنیت دی (۲)
هغوی د ابراهیم بن جعفر بن مسلمه الانصاری، رفاعه بن هریر بن عبدالرحمن بن رافع بن خدیج سفیان بن حمزه الاسلمی، صالح بن قدامه، عبدالله بن محمدبن یحیی بن عروه بن زبیر، عبدالله بن وهب المصری، محمد بن طلحه التیمی او یعقوب بن اسحاق الانصاری نه روایت حدیث کړې دې (۳) د هغوی نه روایت کونکی احمدبن سنان القطان، احمدبن یوسف السلمی، حجاج بن الشاعر، حسین بن منصور النیشاپوری، محمد بن سنان البصری، محمد بن عبدالله المخرمی، ابویوسف یعقوب بن اسحاق القلوسی او یوسف بن موسیٰ القطان وغیره دی (۴) د هغه باره کښې یحییٰ بن معین رحمه الله فرمائی **ماحدثكم عن الثقات فاكتبوه ومالا يعرف من الشيوخ فدعوه** (۵) یعنی یعقوب بن محمد نه روایات اخستلو کښې څه حرج نشته چه هغوی د ثقات نه روایت کړې دې البته د هغه مجهول او مستور شیوخ حدیث روایتونه پریخودل پکاردی

ابوحاتم محمد بن ادریس رحمه الله فرمائی **هوعلى يَدَىْ عدل، أدركته فلم أكتب عنه** (۶) هغه د عدل د لاسه هلاك شو څکه چه ما هغه اولیدلو خو د هغه نه مې څه حدیث اونه لیکلو دا عربی متل دې او د تضعیف سخت الفاظ دی. د دې پس منظر دا دې چه عدل په ملك یمن کښې د قبیله حمیر بادشاه تبع پولیس وو (۷) چه تبع به د چا په قتل پسې اولګیدو نو د هغه سړی کولو باره به ئې عدل ته حواله کول د دې کردار سره د عدل نه مشهور شو کله چه به یو سړې د کار قابل پاتې نه شو او د هغه نه به د کامیابئ څه امید باقی پاتې نه شو نو وئیلې به شو **هوعلى يدى عدل** یعنی هغه د عدل د لاسه هلاك شو (۸)
چه پس منظر په ذهن کښې نه وی نو دا په ظاهره د توثیق الفاظ معلومیږی. علامه ذهبی رحمه الله ته هم د دغه مغالطه شوې ده. هغه یدی د دال په کسره او عدل د لام دوو پیښونو سره: **على يَدِى عدلٌ** لوستلې دې په دې وجه الكاشف کښې هغوی فرمائی **وقواه أبوحاتم** (۹)

---

(۱) تهذيب الكمال للحافظ يوسف المزى: ٣٦٧/٣٢ تقريب التهذيب ص: ٢٠٨ رقم الترجمة: ٧٨٣٤.
(۲) تهذيب الكمال: ٣٦٧/٣٢ وتهذيب التهذيب للحافظ ابن حجر: ٣٩٦/١١ رقم الترجمة: ٧٦٤.
(۳) تهذيب الكمال للحافظ يوسف المزى: ٣٦٧/٣٢.
(۴) تهذيب الكمال للحافظ يوسف المزى: ٣٦٧/٣٢.
(۵) الجرح والتعديل للامام أبى حاتم: ٢٦٤/٩ رقم الترجمة: ١٦٥٥١ وتهذيب الكمال: ٣٧٠/٣٣ وتهذيب التهذيب: ٣٩٦/١١.
(۶) الجرح والتعديل للامام أبى حاتم: ٢٦٤/٩ وتهذيب الكمال: ٣٧٠/٣٢ وتهذيب التهذيب: ٣٩٦/١١.
(۷) الاعلام للزركلى: ٨٣/٢.
(۸) وعدل: كان من رجال الشرط عند تبع. فكان تبع اذا أراد قتل رجل دفعه إلى عدل. فكانوا يقولون لمن يئس منه: هوعلى يدى عدل. انظر تعليقات محمدعواد على هامش الكاشف للذهبى: ٣٩٦/٢ وأيضاً عندالشيخ عبدالفتاح أبى غدة فى تعليقاته على هامش الرفع والتكميل فى الجرح والتعديل للامام للكنوى: ١٧٦، ١٧٧.
(۹) الكاشف الذهبى: ٣٩٦/٢.

ابوحاتم هغه يعقوب بن محمد، ته قوی ونيلې حالانکه ابوحاتم رحمه الله وهوعلی يدّی عدل ونيلو سره هغه تضعيف کړې دې:

حافظ ابوزرعه رحمه الله دهغوی باره کښې وائی واهی الحديث، منکرالحديث. [1] حجاج بن الشاعر دَدوی باره کښې وائی ثقه [2] ابن حبان رحمه الله هغه په ثقات کښې ذکر کړې دې [3]، امام احمدبن حنبل رحمه الله دَ هغه باره کښې وائی يعقوب ليس بشئ ليس يسوی شيئًا [4]

حقيقت دادې چه دَيعقوب بن محمد شمير په ضعيف راويانو کښې کيږی اکثرائمه جرح وتعديل په روايت حديث کښې دَ بې خايه تساهل دَ وجې نه په دَه باندې کلام کړې دې علی بن حسين بن حبان وائی چه يعقوب بن محمد هشام بن عروة عن ابيه عن عائشه رضی الله عنها په طريق يو روايت نقل کړې دې په کوم کښې چه دَ رسول الله ﷺ طرف ته دا الفاظ منسوب کړی دی من لم يکن عنده صدقة فليلعن اليهود. [5] يعنی چه څوك دَ صدقې طاقت نه لری هغه دې په يهود باندې لعنت وائی. حافظ خطيب بغدادی فرمائی چه دا موضوع حديث دې هيڅ يوعقل مندسړې داقطعًا نه شی روايت کولې [6] البته په شواهد اومتابعات کښې دَهغه روايات نقل کولو کښې څه کلام نشته لکه چه دَ ترجمة الباب لاندې پخپله امام بخاری رحمه الله دَ صنيع نه هم دا معلوميږی [7] والله اعلم بالصواب.

② **مغيره بن عبدالرحمن:**- دامغيره بن عبدالرحمن بن عوف بن حبيب الاسدی دې دَ دوی حالات کتاب الاستسقاء باب دعاء النبی صلی الله تعالی عليه وسلم: اجعلنها سنين کسنی يوسف لاندې تيرشوی دی.

**قوله: والعرج أول تهامة:**- عرج په عين باندې فتحه او راء سکون سره مکې سره نيزدې دَ يومقام نوم دې تهامه دَ تاء زير سره دَدې اطلاق نجد او بلاد حجاز باندې کيږی. [8]

**دَ مذکوره تعليق تخريج:**- دَ يعقوب بن محمد مذکوره تعليق قاضی اسماعيل عن أحمد بن المعدل عن يعقوب بن محمد بن عيسیٰ الزهری عن المغيرة بن عبدالرحمن په طريق سره احکام القرآن کښې

---

[1] ) تهذيب الكمال:۳۲/۳۷۰ وتعليق الدكتور بشار عواد معروف على هامش تهذيب اكمال:۳۲/۳۷۰ والجرح والتعديل لابی حاتم: ۹/۲٦٤ وتهذيب التهذيب لابن حجر: ۱۱/۳۹۷.

[2] ) نفس المصادر السابقة.

[3] ) الثقات لابن حبان: ۹/۲۸٤.

[4] ) الضعفاء للعقيلی ٤/٤٤٥ رقم الترجمة:۲۰۷۲.

[5] ) تاريخ بغداد للخطيب: ۱٤/۲۷۰ رقم: الترجمة: ۷۵٦۳.

[6] ) تاريخ بغداد للخطيب: ۱٤/۲۷۰ رقم: الترجمة: ۷۵٦۳ قال هذا كذب باطل لا يحدث بهذا أحد يعقل.

[7] ) تحرير تقريب التهذيب: ٤/۱۲۸.

[8] ) شرح الكرمانی:۱۳/۵۱.

موصولاً نقل كړې دې (۱) يعقوب بن ابى شيبه هم په خپل مسند كښې عن أحمد بن المعدل عن يعقوب بن محمد عن مالك بن انس په طريق سره دا تعليق موصولاً روايت كړې دې (۲).

**ددې تعليق مقصد** په حديث باب كښې د رسول الله ﷺ ددې وصيت ذكروو چه د جزيرة العرب نه مشركان اوباسئى خو په دې كښې د جزيرة العرب د جغرافيائي حدودو وضاحت نه وو امام بخارى رحمه الله د دغه ابهام لرې كولو د پاره داتعليق نقل كړو چه د جزيرة العرب حدود كوم دى اود دې اطلاق د كوم خائى نه كوم خائى پورې كيږى؟ والله اعلم

**د جزيرة العرب محل وقوع** - د يعقوب بن محمد په مذكوره تعليق كښې دى چه جزيرة العرب نه مكه مدينه يمامه او يمن مراد دې هم دغه قول د امام مالك رحمه الله هم دې (۳) امام اصمعى رحمه الله وائى چه جزيرة العرب په اوږدوالى كښې د عدن نه عراق پورې او پلنوالى كښې جده نه ترشام پورې خور دې (۴)

**د جزيرة العرب وجه تسميه** - عربو ته جزيره خكه وائى چه ددې دريوطرفو ته سمندر او يوطرف ته د درياب د اوبو حصار قايم دې. دريوطرفو ته بحرهند بحرقلزم بحرفارس او بحرحبشه دى يوطرف ته دجله او فرات درياب. فتح البارى كښې دى:

قال الخليل سميت جزيرة العرب، لان بحر فارس وبحر حبشة والفرات والدجلة أحاطت بها او امام اصمعى رحمه الله وائى لاحاطة البحار بها، يعنى بحر الهند والقلزم وبحر فارس وبحر الحبشة (۵)

تفصيلى جغرافيه ياقوت حموى په معجم البلدان كښې ذكركړې ده هغوى ليكى وانما سميت بلاد العرب جزيرة لاحاطة البحار والانهار بها من جميع أقطارها وأطرافها فصار وامنها فى مثل الجزيرة من جزائر البحر، وذلك أن الفرات أقبل من بلاد الروم فظهر بناحية قنسرين ثم انحط على أطراف الجزيرة وسواد العراق حتى وقع فى البحر فى ناحية البصرة والابلة وامتد إلى عبادان، وأخذ البحر فى ذلك الموضع مغربا مطيقا ببلاد العرب منعطفا عليها... الخ. (۶)

يعنى بلاد عرب ته جزيرة العرب خكه وئيلې شى چه هغه په سمندرونو اودريابونو كښې راگير دى مثلاً داسې چه د فرات درياب د بلاد روم نه شروع شو اود قنسرين په خواكښې د عربو په پوله باندې ښكاره شو بيا عراق كښې تيريدو سره بصرة سره خواكې سمندرسره ملاؤشو د هغه خائى نه بيا سمند عرب راگيركړل اود قطيف اوهجر غاړې سره عمان او شجرسره تيرشو. بياحضرموت اوعدن سره سره د پچنهم طرف ته د يمن غاړو پولوسره اولگيدو تردې چه جده

---

(۱) عمدة القارى: ۴۱۶/۱۴ وفتح البارى: ۲۱۰/۶ وتعليق التعليق: ۴۵۸/۳.
(۲) تغليق التعليق لابن حجر رحمه الله ۴۵۸/۳.
(۳) فتح البارى:۲۱۰/۶ وعمدة القارى: ۴۱۴/۱۴.
(۴) فتح البارى:۲۱۰/۶ وعمدة القارى: ۴۱۴/۱۴.
(۵) فتح البارى: ۲۱۰/۶.
(۶) معجم البلدان: ۱۳۷/۲.

رابنکاره شوه کوم چه د مکې حجاز ساحل دې بیا ساحل طور او خلیج ایله ته رسیدو سره د سمندر شاخ ختم شو بیا د مصر زمکه شروع شوه قلزم رابنکاره شو اوددې سلسله د فلسطین د بنارونونه د عسقلان د سواحل نه تیره شوه د صورو ساحل زمکه نه اردن او بیرت ته اورسیدو په آخره کښې بیا قنسرین ته په رسیدو باندې هغه ځائې راخې چرته چه د بلاد عرب احاطه شروع کړې ده دغه شان څلور واړه طرف ته د اوبو سلسله قایم ده او هم دغه جزیرة العرب دې

## باب ۱۷۳ : التجمل للوفود

**د ترجمة الباب مقصد** - د دې باب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه د وفود په راتلو باندې حاکم وخت یا نور استقبال کونکوله زیب او زینت اختیارول پکاردی او صفاستره لباس اچول پکاردی د حدیث باب لاندې علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه داسې کول سنت دی او په دې باندې د عمل کولو په نتیجه کښې به دا فائده وی چه د بهرنه راغلی وفد باندې د اسلام او اهل اسلام بنه او بنکلې اثر پریوځی د دښمن په زړه کښې به د مسلمانانو عظمت پیدا کیږی (۱)
علامه قسطلانی رحمه الله فرمائې چه د ترجمة الباب اصل مقصد دادې چه بنائست وغیره اختیارول خو جائزدی ولې د سړو دپاره چه د کوم لباس ممانعت راغلې دې هغه اغوستل حرام دی په حدیث باب کښې رسول الله ﷺ خود زینت اختیارولو اجازت ورکړې دې لیکن منهی عنه لباس ممانعت ئې هم فرمائیلې دې (۲)
دحضرت شیخ الحدیث رحمه الله هم دغه خبره ده (۳)

حدیث نمبر ۲۸۸۹ ] (۴) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ :
وَجَدَ عُمَرُ حُلَّةَ إِسْتَبْرَقٍ تُبَاعُ فِي السُّوقِ فَأَتَى بِهَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، ابْتَعْ هَذِهِ الْحُلَّةَ فَتَجَمَّلْ بِهَا لِلْعِيدِ وَلِلْوُفُودِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّمَا هَذِهِ لِبَاسُ مَنْ لاَ خَلاَقَ لَهُ، أَوْ إِنَّمَا يَلْبَسُ هَذِهِ مَنْ لاَ خَلاَقَ لَهُ». فَلَبِثَ مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِجُبَّةِ دِيبَاجٍ، فَأَقْبَلَ بِهَا عُمَرُ حَتَّى أَتَى بِهَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قُلْتَ «إِنَّمَا هَذِهِ لِبَاسُ مَنْ لاَ خَلاَقَ لَهُ أَوْ إِنَّمَا يَلْبَسُ هَذِهِ مَنْ لاَ خَلاَقَ لَهُ». ثُمَّ أَرْسَلْتَ إِلَيَّ بِهَذِهِ فَقَالَ «تَبِيعُهَا، أَوْ تُصِيبُ بِهَا بَعْضَ حَاجَتِكَ». [ر: ۸۴۶]

(۱) قال ابن بطال رحمه الله فيه من السنة المعروفة التجمل للوفود بحسن الثياب. لان فى ذلک جمالا للاسلام وأهله. وإرهابا على العدو. وعظيما للمسلمين. شرح ابن بطال: ۲۱۶/۵.

(۲) إرشاد الساری: ۱۷/۵ قال القسطلانی رحمه الله ولم ينكر عليه طلبه التجمل وإنما أنكر عليه التجمل بهذا الشئ لمنهى عنه.

(۳) الابواب والتراجم للمحدث الكاندهلوى ص: ۲۰۳.

(۴) مر تخريجه الحديث فى كتاب الجمة. باب سابق يلبس أحسن مايجد رقم: ۸۸۶.

# رجال الحديث

①**يحيى بن بكير** - داابوزكريا يحيى بن عبدالله بن بكير القرشى رحمه الله دي دَ دوى تذكره بدءالوحى كښې دريم حديث لاندې تيره شوې ده (۱)

② **ليث** - داابوالحارث ليث بن سعد بن عبدالرحمن فهمى رحمه الله دي دَدوى حالات بدء الوحى دريم حديث لاندې تيرشوى دى (۲)

③**عقيل** - دا عقيل (بالتصغير) بن خالد بن عقيل (بالتكبير) دي دَدوى حالات هم بدء الوحى دريم حديث لاندې تيرشوى دى. (۳)

④**ابن شهاب** - مشهورمحدث عبدالله بن شهاب زهرى دي دَدوى حالات هم بدء الوحى دريم حديث لاندې تيرشوى دى (۴)

⑤**سالم بن عبدالله** - داابوعمر يا ابوعبدالله بن عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما دي دَدوى تذكره كتاب الايمان باب الحياء من الايمان كښې تيره شوې ده.(۵)

⑥ **ابن عمر** رضي الله عنهما - داصحابى رسول حضرت عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله عنهما دي دَدوى حالات شاته تيرشوى دى (۶)

**قوله** وجد عمر حلة استبرق تباع فى السوق - دې روايت سره متعلق مباحث كتاب الجمعه لاندې تيرشوى دى.(۷) او وړاندې په كتاب اللباس كښې هم راروان دى (۸)

**ترجمة الباب سره دَ حديث باب مطابقت** - په روايت كښې دى حضرت عمر رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته عرض اوكړو ابتع هذه الحلة فتجمل بها للعيد وللوفود داحله تاسو واخلئ په دې كښې دَ اختر او بهرنه راتلونكو وفودو دَ استقبال دپاره زيب اوزينت اختياركړئ ددې جملې دَ ترجمة الباب سره مناسبت دې (۹)

## باب ۱۷۴: كيف يعرض الاسلام على الصبى

**دَ ترجمة الباب مقصد** - كتاب الجنائزكښې امام بخارى رحمه الله باب اهل يعرض الاسلام على الصبي ترجمه منعقد كړې ده هلته استفهام دې چه آيا ماشوم ته به داسلام دعوت وركولې

---

۱) كشف البارى:۱/۳۲۳.

۲) كشف البارى:۱/ ۳۲٤ – ۳۲۵.

۳) كشف البارى:۱/ ۳۲۵.

٤) كشف البارى:۱/۳۲۶.

۵) كشف البارى: ۱۲۸/۲.

۶) كشف البارى: ۶۳۷/۱.

۷) أنظر كتاب الجمعة باب:يلبس أحسن مايجد.

۸) كشف البارى: كتاب اللباس باب لبس الحرير وافتراشه للرجال: ص: ۱۸۹ – ۱۹٤.

۹) عمدة القارى: ٤۱۶/۱٤.

شي؟ خو د كتاب الجهاد په دې ترجمة الباب كښې جزم دې چونكه د كتاب الجنائز لاندې امام بخارى رحمه الله د اسلام صبى په صحت باندې دليل پيش كړې دې په دې وجه هغه دلته د صحت صراحت ضرورى او نه ګڼړلو صرف د كيفيت ذكرني او كړو لكه چه په ترجمه كښې جزء دې چه صبى ته د اسلام دعوت وركول خو ثابت دى ليكن دا دعوت به څنګه وركولې شى د دې كيفيت به څه وى؟ په ترجمه كښې امام بخارى رحمه الله هم د دې په ذكر باندې اكتفاء كړې ده

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى قوله: وهل يعرض الاسلام على الصبى ذكره هنا بلفظ الاستفهام، وترجم فى كتاب الجهاد بصيغة تدل على الجزم بذلك فقال: وكيف يعرض الاسلام على الصبى؟ وكانه أقام الادلة هنا على صحة إسلام استغنى بذلك وأفاد هناك ذكر الكيفة. (١)

امام بخارى رحمه الله دلته بالغ ته د اسلام دعوت وركولو په حواله سره مستقل باب تړلې دې دې سره امام دا يقين وركول غواړى چه خوان او د ډير عمر سړو او ښځوته د اسلام دعوت وركول خو ثابت دى او يو ښكاره خبره ده ليكن د جهاد په دوران هغوى سره كوم نابالغ ماشومان په قيد يا نو كښې شامل كيږى هغوى ته هم د اسلام دعوت وركول ثابت دى

حديث نمبر ٢٨٩١/٢٨٩٠ (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضى الله عنهما - أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ عُمَرَ انْطَلَقَ فِي رَهْطٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتَّى وَجَدُوهُ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ عِنْدَ أُطُمِ بَنِي مَغَالَةَ، وَقَدْ قَارَبَ يَوْمَئِذٍ ابْنُ صَيَّادٍ يَحْتَلِمُ، فَلَمْ يَشْعُرْ حَتَّى ضَرَبَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - ظَهْرَهُ بِيَدِهِ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ». فَنَظَرَ إِلَيْهِ ابْنُ صَيَّادٍ فَقَالَ أَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُولُ الأُمِّيِّينَ. فَقَالَ ابْنُ صَيَّادٍ لِلنَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَتَشْهَدُ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ. قَالَ لَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « آمَنْتُ بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ » قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « مَاذَا تَرَى ». قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ يَأْتِينِي صَادِقٌ وَكَاذِبٌ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « خُلِطَ عَلَيْكَ الأَمْرُ ». قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنِّي قَدْ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيئًا ». قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ هُوَ الدُّخُّ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « اخْسَأْ فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ ». قَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، ائْذَنْ لِي فِيهِ أَضْرِبْ عُنُقَهُ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنْ يَكُنْهُ فَلَنْ تُسَلَّطَ عَلَيْهِ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْهُ فَلاَ خَيْرَ لَكَ فِي قَتْلِهِ ».

## رجال الحديث

① **عبدالله بن محمد**: - دا ابو جعفر عبدالله بن محمد بن عبدالله بن جعفر بن اليمان بن اخنس

---

(١) فتح البارى: ٢٠٩/٣ والابواب والتراجم للشيخ الكاندهلوى: ص: ٢٠٣.

(٢) قدمر تخريجه الحديث فى كتاب الجنائز باب إذا أسلم الصبى فمات. هل يصلى عليه؟ رقم: ١٣٥٤.

جعفی بخاری رحمه الله دی دَدوی تذکره کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تیره شوې ده (۱)

(۲) **هشام**: دا قاضی ابوعبدالرحمن هشام بن یوسف الصنعانی دې دَدوی تذکره کتاب الحیض باب من سمی النّاس حیضًا لاندې تیره شوې ده

(۳) **معمر**: دامعمربن راشد ازدی ابوعروه بصری رحمه الله دې دَدوی تذکره بدء الوحی پنځم حدیث لاندې تیره شوې ده (۲)

دَباقی دریوارو راویانو حواله دَ تیرشوی باب لاندې دَ حدیث په سند کښې تیره شوې ده

**قوله**: أتشهد أنی رسول الله؟: په روایت کښې چه رسول الله ﷺ ابن صیاد ته دَ اسلام دعوت ورکولوسره اوفرمائیل آیا ته به دا ګواهی ورکړې چه زه دَ الله تعالی رسول یم؟

**ایا دَ صبی عاقل غیربالغ اسلام معتبردې؟**: امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب سره خپل رجحان طرف ته اشاره کولوسره فرمائیلی دی چه دَ هغوی په نیزدَ صبی عاقل اسلام معتبردې ائمه ثلاثه رائې هم دغه ده. فتح القدیر کښې دی: وإسلامه إسلام باتفاق الائمة الثلاثة (۳) البته دَ امام زفر رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نیز دَ نابالغ اسلام معتبر نه دې (۴)

**دَ علامه انورشاه کشمیری رحمه الله توجیه**: علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دَامام شافعی رحمه الله دَ مسلك باره کښې زما تعجب ووچه کله دَهغوی په نیز دَ نابالغ اسلام معتبرنه دې نودَ حضرت علی رضی الله عنه دَ اسلام متعلق به دَهغه څه رائې وی؟ ځکه چه دَ اسلام دَ قبلولو وخت کښې حضرت علی رضی الله عنه نابالغ وو اوسن بلوغ ته نه وو رسیدلې

شاه صاحب فرمائی چه روستو ماته دَامام بیهقی رحمه الله په معرفة السنن کښې یو روایت ملاؤشو هغې زما پریشانی ختمه کړه. دَامام بیهقی رحمه الله په معرفة السنن کښې دی چه دَ غزوه خندق نه پس دَ شرائع او احکامو دارومدار په بلوغ باندې کیخودې دې. خودحضرت علی رضی الله عنه دَ اسلام قبلولو واقعه دَ غزوه خندق نه وړاندې ده.

فیض الباری کښې دی: وأما عند الشافعی فاسلامه غیرمعتبر، وکنت أتعجب منه، وأقول: إنهم ما ذا یصنعونه باسلام علی رضی الله عنه فانه أسلم فی صباه، ثم رأیت فی معرفة السنن للبیهقی أن الاحکام نیطت علیه بالبلوغ بعد غزوة الخندق، وإسلام علی — رضی الله عنه — کان قبلها، فلا باس بعبرته وحینئذ زال القلق. (۵)

**دَ جمهورفقهاؤ استدلال**: دَدې حضراتو استدلال دَحضرت علی رضی الله عنه دَ قبول اسلام دَ واقعه نه دې چه هغوی دَ بلوغت نه وړاندې اسلام قبول کړې وو. رسول الله ﷺ صرف دَهغوی اعتبارنه

---

(۱) کشف الباری:۱/۶۵۷.

(۲) کشف الباری:۱/٤۶۵.

(۳) فتح القدیر للعلامة ابن الهمام: ۳۲۸/۵ فی أحکام المرتد. وردالمختار:۳۹۳/۶ والفتاویٰ التنار خانیة للعلامة ابن العلاء الانصاری الدهلوی:۳۷۶/۵ فی کتاب أحکام المرتدین.

(۴) فتح القدیر: ۳۲۸/۵ والفتاویٰ التنار خانیة:۳۷۶/۵.

(۵) فیض الباری:۳/ ٤٥٤.

وو کړي بلکه د فخر او مسرت اظهار ئې هم فرمائیلې وو (١)

امام مالک رحمه الله موطا کښې عن ابن شهاب عن علی بن حسین عن علی بن ابی طالب په طریق سره یو روایت نقل کړې دې إنما ورث أباطالب عقیل ولم يرثه علی (٢) مطلب داچه د ابوطالب میراث لکه چه په وړاندې باب کښې تفصیل راغی، صرف طالب او عقیل حاصل کړې حضرت علی رضی الله عنه ته د مسلمان کیدو وجې خپله حصه ملاونه شوه (٣) د دې نه هم د هغوی د اسلام د صحت او اعتبار باندې استدلال کولې شی ځکه چه د مسلمان کیدو د وجې نه هغوی ته خپله حصه نه ملاویدل د اسلام معتبر کیدو دلیل دې.

دویم قوی دلیل د هغوی حدیث باب دې په کوم کښې چه حضور پاک ابن صیاد ته د اسلام دعوت ورکړې او هغه بالغ نه وو. دا دلیل ځکه زیات قوی دې چه د ابن صیاد دا واقعه د غزوه خندق نه پس راغلې ده (٤)

**د امام زفر رحمه الله او امام شافعی رحمه الله استدلال او د هغې رد:** ① د دې حضراتو رومبې دلیل دا دې چه نابالغ د اسلام په معامله کښې د مور پلار تابع دې لهذا د هغه اسلام به اصلی نه وی دا نه شی کیدې چه هغه تابع هم وی اصلی هم (٥)

② دویم دلیل دا دې چه د نابالغ د اسلام اعتبار او کړې شی نو د دې په نتیجه کښې به هغه سره داسې کارونه او تړلې شی کوم سره چه به نقصان لازم راځی او هغه احکام به د هغه په حق کښې د ضرر سبب وی د مثال په توګه چه دې به د خپل کافر مور پلار د میراث نه محروم شی په دې وجه نابالغ صبی کښې د اسلام اهلیت د دې حضراتو په نیز اعتبار نشته. (٦)

علامه مرغینانی په هدایه او علامه ابن نجیم په البحرالرائق کښې د دې حضراتو مذکوره دلائلو دا جواب ورکړې دې چه د نابالغ صبی اسلام ځکه معتبر ګرځولې شوې دې که چرې هغه په صدق زړه سره اسلام قبول کړی نو ښکاره خبره ده چه دا د هغه اسلام سره د هغه د اعتقاد او خوښئی دلیل دې او دا یو داسې حقیقت دې کوم چه یقیناً رد کولې نه شی

دویمه دا چه دا د همیشه نیک بختی او په آخرت کښې د خلاصی ضامن هم اسلام دې او دا یو دومره لویه فائده ده چه د دې په مقابله کښې دنیاوی مفادات یعنی میراث وغیره هیڅ حیثیت

---

(١) ردالمختار علی الدرالمختار: ٦/٤٩٤ والبحرالرائق للعلامة ابن نجیم: ٥/٢٣٢ فی کتاب السیر باب أحكام المرتدین.

(٢) موطاللامام مالک رحمه الله ص: ٦٦٦ کتاب الفرائض میراث أهل الملل. نور محمد.

(٣) انظر کشف المغطاعن وجه الموطاللعلامة أشفاق الرحمن الکاندهلوی علی هامش لموطا لمالک ص: ٦٦٦ وأوجزالمسالک إلی موطا الامامام مالک للمحدث محمدزکریا الکاندهلوی: ١٢/٤٤٣ کتاب الفرائض میراث أهل الملل.

(٤) انظر فتح القدیر للعلامة ابن همام رحمه الله ٥/٣٢٩ أحکام المرتد.

(٥) البحرالرائق: ٥/٢٣٢ کتاب السیر باب أحکام المرتدین.

(٦) فتح القدیر: ٥/٣٢٩ والبحرالرائق: ٥/٢٣٢.

بس هم دغه د اسلام اصلي حکم دې چه په آخرت کښې نجات او خلاصې حاصل شي نو که د میراث وغیره نقصان وی د هغې هیڅ پرواه نشته

بحرالرائق او هدایه وغیره کښې دی وارتداد الصبی العاقل صحیح کاسلامه بیان للاسلام الصبی وردته. أما الاول، ففیه خلاف زفر، والشافعی – رحمهما الله – نظرا إلی أنه فی الاسلام تبع الابویه فیه، فلایجعل أصلا، ولانلزمه أحکاما یشوبها المضرة، فلایؤهل له.

ولنا أن علیا – رضی الله عنه – أسلم فی صباه وصحح النبی صلی الله تعالی علیه وسلم إسلامه، وافتخاره بذلك مشهور، ولانه أتی بحقیقة الاسلام، وهو التصدیق والاقرار معه، لان الاقرار عن طوع دلیل علی الاعتقاد علی ماعرف والحقائق لاترد، ومایتعلق به سعادة أبدیة ونجاة عقباویة، وهو من أجل المنافع، وهو الحکم الاصلی، ثم یبتنی علیه غیرها فلایبالی بما یشوبه. (۱)

**ترجمة الباب سره مطابقت:-** په روایت کښې دی أتشهد أنی رسول الله؟ په دې کښې نابالغ ابن صیاد، ته د اسلام دعوت ورکړې شوې دې ترجمة الباب سره د دې جملې مناسبت دې (۲)

[حدیث ۲۸۹۱] قَالَ ابْنُ عُمَرَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَأْتِيَانِ النَّخْلَ الَّذِي فِيهِ ابْنُ صَيَّادٍ، حَتَّى إِذَا دَخَلَ النَّخْلَ طَفِقَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ وَهُوَ يَخْتِلُ ابْنَ صَيَّادٍ أَنْ يَسْمَعَ مِنِ ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ، وَابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلَى فِرَاشِهِ فِي قَطِيفَةٍ لَهُ فِيهَا رَمْزَةٌ، فَرَأَتْ أُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ - صلی الله علیه وسلم - وَهُوَ يَتَّقِي بِجُذُوعِ النَّخْلِ، فَقَالَتْ لاِبْنِ صَيَّادٍ أَيْ صَافِ - وَهْوَ اسْمُهُ - فَثَارَ ابْنُ صَيَّادٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - «لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ». [ر ۱۲۸۹]

دا تعلیق رومبی حدیث سند سره موصول دې په دې کښې د ابن صیاد د قصې د دویمې حصې بیان دې.

[حدیث ۲۸۹۲] وَقَالَ سَالِمٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - فِي النَّاسِ فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ، ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ «إِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ، وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلاَّ قَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ، لَقَدْ أَنْذَرَهُ نُوحٌ قَوْمَهُ، وَلَكِنْ سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلاً لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ، تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ». [ر ۳۱۵۹]

دا تعلیق د اول سند سره موصول دې په دې کښې د ابن صیاد د قصې د دریمې حصې بیان دې.

**د مذکوره تعلیقات تخریج** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه مذکوره دریواړه تعلیقات مسند

---

(۱) الهدایة للعلامة المرغینانی: ۳۴۹/۴ کتاب السیر باب أحکام المرتدین. إدارة القرآن کراچی. والبحرالرائق: ۲۳۲/۵ کتاب السیر أحکام المرتدین.

(۲) عمدة القاری: ۴۱۷/۱۴.

احمد بن حنبل کښې عن معمر عن الزهری عن سالم په طریق باندې موصولاً نقل دی [1]

## باب ۱۷۵: قول النبی ﷺ للیهود: (أسلموا تسلموا)

**دَ ترجمة الباب مقصد** - دَدې باب لاندې امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه یهودوته دَاسلام دعوت ورکول دَ سنت نه ثابت دی رسول اکرم ﷺ دَ عربویهودو ته دَاسلام دعوت ورکړو او ونې فرمائیل اسلموا تسلموا که چرې تاسو اسلام راوړئی نو په دې برکت سره به دنیاکښې دَ قتل او جزیه دَ ذلت نه او دَ آخرت دَعذاب نه محفوظ شئی [2]

**اوس سابق باب سره مناسبت** - دَتیرباب لاندې داخودلې شوی دی چه دَ جهاد په دوران کښې لویوسره نابالغ ماشومان هم په قیدیانوکښې شامل وی. داشك لرې کولودپاره چه آیا نابالغ ماشومانوته دَاسلام دعوت ورکول ثابت دی که نه؟ امام بخاری رحمه الله یومستقل باب قایم کولوسره دَحدیث نه ثابته کړې ده چه نابالغ ته هم دَاسلام دعوت ورکول منصوص دی بنکاره خبره ده چه په قیدیانوکښې نابالغ مشرکانو په شان یهودیان هم شامل کیدې شی. امام بخاری رحمه الله باب هل یعرض الاسلام علی الصبی؟ مناسبت سره یهودو سره متعلق هم یو مستقل باب قایم کولوسره دا وضاحت فرمائیلې چه دوی ته هم دَاسلام دعوت ورکول سنت نه ثابت دی

**قَالَهُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.** [ر: ۲۹۹۶]

دلته امام بخاری رحمه الله حدیث نه دې نقل کړې وړاندې کتاب الجزیه کښې باب إخراج الیهود من جزیرة العرب لاندې امام بخاری رحمه الله داتعلیق عن اللیث، عن سعید المقبری عن ابیه، عن أبی هریرة رضی الله عنه په طریق سره موصولاً روایت کړې دې [3] په دې به تفصیلی بحث ان شاء الله هم هتله کیږی دې نه علاوه کتاب الاکراه [4] او کتاب الاعتصام [5] لاندې هم په دې سند سره دا تعلیق موصولاً نقل کړې شوې دې [6]

## باب ۱۷۶: إذا أسلم قوم فی دار الحرب، ولهم مال وأرضون، فهی لهم

**دَ ترجمة الباب مقصد** - دَدې ترجمة الباب نه دَ امام بخاری رحمه الله مقصد دادې چه په دارالحرب باندې غلبه او استیلاء نه باوجود دَاسلام راوړونکو حربیانو منقوله اوغیرمنقوله جائیدادبه

---

[1] مسند أحمد بن حنبل رحمه الله ۱۴۹/۲ و تغلیق التعلیق لابن الحجر رحمه الله: ۴۵۹/۳.

[2] عمدة القاری: ۴۲۰/۱۴ قال العینی رحمه الله أی هذا باب فی ماذکر من قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم للیهود: أسلموا بفتح الهمزة من الاسلام. قوله: تسلموا. بفتح التاء من السلامة أی تسلموا فی الدنیا من القتل والجزیة. وفی الاخرة من العقاب والخلود فی النار.

[3] کتاب الجزیة باب إخراج الیهود من جزیرة العرب رقم: ۳۱۶۷ وعمدة القاری وفتح الباری: ۲۰۶/۶ والابواب والتراجم ص: ۴۰۳.

[4] صحیح بخاری کتاب الاکراه باب فی بیع المکره ونحوه فی الحق وغیره رقم: ۲۹۴۴.

[5] صحیح البخاری کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة باب وکان الانسان أکثر شئ جدلا رقم: ۷۳۴۸.

[6] تغلیق التعلیق للحافظ ابن حجر رحمه الله ۴۵۹/۳.

مه دعوى په قبضه اوملكيت كښې وى حمله كونكى مسلمانان دعوى املاك د غنيمت مال كنړلوسره قطعا په خپل تصرف كښې نه شى راوستې دراصل امام بخارى رحمه الله دلته په احناف رد كړې دې (۱) دد ې تفصيل وړاندې راځى

حديث ۲۸۹۳ (۲) حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِي حَجَّتِهِ. قَالَ «وَهَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيلٌ مَنْزِلاً». ثُمَّ قَالَ نَحْنُ نَازِلُونَ غَدًا بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ الْمُحَصَّبِ، حَيْثُ قَاسَمَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْكُفْرِ». وَذَلِكَ أَنَّ بَنِي كِنَانَةَ حَالَفَتْ قُرَيْشًا عَلَى بَنِي هَاشِمٍ أَنْ لاَ يُبَايِعُوهُمْ وَلاَ يُئْوُوهُمْ. قَالَ الزُّهْرِيُّ وَالْخَيْفُ الْوَادِي. [ر: ۱۵۱۱]

## رجال الحديث

① **محمود** - محمود بن غيلان العدوى المروزى دې د دوى حالات كتاب مواقيت الصلوة باب النوم قبل العشاء لمن غلب لاندې تيرشوى دى.

② **عبدالرزاق** - داابوبكر عبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانى يمانى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء لاندې تيره شوې ده (۳)

③ **معمر** - داابوعروه معمربن راشد ازدى بصرى رحمه الله دې د دوى تذكره بدء الوحى پنځم حديث لاندې تيره شوې ده (۴)

④ **زهرى** - دامشهورمحدث ابوبكر محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى المدنى رحمه الله دې د دوى حالات بدء الوحى كښې دريم حديث لاندې تيرشوى دى (۵)

⑤ **على بن حسين** - دامشهورعابد اوفقيه زين العابدين على بن حسين بن على بن ابى طالب الهاشمى دې د دوى حالات كتاب التهجد باب تحريض النبى صلى الله تعالى عليه وسلم على قيام الليل لاندې تيرشوى دى.

⑥ **عمروبن عثمان بن عفان** - داعمرو بن عثمان بن عفان اموى مدنى قرشى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الحج باب توريث دور مكة وبيعتها وشرائها لاندې تيرشوى دى

⑦ **اسامه بن زيد** - دا اسامه بن زيد بن حارثه كليسى مدنى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الوضوء باب إسباغ الوضو لاندې تيره شوې ده

---

(۱) فتح البارى:۶/۲۰۶ والابواب والتراجم للكاندهلوى ص:۲۰۳.
(۲) قد سبق تخريج الحديث فى كتاب الحج. باب توريث دُوَر مكة وبيعها وشرائها رقم:۱۵۸۸.
(۳) كشف البارى:۲/۴۲۱.
(۴) كشف البارى:۱/۴۶۵.
(۵) كشف البارى:۱/۳۲۶.

**قوله** قلت یارسول الله، أین تنزل غدا؟ فی حجته - اسامه بن زید رضی الله عنه وائی چه ما د حجة الوداع په موقع باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو صباله به تاسو چرته قیام کوئی؟

**قوله** قال: وهل ترك لنا عقیل منزلا؟ ثم قال: نحن نازلون غدا بخیف بنی کنانة المحصب حیث قاسمت قریش علی الکفر - رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل عقیل زمونږ د پاره چرته یومکان پریخودې هم دې؟ بیائې اوفرمائیل صبابه زمونږ قیام به خیف بنی کنانه مقام محصب کښې وی چرته چه قریشو په کفرباندې عهدکړې وو مطلب دادې په دې مقام باندې بنوکنانه او قریشو د بنوهاشم خلاف په دې خبره باندې عهدکړې وو چه هغوی سره به د اخستلو خرخولو معاملات کیږی اونه به هغوی ته پناه ورکولې شی دې دپاره چه په بنوهاشم باندې د دین اسلام د اشاعت اوترویج تولې لارې بندې کړې شی

المحصب - دا د مصدر تصحیب نه د اسم مفعول صیغه ده او د ماقبل جملې بخیف بنی کنانة نه عطف بیان یا بدل دې [1]

قاسمت - په معنی حالفت د قاف فتحه سره دا د مصدر قسامة دې د یمین اوقسم په معنی کښې دې [2]

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نیکه عبدالمطلب د وفات نه پس د هغه د جائیداد وارث د هغه خامن اوحضورپاك تره ابوطالب جوړشوې وو د ابوطالب څلور خامن وو طالب عقیل حضرت جعفر او حضرت علی رضی الله عنه آخری دواړه حضرات خو د سابقین اولین نه وو عقیل رضی الله عنه د فتح مکه نه پس اسلام راوړلې وو او طالب روستو د کفر په حالت کښې اووژلې شو

چونکه د کافروارث مسلمان نه شی جوړیدې او حضرت جعفر اوحضرت علی رضی الله عنهما دواړه د ابوطالب د وفات په وخت مسلمانان شوی وو په دې وجه دوی د ابوطالب وارثان جوړنه شو طالب اوعقیل رضی الله عنه د هغوی د میراث مالك جوړشوی وو بیا روستو عقیل رضی الله عنه ټول مکانات ابوسفیان په لاس خرڅ کړل [3] وهل ترك لناعقیل منزلا سره رسول اکرم صلی الله علیه وسلم هم دې طرف ته اشاره کړې ده اوهم په دې سره امام بخاری رحمه الله خپله مدعی ثابتوی.

**د حربی مسلمان د منقوله اوغیرمنقوله اموالوحکم:** - د فتح مکه په موقع باندې د مسلمانانو د غلبه او استیلاء نه باوجود د اسلام راوړلونه وړاندې کوم جائیدادچه د عقیل رضی الله عنه ملکیت کښې پاتې وو په هغې باندې د هغه ملکیت د اسلام راوړلونه پس هم وو په دې وجه د هغه د تصرف اعتبارکولوسره رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل وهل ترك لناعقیل شئ؟ د حضورپاك د ارشاد منشادا وه چه که د عقیل جائیداد وې کوم چه هغه د ابوسفیان رضی الله عنه په لاس خرڅ کړې وو نوهغه به پخپله د هغې وارث وو د امام بخاری رحمه الله په نیزدې نه ثابته شوه چه د دارالحرب باندې

---

[1] ) عمدة القاری: ۴۲۱/۱۴.

[2] ) عمدة القاری: ۴۲۱/۱۴.

[3] ) کشف الباری: کتاب المغازی ص: ۵۱۱.

مسلمانانو غلبه او استیلاء نه پس د حربی مسلمان املاک محفوظ کیږی او هم دهغه په تصرف کښې به وی غانمین ته دا املاک په خپل تصرف کښې راوستل جائز نه وی
امام قرطبی رحمه الله فرمائی چه دې روایت نه ممکن دی چه د امام بخاری رحمه الله مراد دا دې چه کله رسول اکرم ﷺ په اهل مکه باندې کله چه هغوی اسلام نه وو راوړې احسان کولو سره دهغوی مالونو او کورونو باندې دهغوی قبضه باقی اوساتله نود مسلمان کیدونکو قبضه دهغوی په املاک وغیره باندې په طریقه اولی سره په خانی پاتې کیدل پکار دی
چنانچه فتح الباری کښې دی يحتمل أن يكون مراد البخاری ان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم من علی اهل مكة باموالهم ودورهم من قبل أن يسلموا فتقرير من أسلم يكون بطريق الاولى (۱)
**امام شافعی رحمه الله، اشهب رحمه الله او سحنون رحمه الله مسلک** ددې حضراتو رائې هم دغه ده چه په دارالحرب باندې دمسلمانانو دحملې کولو نه باوجود منقوله او غیرمنقوله املاک باندې دمسلمان حربی ملکیت هم هغه شان باقې وی او دهغوی نابالغ ماشومان غلامان جوړول جائز نه دی ځکه چه هغوی په اسلام کښې دخپل پلار تابع دی شرح ابن بطال کښې دی قال الشافعی واشهب وسحنون انه قد أحرز ماله وعقاره حيث كان وولده الصغار . لانهم تبع لابيهم في الاسلام (۲)
**د امام مالک رحمه الله مسلک** - د امام مالک رحمه الله په نيز دا املاک د دار تابع کیدو سره به مال غنیمت جوړیږی قال مالك: أهله وماله وولده فيها فئ على حكم البلاد (۳)
**د طرفين رحمهما الله مسلک** - امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائی چه په منقوله څیزونو او نابالغ اولاد باندې به د حربی مسلمان تصرف په خانی وی خو غیرمنقوله املاک به مال غنیمت شی البحر الرائق کښې علامه ابن نجیم رحمه الله فرمائی عند أبي حنيفة ومحمد يصير ماله فيئا وانما يحرز نفسه وماله . (۴)
په دارالحرب کښې مقیم اسلام راوړونکی نفس د قبولیت اسلام د وجې نه محترم وی په دې وجه دهغه مال منقول هم محترم دې دهغه احترام د وجې مال منقول غنیمت جوړول جائز نه دی او نابالغ اولاد حکماً دپلار تابع وی په دې وجه هغه غلامان جوړول جائز نه دی د امام سرخسی رحمه الله په المبسوط کښې دی وإذا أسلم الحربي في دار الحرب ثم ظهر المسلمون على تلك الدار ترك له ما في يده ومن ماله، ورقيقه وولده الصغار، لان أولاده الصغار صار والمسلمين باسلامه تبعا، فلا يسترقون والمنقولات في يده حقيقة وهي يد محترمة لاسلام صاحبها فلا يتملك ذلك عليه بالاستيلاء (۵)

---

(۱) فتح الباری: ۲۱۶/۶.
(۲) شرح ابن بطال: ۲۱۹/۵ وعمدة القاری: ۴۲۰/۱۴ وفتح الباری: ۲۱۶/۶ وفیض الباری للعلامة الکشمیری: ۴۵۶/۳
(۳) شرح ابن بطال: ۲۱۹/۵ وعمدة القاری: ۴۲۰/۱۴.
(۴) البحر الرائق: ۱۴۷/۵ والمبسوط للسرخسی: ۵۴/۱۰ وإعلاء السنن: ۱۴۰/۱۲.
(۵) المبسوط للامام السرخسی رحمه الله ۵۴/۱ الجزء العاشر کتاب السیر والبحر الرائق لعلامة ابن نجیم: ۱۴۷/۵.

البته د دغه حضراتو په نيز كافره ښځه او نابالغ اولاد غلام جوړولې شي مبسوط سرخسي او علامه ابن نجيم په بحر الرائق كښې دى چه د حامله ښځې حمل هم د مال منقول تابع كيدوسره شرعا د غلام په حكم كښې دې (١)

خو د مسلمان حربى كوم مال منقول چه مسلمان يا ذمى سره د امانت په توګه موجود وى په هغې به د هغه ملكيت برقرار وى ځكه چه دا مال په داسې لاس كښې دې د كوم قبضه چه شرعا صحيح او معتبرده اودا قبضه په دار الحرب باندې د مسلمانانو د حملې او غالب راتلوسره ختميږى نه امام سرخسي رحمه الله فرمائى: وأن كان أودع شيئا من ماله مسلما أو ذميا فذلك المال لايكون فيئا، لان يد المسلم والذمى يد صحيحة على هذا المال فتكون مانعة إحراز المسلمين إياها (٢)

البته كافر حربى سره كيخودې شوې امانت به مال غنيمت جوړيږى. ځكه چه په دې امانت باندې د هغه قبضه معتبرنه ده. د دې وجه داده چه د مسلمانانو د حملې كولو په تنيجه كښې د هغه د ذاتى ملكيت څيزونه هم مال غنيمت جوړيږى. كه د اسلام مجاهدين د هغه مال غنيمت جوړول غواړى نو د كافرحربى قبضه شرعا مانع نه شي جوړيدې. په دې وجه هغه سره د كيخودې شوى مال وديعت هم دغه حيثيت دې كوم چه مجاهدين اسلام مال غنيمت جوړول غواړى نو د هغه قبضه د هغوى د پاره مانع كيدې نه شي. كله چه مجاهدين حمله اوكړى نو چه څنګه د دە ذاتى مال غنيمت جوړيږى دغه شان هغه سره موجود مال هم په غنائم كښې شميرلې كيږى.

امام سرخسي رحمه الله په المبسوط كښې تحرير فرمائى: وأن كان أودع شيئا من ماله حربيا فذلك المال فئ فى ظاهر الرواية. وجه ظاهر الرواية أن يد المودع فى هذ المال ليست بيد صحيحة، ألا ترى أنها لاتكون دافعة لاغتنام المسلمين عن سائر أمواله. فكذلك عن هذه الوديعة وإذا لم تكن يده معتبرة كان هذا، والمال الذى لم يودعه أحد سواء. (٣)

**د امام ابويوسف رحمه الله مسلك:** - د امام ابويوسف رحمه الله په نيز مال منقول او مال غير منقول دواړو يو حكم دې لهذا د هغوى په نيزبه په دې مالونو باندې د مسلمان حربى ملكيت په ځائې وى. (٤)

**د امام ابويوسف رحمه الله استدلال او د هغې جواب:** - د هغوى استدلال د محمد بن اسحاق د دې روايت نه دې چه كله رسول الله ﷺ د بنوقريظه محاصره اوكړه نو په هغوى كښې بعض كسانو اسلام قبول كړو رسول الله ﷺ د اسلام د قبلولو د وجې نه محصور (حربى) د مسلمانانو مال اوځان محفوظ او مامون ګرځولو حكم اوفرمائيلو د روايت الفاظ دادى.

عن محمد بن اسحاق رحمه الله أن نفرا من بنى قريظة أسلموا حين كان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم

---

(١) المبسوط للامام الاسرخسي رحمه الله ٥٤/١ الجزء العاشر كتاب السير والبحر الرائق لعلامة ابن نجيم: ١٤٧/٥.

(٢) المبسوط للامام الاسرخسي رحمه الله ١٠/٥٤ -٥٥.

(٣) المبسوط للامام الاسرخسي رحمه الله ١٠/٥٤ -٥٥ كتاب السير.

(٤) إعلاء السنن: ١٣٩/١٢ شرح السير للامام محمد رحمه الله ١٠/٦٦ -٦٧ والمبسوط للسرخسي: ١٠/٥٤.

محاصر البنى قريظة فاحرزوا بذلك أموالهم وأنفسهم [١]
امام ابويوسف رحمه الله فرمائى وعامة أموالهم الدور والاراضي.. مطلب دادې چه محمدبن اسحاق رحمه الله په روايت كښې دلفظ اموال نه كورونه اوزمكې وغيره مراد دى خكه چه عموماً دهغوى مالونه به هم دغه څيزونه وو ددې استدلال جواب دادې چه غيرمنقوله مال يعنى كورونه باغونه او زمكو باندې ملكيت حكماً ثابتيږى اودارالحرب دا رالاسلام نه دې چرته چه احكام جارى شى په دې وجه په غيرمنقول مال باندې دمسلمان حربى د ملكيت اعتبار د مسلمانانو د حملې كولونه وړاندې هم نه شى كيدې لهذا د مسلمانانو دحملې كولو په نتيجه كښې د دارالحرب په غيرمنقوله املاك باندې د حربيانو ملكيت باقى نه پاتې كيږى هغه به مال غنيمت جوړيږى [٢]

**دَ طرفينو استدلال:-** دَ دې حضراتو دليل دَ ابن شهاب زهرى رحمه الله دا مرسل روايت دې حدثنا حفص بن غياث عن ابن أبي ذئب عن الزهرى قال: قضیٰ رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فيمن أسلم من البحرين أنه قد أحرز دمه وماله إلا أرضه فانها فيئ للمسلمين، لانهم لم يسلموا وهم ممتنعون. [٣]
روايت كښې دى چه رسول الله ﷺ دَ بحرين اسلام راوړونكوباره كښې فيصله اوكړه چه هغوى دَخپل ځان اومال حفاظت خو اوكړو البته زمكې به دَ مسلمانانو په مال غنيمت كښې شميرلې كيږى ځكه چه هغه خلقو دَعصمت په حالت كښې ايمان نه دې راوړې.
دَ ابن شهاب زهرى رحمه الله ددې مرسل روايت تائيد دَحضرت عمربن عبدالعزيز رحمه الله ددې اثر نه هم كيږى كوم چه دَ يحيىٰ بن آدم په كتاب الخراج كښې دې: حدثنا إسماعيل بن عياش الشامي عن عبدالله البهراني عن عمربن عبدالعزيز أنه كتب: من أسلم من أهل البحرين فله ما أسلم عليه من أهل ومال، وأما داره وأرضه، فانها كانتا فى فيئ الله على المسلمين. [٤]
مطلب دادې چه دَ اهل بحرين نه كوم خلق مسلمانان شوى داسې اوګڼړلې چه هغوى دَخپل اهل وعيال اومال سره مسلمانيدوسره محفوظ شو. البته دَهغوى مكانات اوزمكې دَ الله تعالى دَ طرف نه دَمسلمانانودَپاره مال فئ دې.
دَ اصول فقه په كتابونوكښې تصريح ده چه كه دَ مرسل په تائيدكښې داسې صحابى يا تابعى اثر نقل وى چه په شرعى احكامو كښې ژور بصيرت لرى نو دَداسې صحابى يا تابعى اثربه په اتفاق دَاحتجاج قابل وى. [٥] دَ عمر بن عبدالعزيز رحمه الله تقوىٰ تدين اودَهغوى فقهى بصيرت باندې دَ فقهاؤ اتفاق دې. چونكه دَ زهرى رحمه الله دَ مرسل په تائيدكښې دَهغوى فتوىٰ اواثر

[١] ) إعلاء السنن: ١٣٩/١٢ والمبسوط للسرخسي: ٥٤/١٠.
[٢] ) إعلاء السنن: ١٣٩/١٢ والمبسوط للسرخسي: ٥٤/١٠.
[٣] ) أخرجه يحيىٰ بن آدم فى كتاب الخراج انظر إعلاء السنن: ١٤٦/١٢.
[٤] ) إعلاء السنن: ١٣٩/١٢.
[٥] ) الوجيز فى أصول الفقه: ٤٧٤/١ وإعلاء السنن: ١٤٦/١٢.

موجود دي په دې وجه د امام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله استدلال زیات قوی دې [1]
**امام شافعی رحمه الله، اشهب رحمه الله او سحنون رحمه الله دلائل اودهغې رد** د دې حضراتو رانې ود چه حدیث باب کښې رسول الله ﷺ د حضرت عقیل رضی الله عنه تصرف په خانې اوساتلو په دې وجه د مسلمان حربی تصرف اوملکیت دې په خانې اوساتلې شي په دارالحرب باندې د اهل اسلام غالب راتلوسره د هغوی ملکیت نه ختمیږی د دې استدلال مختلف جوابات دی ① رسول الله ﷺ د حسن اخلاق د وجې نه د تره د خونې تصرف کښې دخل کول مناسب اونه گنړل [2]
② د رسول الله ﷺ په دې طرز عمل سره تالیف قلب مقصود وو [3]
③ په دې سره دا یقین ورکول مقصدوو چه څنګه د جاهلیت د زمانې نکاح په خانې وی هغه شان به د هغه وخت تصرفات هم معتبر او په خانې وی [4]
④ د صلح په نتیجه کښې فتح کیدونکې علاقې د اوسیدونکوزمکې باغونه اومکانونه بالاجماع مال غنیمت نه شی جوړیدې بلکه په هغې باندې د اهل صلح ملکیت هم د مخکې په شان وی
د امام شافعی رحمه الله د مشهورقول مطابق مکه عنوتًا فتح شوې نه وه بلکه صلحًا فتح شوې وه [5] د مکې د فتح سره متعلق د امام شافعی رحمه الله د دې قول نه معلومیږی چه حدیث باب پخپله د هغوی د پاره دلیل نه شی جوړیدې ځکه چه صلحًا فتح کیدونکې علاقومنقول اوغیرمنقول املاک باره کښې د امام شافعی رحمه الله سره د ائمه ثلاثه هم اختلاف نشته د ټولو په نیزهغه د مسلم حربی ملکیت کښې پاتې کیږی اختلاف خو عنوتًا فتح کیدونکې علاقې مال غیرمنقول باره کښې دې

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت** علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ترجمة الباب سره هل ترک لنا عقیل منزلا مناسبت دې په کوم سره چه امام بخاری رحمه الله دا ثابت کړی دی چه کله رسول الله ﷺ په حالت کفر کښې د حضرت عقیل رضی الله عنه د تصرف اعتبار اوکړونو د اسلام راوړلو نه پس خو اعتبار په طریقه اولی کیدل پکاردی لکه چه د ترجمة الباب مدعی هم دې نه ثابته کړې شوې ده [6]
حضرت شیخ الحدیث زکریا رحمه الله فرمائی حقیقت دادې امام بخاری رحمه الله د خپلې مدعی ثابتولو د پاره ترجمة الباب سره مناسبت لرونکې صحیح حدیث نه دې نقل کړې [7] د حافظ

---

[1] ) پخپله د امام شافعی رحمه الله په نیزچه په مذکوره مسئله کښې د طرفین خلاف دې د امام زهری مرسل روایات مقبول او قابل احتجاج دی اوګورئی الوجیزفی أصول الفقه: ۴۷۵/۱.
[2] ) فتح الباری:۱۵/۸ کتاب المغازی وفتح الملهم للعلامة شبیرأحمدعثمانی رحمه الله ۳۸۲/۳ کتاب الحج باب نزول احاج بمکع وتوریث دورها.
[3] ) فتح الباری:۸ ۱۵ کتاب المغازی وفتح الملهم للعلامة شبیرأحمدعثمانی رحمه الله ۳۸۲/۳.
[4] ) فتح الباری:۸ ۱۵ کتاب المغازی وفتح الملهم للعلامة شبیرأحمدعثمانی رحمه الله ۳۸۲/۳.
[5] ) فتح الباری:۸ ۱۳ کتاب المغازی.
[6] ) عمدة القاری: ۱۴ ۴۲۱.
[7] ) الابواب والتراجم للمحدث الکاندهلوی: ص:۲۰۳.

صاحب رائې هم دغه ده هغوی لیکی چه مسند احمد بن حنبل کښې صخر بن علیه په طریق سره چه کوم روایت نقل کړې شوې دې هم دغه د ترجمة الباب سره مناسب دې (۱) مسند احمد کښې دی عن صخر بن علیة المجلی قال: فر قوم من بنی سلیم عن أرضهم فاخذتها، فاسلموا وخاصمونی الی النبی صلی الله تعالی علیه وسلم، فردها علیهم وقال: اذا أسلم الرجل فهو أحق بارضه وماله. (۲) صخر بن علیه رضی الله عنه فرمائی چه د بنوسلیم یو قبیلې خپله زمکه پریخوده اوتختیدل هغه زمکه ما واخستله روستو د قبیلې خلقو اسلام راوړو نو دهغې د واپس کولو مطالبه کولو سره نی زه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړم حضورپاک هغه زمکه هغوی ته واپس کړه او ارشاد نې اوفرمائیلو کله چه سړې مسلمان شی نو په خپله زمکه او مال باندې هم دهغه حق وی

حافظ ابن حجر رحمه الله په نیزیه مذکوره روایت کښې اذا اسلم الرجل فهو أحق بارضه وماله د ترجمة الباب سره مناسبت دې

[حدیث ۲۸۹۴] (۳) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ-رضی الله عنه-اسْتَعْمَلَ مَوْلًى لَهُ يُدْعَى هُنَيًّا عَلَى الْحِمَى فَقَالَ يَا هُنَيُّ، اضْمُمْ جَنَاحَكَ عَنِ الْمُسْلِمِينَ، وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ، فَإِنَّ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ مُسْتَجَابَةٌ، وَأَدْخِلْ رَبَّ الصُّرَيْمَةِ وَرَبَّ الْغُنَيْمَةِ، وَإِيَّايَ وَنَعَمَ ابْنِ عَوْفٍ، وَنَعَمَ ابْنِ عَفَّانَ، فَإِنَّهُمَا إِنْ تَهْلِكْ مَاشِيَتُهُمَا يَرْجِعَا إِلَى نَخْلٍ وَزَرْعٍ، وَإِنَّ رَبَّ الصُّرَيْمَةِ وَرَبَّ الْغُنَيْمَةِ إِنْ تَهْلِكْ مَاشِيَتُهُمَا يَأْتِنِي بِبَنِيهِ فَيَقُولُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. أَفَتَارِكُهُمْ أَنَا لَا أَبَا لَكَ فَالْمَاءُ وَالْكَلَأُ أَيْسَرُ عَلَيَّ مِنَ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ، وَايْمُ اللَّهِ، إِنَّهُمْ لَيَرَوْنَ أَنِّي قَدْ ظَلَمْتُهُمْ، إِنَّهَا لَبِلَادُهُمْ فَقَاتَلُوا عَلَيْهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ، وَأَسْلَمُوا عَلَيْهَا فِي الْإِسْلَامِ، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْلَا الْمَالُ الَّذِي أَحْمِلُ عَلَيْهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا حَمَيْتُ عَلَيْهِمْ مِنْ بِلَادِهِمْ شِبْرًا.

## رجال الحديث

① **اسماعیل**:- دا اسماعیل بن ابی اویس ابن مالک المدنی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب المساقاة، باب شرب الناس وسقی الدواب لاندې تیره شوې ده.

② **مالک**- دا امام مالک بن انس بن ابی عامر بن عمرو الاصبحی رحمه الله دې د دوی تذکره کتاب الایمان باب من الدین الفرار من الفتن لاندې تیره شوې ده (۴)

③ **زید بن اسلم**:- دا ابو اسامه یا ابو عبدالله زید بن اسلم قرشی عدوی مدنی رحمه الله دې د دوی

---

(۱) فتح الباری:۶/۲۱۶.

(۲) فتح الباری:۶/۲۱۶.

(۳) تفرد به البخاری. انظر تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف للمزی:۸/۸ رقم:۱۰۳۹۵.

(۴) کشف الباری:۲/۸۰.

تذکره هم کتاب الایمان کښې تیره شوې ده (۱)
په روایت کښې دی چه حضرت عمر ﷛ هُنی نوم خپل آزاد کړې غلام ته (ربذه) د مال د څرن د ځائی عامل مقرر کړو نوهغه ته نې هدایت اوکړو چه مسلمانانو سره په رفق اونرمئی سره ملاویږه دمظلوم د بد دعانه ویریږه ځکه چه د مظلوم دعا رد کیږی نه

**هُنی**: (بضم الهاء فتح النون وتشدید الیاء) داد حضرت عمر ﷛ آزاد کړې شوې غلام وو حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی چه فضل اوکمال کښې د هغه درجه اوچته وه کنی دحضرت عمر ﷛ غوندې جوهرشناس خلیفه اسلام به د ربذه د چراګاه هغه کله هم عامل نه جوړولو. (۲)
حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی چه هُنی د رسول الله ﷺ زمانه خولیدلې ده لیکن مؤرخینوکښې چاهم هغه ته صحابی نه دی وئیلی (۳) په صحیح بخاری کښې هُنی ذکر د باب هم په دې یوروایت کښې شوې دې باقی امام بخاری ﷫ په خپل صحیح کښې دهغه هیڅ یوروایت نه دې نقل کړې. (۴)

**الحمٰی**: (بکسرالحاء المهملة وفتح المیم مقصورا) چراګاه یعنې د څرن ځائی ته وائی پخوانئی زمانه کښې به دمالدارانو او اثرلرونکوخلقو خاص دڅاروودڅرن ځایونه وو په کوم کښې چه به د نوروخلقودڅاروو د څرولواجازت نه وو حمی هم دې ته وائی. (۵)
په روایت کښې چه د کوم چراګاه ذکر دې دې نه د ربذة چراګاه مراد ده. (۶) معجم البلدان کښې یعقوب حموی ﷫ لیکلی دی رسول الله ﷺ په دې چراګاه کښې د اوسیدوخواهش ښکاره کړې وو اود ربذه تعریف کولوسره ئې فرمائیلی ووکه چرې دلته د مارانو کثرت نه وو نو د اوسیدودپاره ډیر مناسب ځائی وو. (۷)

**وأدخل رب الصريمة ورب الغنيمة وإياى ونعم بن عوف ونعم بن عفان فانهما إن تهلك ماشيتهما يرجعان إلى نخل وزرع، وأن رب الصريمة ورب الغنيمة، ان تهلك ماشيتهما يأتنى ببنيه فيقول يا أمير المؤمنين، أفتاركهم أنا؟ لا أبالك فالماء والكلأ أيسر على من الذهب والورق.**

حضرت عمر ﷛ هنی ته هدایت کولوسره نور اوفرمائیل چه کوم خلق د اوښانو او چیلو مالکان دی دهغوی په رمو کښې د جائزې اخستلود پاره ورخه دې دپاره چه د صدقه په وصول کولوکښې د چاحق اونه وهلې شی. دعبدالرحمن بن عوف او عثمان بن عفان د څاروو باره کښې احتیاط کوه ځکه چه په معاشی لحاظ سره دا دواړه حضرات مستحکم او مالداران دی

(۱) كشف البارى: ۲۰۳/۲.
(۲) عمدة القارى: ۲۲/۱٤٤ وفتح البارى: ۲۱۷/٦.
(۳) عمدة القارى: ۲۲/۱٤٤ وفتح البارى: ۲۱۷/٦.
(٤) عمدة القارى: ۲۲/۱٤٤ وفتح البارى: ۲۱۷/٦.
(۵) معجم البلدان: ۳۰۷/۲ (المادة: ح.م)
(٦) عمدة القارى: ۲۲/۱٤٤.
(۷) معجم البلدان: ۳۰۸/۲ قوله صلى الله تعالى عليه وسلم: لنعم المنزل الحمى. لولا كثرة حياتة.

هسې نه چه د امارت د وجې په چراګاه کښې دهغوی د څارووزیات رعایت کولوسره د غریبانانو حق اونه وهلې شي ځکه چه د دوی څاروی هلاك هم شي نودخپلو کهجوروود باغونو نه او د فصلونونه هغوی د خپل رزق اومعاش انتظام کولې شي خوچه کوم غریبانانو د یوڅو اوښانو چیلو خاوندان دی که دهغوی څاروی (ګیانه ملاویدو اوخیال نه ساتلود وجې) هلاك شي نوهغوی به خپل اولاد ماله راولي وانی به ای امیرالمؤمنین (مونږ غریبانانو اومحتاج یوتاسو زمونږ دپاره د بیت المال نه وظیفه جاری کړنی)[1] نوآیا هغوی به زه هیرکړم؟ نه (بلکه زه به دهغوی د معاش انتظام کوم) لهٰذا دهغوی د پاره د ګیا اوبوانتظام او آسانی ورکول په سرو زرو او سپینو زرو د هغوی انتظام کولو نه بهتر او آسان دی

حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمائی عبدالرحمن بن عوف او عثمان بن عفان رضي الله عنهما نومونه حضرت عمر رضي الله عنه د مثال په توګه پیش کړی دی ځکه چه په صحابه کرامو کښې دا دواړه حضرات په معاشی لحاظ سره ښه مستحکم اوخوشحال وو[2] د حضرت عمر رضي الله عنه منشاء داوه چه دهغوی څارود څرن د ځائی نه منع کړه یعنی ددوی په څارووو د نورو په مقابله کښې دومره توجو مه ورکود چه دغریبانواو حاجتمندو حق اووهلې شي ځکه چه که د غریبانو څاروی هلاك شي نودهغوی د معاش انتظام کولودپاره به بله لارملاونه شي بغیرددې نه چه مونږ د بیت المال نه د هغوی دپاره په وظیفه باندې امداد اوکړو اوکه د ابن عوف او ابن عفان رضي الله عنهما څاروی هلاك هم شي نوهغوی د خپلو پټوفصلونو اود کهجورو دباغونونه خپل معاشی ضرورت پوره کولې شي[3]

**الصریمة**:- په صاد ضمه او راء باندې فتحه سره دالصرمة تصغیردې. ورو کې رمې ته وائی ددې اطلاق د شلو نه تر دیرشو یا څلویښتو پورې اوښانو اوچیلو رمه باندې کیږی[4]

**الغنیمة**:- داد غنم تصغیردې. ددې لفظ نه هم تقلیل عدد مراددې یعنی د چیلو وړه رمه[5]

**إیای**:- دا لفظ تحذیر دې قیاسًا ایاك وئیل پکاروو ځکه چه دنحوی قاعدې مطابق تحذیر د مخاطب کولې شی او إیای شاذ او قلیل الاستعمال دې. لیکن علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دتحذیر نسبت خپل ځان طرف ته کولوسره دراصل دحضرت عمر رضي الله عنه مقصد هم مخاطب خبردار کول وو او ډیره بلیغ پیرایه هم دغه ده. چنانچه عمدة القاري کښې

---

[1] ) عمدة القاري: ١٤/٤٢٢ — ٤٢٣.

[2] ) دحضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه د مالدارنی قصه مشهوره ده د وفات نه پس چه کله د سرو زرو خښتې دهغه په بیبیانوتقسیم شوې نو د پرې کونکو په لاسونوکښې پولئی جوړې شوې په څلورو بیبیانو کښې هرې یوې ته اتیا اتیا زره اشرفئی ملاؤشوې اوګورئی هزار سال پهلی ص:١٧٧ مؤلف مولانا مناظراحسن ګیلانی.

[3] ) فتح الباري: ٦/٢١٧وعمدة القاري: ١٤/٤٢٢.

[4] ) النهاية لابن الاثير:٣/٢٧(المادة: ص ر م)والكرماني:١٣/٥٥.

[5] ) عمدة القاري: ١٤/٤٢٢.

وكان القياس ان يقول وإياك. لأن هذه اللفظ للتحذير. وتحذير المتكلم نفسه شاذ عند النحاة. ولكنه بالغ فيه من حيث انه حذر نفسه. ومراده تحذير المخاطب. وهو ابلغ [۱]

**قوله** وأيم الله إنهم ليرون أني قد ظلمتهم إنها لبلادهم فقاتلوا عليها في الجاهلية په خدائى هغوى به باوركوى چه ما هغوى سره ظلم كړې دې ځكه چه دا زمكې هم د هغوى علاقې دى د جاهليت په زمانه كښې هغوى د دې دپاره جنګونه كړى دى علامه عينى رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله تحرير فرمائى چه د دې خلقو نه عبدالرحمن بن عوف او عثمان بن عفان رضي الله عنهما نه بلكه عام اهل مدينه مراد دى [۲]

**قوله** وأسلموا عليها في الإسلام - او اسلام راوړلونه پس د هغوى په زمكو باندې د هغوى ملكيت په ځائى اوساتلې شو

**قوله** والذي نفسي بيده لولا المال الذي أحمل عليه في سبيل الله ما حميت عليهم من بلادهم شبرًا - د هغه ذات قسم د چا په قدرت كښې چه زما ځان دې كه هغه مال نه وو كوم چه په جهاد كښې د سورلئې په كارراځى نو ما به د هغوى په علاقو كښې په يولښت زمكه باندې هم چراګاه نه جوړوله. د دغه مال نه هغه اوښان او اسونه مراد دى كوم چه په جهاد كښې د سورلئې په كار راځى. د حضرت عمر رضي الله عنه په دورخلافت كښې په مختلف ميدانونو او چراګاهونو كښې په څلويښت زره اوښان او اسونه څريدل [۳]

**ترجمة الباب سره دحضرت عمر رضي الله عنه د اثر مناسبت باندې اشكال** - امام بخارى رحمه الله د حضرت عمر رضي الله عنه په مذكوره اثر كښې إنها لبلادهم فقاتلوا عليها في الجاهلية، وأسلموا عليها في الإسلام سره ترجمة الباب ثابت كړې دې. ليكن حقيقت داد دې چه ترجمة الباب سره د دې اثر هيڅ مناسبت نشته نه دا اثر د احنافو خلاف مستدل جوړيدې شى ځكه چه اهل مدينه اهل صلح وو په اثركښې د ربذه د چراګاه ذكردې دا د مدينې په حدود كښې شامل وو مونږ وړاندې خودلې دى چه د اهل صلح منقوله اوغيرمنقوله املاك په اتفاق سره غنيمت نه شى جوړيدې د دې دپاره إنها لبلادهم فقاتلوا عليها في الجاهلية، وأسلموا عليها في الإسلام نه د حضرت عمر رضي الله عنه دا وو چه د مدينې اوسيدونكو اهل اسلام سره صلح كړې وه اود اسلام راوړلونه پس د هغوى په زمكو باندې د هغوى ملكيت په ځائى ساتلې شوې وو لهذا اوس به هم دا ملكيت په ځائى وى

بل دا چه د اهل مدينه په كومه حصه زمكه باندې حضرت عمر رضي الله عنه د څرن ځائى جوړ كړې وو هغه شاړه او خرابه زمكه وه. حضرت عمر رضي الله عنه دا په كار راوستلوسره د څاروو د څرن دپاره خاص كړې وه په دې وجه هغه د مسلمانانو د عام مفاد دپاره د حكومت په كنټرول كښې راوستلې شوه شرعًا حاكم وخت ته د دې اختيارحاصل دې. بفرض محال كه داخبره اومنلې

---

[۱] فتح البارى: ۶/۲۱۷ وعمدة القارى: ۱۴/۴۲۲.

[۲] عمدة القارى: ۱۴/۴۲۳ وفتح البارى: ۶/۲۱۸.

[۳] عمدة القارى: ۱۴/۴۲۳.

نى چه مدينه عنوة فتح شوې وه نو بيا هم د دې اثر نه دا نه ثابتيږى چه د فتح نه وړاندې د مدينې اسلام راوړونكو خلقو به د خپلو جائيدادونو باندې د دعوى ملكيت او تصرف په حق كښې مستحق شوى وو.

ځكه چه علامه ظفر احمد عثمانى رحمه الله تحرير فرمائى: ولا حجة فيه أصلا - أى فى أثر عمر رضى الله عنه - فإن الربذة من عمل المدينة كما قاله المجد، وأهل المدينة قد أسلموا عفوا وطوعا وكانت أموالهم. وهذا معنى قول عمر: وأسلموا عليها فى الإسلام ولا نزاع فى أهل الصلح........ وإن سلمنا أنها فتحت عنوة فلا دليل أن بعض أهلها قد أسلموا قبل الفتح وأقروا على أرضهم وديارهم، ومن ادعى فليأت على ذلك ببرهان.[1]

**د حضرت انورشاه كشميرى رحمه الله اشكال** حضرت علامه انورشاه كشميرى رحمه الله عجيبه نكته بيان كړې ده د امام بخارى رحمه الله په مذكوره ترجمه باندې اشكال كولو سره فرمائى چه د حضرت عمر رضى الله عنه د دې اثر ترجمه سره هيڅ مناسبت نشته د ترجمة الباب لاندې چه كومه زيربحث ده هغه د دارالكفر د بعض خلقو مسلمانان كيدو سره متعلق ده او د حضرت عمر رضى الله عنه اثر هغه دارالكفر سره متعلق دې چرته چه اوسيدونكى ټولو اسلام راوړلې وى.[2] بلكه دا خبره ده چه د كوم دارالكفر والا په اجتماعى توګه باندې مسلمانان شوې وى نو د مجاهدين اسلام د حملې كولو وجه نه د دعوى املاك غنيمت جوړولو په اتفاق سره اجازت نشته په دې كښې د يو امام اختلاف نشته

فيض البارى كښې دى: قاتلوا عليها فى الجاهلية وأسلموا عليها فى الإسلام فيه دليل على كون تلك الأراضى مملوكة لهم، وذا لا يرد علينا، لأن المتبادر منه أنهم أسلموا كلهم، ومسألتنا فيما إذا أسلم قوم، وبقى الكفر من حولهم.[3] حضرت شيخ الحديث رحمه الله هم دغه خبره فرمائيلې ده.[4]

**د مذكوره اثر تخريج** امام بخارى رحمه الله نه علاوه د حضرت عمر رضى الله عنه مذكوره اثر امام مالك رحمه الله هم په موطا كښې روايت كړې دې.[5] ليكن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دا اثر په موطا امام مالك رحمه الله كښې مروى نه دې وهذا الحديث ليس فى الموطا.[6]

په دې باندې رد كولو سره حافظ زرقانى رحمه الله إن هذا لشئ عجاب تحرير فرمائيلو سره د تعجب اظهار كړې دې چه دا اثر امام مالك رحمه الله په موطا كښې روايت كړې دې د دې نه باوجود حافظ ابن حجر رحمه الله څنګه انكار كوى.[7] د حافظ ابن حجر رحمه الله دفاع كولو سره حضرت شيخ الحديث رحمه الله تحرير فرمائى: ويمكن الاعتذار عن الحافظ أنه يمكن أن يكون فى نسخته من الموطا.[8]

---

[1] إعلاء السنن: ۱۲/۱۴۳.
[2] الابواب والتراجم ص: ۲۰۳.
[3] فيض البارى: ۳/۴۵۶.
[4] الابواب والتراجم: ص:۲۰۳.
[5] موطا امام مالك رحمه الله ۲/۱۰۰۳ فى دعوة المظلوم. باب ماينقى من دعوة المظلوم.
[6] فتح البارى: ۶/۲۱۸.
[7] أوجز المسالك للمحدث محمدزكريا الكاندهلوى: ۱۵/۳۷۱.
[8] أوجز المسالك للمحدث محمدزكريا الكاندهلوى: ۱۵/۳۷۱.

یعنی دُحافظ صاحب دُ طرف نه دا عذر پیش کولې شی چه دهغوی زیرنظر موطا کومه نسخه وه ممکن دی چه په هغې کښې دا اثر نه وی

**دُ روایت باب نه مستنبط فوائد** - علامه مهلب رحمه الله دُ روایت باب نه دا فوائد مستنبط کړی دی.

① حاکم وخت له پکار دی چه هغه شاړې بنجر زمکې دُمفاد عامه دَپاره په کار راولی (۱)

② که دُ غریبانانو دَ حق وهلو اندیښنه وی نو دَهغوی دُ فائدې دُ خاطره مالدارانو ته معمولی شان نقصان رسولو کښې هیڅ بدیت نشته. (۲) لکه څنګه چه حضرت عمر رضی الله عنه په دې اثر کښې هنی ته هدایت ورکولو سره اوفرمائیل که دَمالدارانو څاروو ته نقصان هم اورسی نو دَهغوی په حق کښې دا څه لوئی نقصان نه دې هغوی سره دَمعاش نورې هم ذرائع موجود دی ولې دَغریبانانو دَ معاش ذریعه هم دغه څاروی دی په دې وجه دَهغوی خیال ساته.

③ کوم ځائی چه دُ څاروو ډنګرودَ څرن دَپاره خاص وی په هغې باندې دَهغه ځائی دُ اوسیدونکو حق دې. په دغه زمکه باندې چه هغوی ته دُ خپلو څاروو دُ څرن آسانی ده حاکم وخت دې هغوی دَ دغه آسانتیا نه نه محروم کوی (۳)

## باب ۱۷۷: کتابة الامام الناس

النَّاس:- دامنصوب دې ځکه چه کتابة دَ مصدر اضافت فاعل طرف ته دې اودا دَدې مفعول دې ینصب الناس علی أنه مفعول للمصدر المضاف إلی فاعلة. (۴)

**دُ ترجمة الباب مقصد**:- علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی چه دې باب قایمولو سره امام بخاری رحمه الله دُ هغه عقیدې تردید کوی چه په مردم شمارئی سره برکت اوچتیږی. یعنی داګنړل چه په مردم شمارئی سره برکت اوچتیږی غلطه ده. دَغزوه حنین په موقع دُ برکتونو اوچتولو واقعه دُ اعجاب نفس دُ وجه نه شوې وه. (۵)

ګنی فی نفسه په مردم شمارئی کښې دَ دین اسلام دَپاره په ښوحوالوسره مختلف فوائد پټ دی. مثلاً هم دغه چه دُ مستحق او ضرورت مندو کسانودَپاره دَ وظائف جاری کول دَمردم شمارئی نه بغیر ډیر ګران دی. که چرې مردم شماری اونه کړې شی نودَ بیت المال په اخراجات کښې عدم توازن اودَ وظائف په جاری کولو کښې به بې قاعدګی پاتې شی.

[حدیث ۲۸۹۵] (۶) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الأَعْمَشِ عَنْ أَبِي وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «اكْتُبُوا لِي مَنْ

---

(۱) شرح ابن بطال: ۵/۲۱۹ — ۲۲۰.

(۲) شرح ابن بطال: ۵/۲۱۹ — ۲۲۰.

(۳) شرح ابن بطال: ۵/۲۱۹ — ۲۲۰.

(۴) عمدة القاری: ۱۴/۴۲۳.

(۵) المتواری ص: ۱۷۹ وفتح الباری: ۶/۲۲۰ والابواب والتراجم: ص: ۲۰۴.

(۶) وأیضًا الحدیث عندمسلم فی صحیحه: ۱/۸۴ فی کتاب الایمان باب جواز الا ستسرار بالایمان للخائف رقم: ۳۷۷ وعند ابن ماجه فی سننه ص: ۲۹۱ فی الفتن، باب الصبرعلی البلاژی رقم: ۴۰۲۹.

تَلَفَّظَ بِالإِسْلَامِ مِنَ النَّاسِ » . فَكَتَبْنَا لَهُ أَلْفًا وَخَمْسَمِائَةِ رَجُلٍ ، فَقُلْنَا نَخَافُ وَنَحْنُ أَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ فَلَقَدْ رَأَيْتُنَا ابْتُلِينَا حَتَّى إِنَّ الرَّجُلَ لَيُصَلِّي وَحْدَهُ وَهُوَ خَائِفٌ.

## رجال الحديث

① **محمدبن يوسف** - دا محمدبن يوسف بن واقدضبى فريابى رحمه الله دي دَدوى حالات كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم يتخولهم بالموعظة لاندې تيرشوى دى

② **سفيان** - دا مشهورمحدث سفيان بن عيينه بن ابى عمران هلالى كوفى رحمه الله دي دَدوى حالات كتاب الايمان لاندې اجمالاً (١) او كتاب العلم لاندې تفصيلاً تير شوى دى (٢)

③ **الاعمش** - دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دي دَاعمش په لقب سره مشهوردې. دَدوى حالات كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم لاندې تيرشوى دى (٣)

④ **ابووائل** - دا مشهور تابعى ابووائل شقيق بن سلمه اسدى كوفى رحمه الله دي دَدوى حالات كتاب الايمان باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله لاندې تيرشوى دى (٤)

⑤ **حذيفه رضي الله عنه** - دامشهورصحابى ابوعبدالله حذيفه بن اليمان رضي الله عنه دي دَدوى حالات كتاب العلم لاندې تفصيل سره تيرشوى دى (٥)

**قوله**: اكتبوالى من تلفظ بالاسلام من الناس - په روايت كښې دى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ماته دَ مسلمانانو شمير ليكلې راكړه. په صحيح مسلم كښې دا روايت دَ ابومعاويه په طريق سره نقل دې. په هغې كښې اكتبوا په خائى أحصوا دې. (٦) په دې لفظ كښې دمعنى لحاظ سره ډيرعموم دې. دَ صحيح مسلم په دې روايت كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمانيلى دى إنكم لاتدرون لعلكم أن تبتلوا. (٧) يعنى تاسو نه پيژنئى كيدې شى فتنوكښې اخته شئى دَ صحيح بخارى په حديث باب كښې دا جمله نشته.

**قوله**: فكتبناله ألفاً وخمساة رجل - حضرت حذيفه رضي الله عنه وائى چه مونږ دَ يوزر پنځوسوو مسلمانانو نومونه اوليكل اودَ حضورپاك په خدمت كښې مو پيش كړل.

**قوله**: فقلنا نخاف، ونحن ألف وخمساة - فقلنا نخاف..... دا استفهام تعجب دې. نخاف

---

(١) كشف البارى: ٢٣٨/١

(٢) كشف البارى: ٨۶/٣.

(٣) كشف البارى: ٢٥١/٢.

(٤) كشف البارى: ٥٥٩/٢.

(٥) كشف البارى: ٩٢/٣.

(٦) الصحيح مسلم: ٨٤/١ كتاب الايمان باب جواز الاستسرار بالايمان للخائف كما مر آنفاً.

(٧) الصحيح لمسلم: ٨٤/١وعمدة القارى: ٤٢٤/١٤ وفتح البارى: ٢١٩/۶.

نه وړاندې هل مقدر دې (۱) مطلب دادې چه آيا يونيم زر نفوسو باندې مشتمل كيدو باوجود به مونږ ويره محسوس كوو؟ يعنى د دومره غيرمعمولى كثرت باوجود به مسلمانان ولې په ويره او دهشت كښې راګيرېږى؟

**د مردم شمارنې واقعه كله پيښه شوه؟** شارحينو په دې كښې مختلف اقوال نقل كړى دى
① يوقول دادې چه د مردم شمارنې واقعه ممكن ده چه غزوه احدته د تللو دپاره پيښه شوې وى (۲)
② علامه ابن التين رحمه الله د وثوق سره فرمائيلى دى چه دا واقعه د غزوه خندق په موقع د خندق د كنستلو وخت كښې پيښه شوې (۳)
③ د علامه داؤدى رحمه الله رائې ده چه دا د حديبيه په موقع پيښه شوې ځكه چه د شميرې باره كښې د صحابه كرامو په مينځ كښې اختلاف هم په دې مقام باندې شوې وو د بعض صحابه كرامو رائې وه چه تول كسان يونيم زر دى او بعضو وئيل چه زر دى (۴)

**قوله** فلقد رأيتنا ابتلينا حتى إن الرجل ليصلي وحده وهو خائف - رأيتنا په دې كښې نا باندې ضمه ده او دمتكلم صيغه ده تقديرعبارت دادې **فلقدرأيت نفسنا** بعض رواياتوكښې رأينا نقل دى (۵) مونږ خپل ځان فتنوكښې راګير كړو ترڅو چه سړې ځان له مونځ كولو سره هم ويرېږى علامه كرمانى رحمه الله او علامه عينى رحمه الله فرمائى چه په روايت كښې دويرې دكوم كيفيت تذكره كړې شوې ده هغه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس زمانې سره متعلق ده (۶)

**روايت كښې په ابتلاء سره دكومې فتنې طرف ته اشاره ده؟**: په روايت كښې ويره او ابتلاء نه كومو فتنوطرف ته اشاره ده؟ په دې سلسله كښې د شارحينو حضراتو مختلف اقوال ذكرشوى دى ① دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې ده چه دې نه د حضرت عثمان رضي الله عنه د دورخلافت په آخرى ورځوكښې د وليد بن عقبه او دكوفې دنورو امراؤ بې اعتداليانو طرف ته اشاره ده وليدبن عقبه به مونځ د وخت نه روستو كولو يا دا چه د مانځه د سنتو او آدابو خيال به ئې نه ساتلو د وليد بن عقبه او د ده په شان داسې نورو امراؤ د غلط تګ د وجې نه څه نيكان خلق داسې وو چه د هغه په اقتداء كښې به ئې مونځ كول مكروه ګڼړل داسې خلقو به اول په پټه ځان له مونځ كولو او روستو دعقبه د قهر اوغضب اوعتاب نشانه جوړيدو او فتنه كښې د راګيريدو د ويرې په دويم خل دهغه په اقتداء كښې مونځ كولو

---

۱) شرح الكرمانى:۱۳/۵۶وعمدة القارى:۱۴/۲۲۴ وقسطلانى:۵/۱۷۵.
۲) عمدة القارى:۱۴/۲۲۴وفتح البارى:۶/۲۱۹ وإرشادالسارى للقسطلانى:۵/۱۷۵.
۳) عمدة القارى:۱۴/۲۲۴وفتح البارى:۶/۲۱۹ وإرشادالسارى للقسطلانى:۵/۱۷۵.
۴) عمدة القارى:۱۴/۲۲۴وفتح البارى:۶/۲۱۹ وإرشادالسارى للقسطلانى:۵/۱۷۵.
۵) شرح الكرمانى رحمه الله ۱۳/۵۶.
۶) شرح الكرمانى:۱۳/۵۶وعمدة القارى:۱۴/۲۲۴.

حافظ ابن حجر رحمه الله تحرير فرمائي فیشبه أن يكون أشار بذلك الى ماوقع فی أواخر خلافة عثمان من ولاية بعض امراء الكوفة كالوليد بن عقبة حيث كان يؤخر الصلوة أولا يقيمها على وجهها، وكان بعض الورعين يصلى وحده سرًا، ثم يصلى معه خشية من وقوع الفتنة [1]

② يوقول دادي چه دي نه دحضرت عثمان رضی الله عنه د يوسفر طرف ته اشاره ده په دغه سفر كښې هغوى د قصر مونځ په خاني پوره مونځ كړې وو اود سفر ملګروچه د حضرت عثمان رضی الله عنه دا طرز عمل اوليدلو نو دهغوى دويرې نه به ئي په پټه قصر هم كولو. مطلب دادې چه د حضرت عثمان رضی الله عنه په اقتداء كښې به پوره كولو خوروستوبه ئي دهغه نه په پټه قصر هم كولو

③ د امام نووى رحمه الله رائې ده چه ددې نه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس ښكاره كيدونكې فتنو طرف ته اشاره ده دا فتنې دومره خطرناكې وې چه خلقو به د ويرې د وجې نه خپل خان پټولو او د مونځ په شان اهم عبادت به ئي پټ ادا كولو چه چرته د فتنې او قتل او فساد ښكاره نه شي [2]

حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ أَبِي حَمْزَةَ عَنِ الْأَعْمَشِ فَوَجَدْنَاهُمْ خَمْسَمِائَةٍ. قَالَ أَبُو مُعَاوِيَةَ مَا بَيْنَ سِتِّمِائَةٍ إِلَى سَبْعِمِائَةٍ. [3]

## رجال الحديث

① **عبدان:**- دا عبدالله بن عثمان بن بجله دې عبدان په لقب سره مشهور دې ددوى حالات كتاب الايمان بدء الوحى لاندې تيرشوى دى [4]

② **ابوحمزه:**- دا ابوحمزه محمد بن ميمون اليشكرى دې. ددوى حالات كتاب الغسل باب نقض اليدين من الغسل لاندې تيرشوى دى.

③ **عمش:**- دا ابومحمد سليمان بن مهران اسدى كوفى رحمه الله دې. داعمش په لقب سره مشهور دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب ظلم دون ظلم لاندې تيرشوى دى [5]

**قوله: قال ابومعاويه:**- دا ابومعاويه محمد بن خازم التميمى دې. ددوى حالات كتاب العلم باب الحياء فى العلم لاندې تير شوى دى [6]

**د مذكوره تعليق تخريج:**- دا تعليق امام مسلم رحمه الله كتاب الايمان باب الاستسرار بالايمان للخائف

---

[1] ) فتح البارى: ٢١٩/٦.
[2] ) شرح النووى على صحيح مسلم: ٨٤/١ وشرح الكرمانى: ٥٦/١٣ وعمدة القارى: ٤٢٤/١٤.
[3] ) قوله: حدثنا عبدان...... تفرد به البخارى رحمه الله. أنظر تحفة الاشراف للحافظ المزى رحمه الله ٣٨/٣ رقم: ٣٣٣٨.
[4] ) كشف البارى: ٤٦١/١.
[5] ) كشف البارى: ٢٥١/٢.
[6] ) كشف البارى: ٦٠٥/٤.

لاندې. امام نسائی رحمه الله سنن کبری کښې کتاب السیر باب أحصاء الامام الناس لاندې او امام ابن ماجه رحمه الله خپل سنن کښې کتاب الفتن باب الصبر علی البلاء لاندې موصولاً نقل کړې دې [۱].

**د روایت باب او مذکوره تعلیق مقصد** - د امام بخاری رحمه الله مقصد دا خودل دی چه ترجمة الباب په رومبی روایت کښې په کوم طریق سره سفیان بن عیینه رحمه الله د اعمش رحمه الله نه حدیث روایت کړې دې هم په دغه طریق سره ابوحمزه رحمه الله او ابومعاویه رحمه الله هم د اعمش رحمه الله نه نقل کړې دې خودې دواړو د سفیان بن عیینه رحمه الله نه اعداد وشمار مختلف ذکرکړی دی [۲] سفیان بن عیینه رحمه الله یوزر پنځه سوه او ابوحمزه رحمه الله پنځه سوه او ابومعاویه رحمه الله شپږسوه نه تر اووه سوو پورې عدد ذکرکړې دې چونکه سفیان بن عیینه رحمه الله په حفظ اتقان او ثقاهت کښې په نورو محدثینو فوقیت لری بل دا چه د ثقه راوی زیادت هم معتبردې. په دې وجه امام بخاری رحمه الله د ابن عیینه زیادت فی العدد والا روایت ته ترجیح ورکولو سره مقدم اوساتلو [۳].

علامه اسماعیلی رحمه الله فرمائی چه یحیی بن سعید اموی او ابوبکربن عیاش رحمه الله د ابوحمزه رحمه الله موافقت کښې د پنځوسوو عدد ذکرکړې دې. په دې باندې حافظ بن حجر رحمه الله فرمائی چه تعارض حفظ اواتقان او اکثریت په مینځ کښې دې. یعنی یوطرف ته ابوزحمزه. یحیی بن سعید او ابوبکر بن عیاش رحمهم الله دې چه د پنځوسوو عدد نقل کولو کښې متفق دی الفظ اکثریت نه هم دې حضراتو د اتفاق طرف ته اشاره کړې ده، خو د مذکوره دریواړو حضراتو په مقابله کښې احفظ دې لکه چه تعارض دلته په احفظیت او اکثریت کښې دې. د دې نه د امام بخاری رحمه الله رحجان هم معلومیږی یعنی د تعارض په صورت کښې هغه چونکه حفظ ته ترجیح ورکوی په دې وجه دلته هم امام بخاری رحمه الله د احفظ کیدو د وجې امام ابن عیینه رحمه الله روایت ته ترجیح ورکړې ده او اکثریت یعنی ابوحمزه یحیی بن سعید او ابوبکربن عیاش رحمهم الله روایات ئې مرجوح گرځولی دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله تحریرفرمائی: وأما ما ذكره الا سماعيلى أن يحيى بن سعيد الاموى وأبابكر بن عياش وافقا أبا حمزة فى قوله: خمسمائة فتعارض الاكثرية والاحفظية، فلا يخفى بعد ذلك الترجيح بالزيادة، وبهذا يظهر نظر البخارى على غيره. [۴]

**د یو اشکال جواب**:- دلته دا اشکال کیدې شی چه امام بخاری رحمه الله که چرې د ثقه د زیادت اعتبارکولو سره د سفیان بن عیینه رحمه الله روایت ته ترجیح ورکړه نو بیا امام مسلم رحمه الله د ابومعاویه رحمه الله روایت ته ولې ترجیح ورکړه؟

علامه عینی رحمه الله او حافظ ابن حجر رحمه الله د دې دا جواب ورکړې دې چه د اعمش په شاگردانو

---

[۱]) السنن الكبرى للامام النسائى:۲۷۶/۵ رقم:۸۸۷۵ صحيح مسلم:۸٤/۱ كتاب الايمان باب جواز الاستسرار بالايمان للخائف.وسنن ابن ماجه ص:۲۹۱ فى أبواب الفتن.

[۲]) عمدة القارى:۲٤۲٤/۱٤ وفتح البارى:۲۱۹/٦.

[۳]) عمدة القارى:۲٤۲٤/۱٤ وفتح البارى:۲۲۰/٦ وإرشادالسارى:۱۷۵/۵.

[۴]) فتح البارى:۲۲۰/٦.

کښې ابومعاویه دَ حفظ او اتقان په لحاظ سره زیات ممتاز وو په دې وجه امام مسلم رحمه الله دَ هغه روایت ته ترجیح ورکړه او سفیان بن عیینه رحمه الله دَ اعمش رحمه الله په تلامذه سره په ټولو محدثینو باندې فائق دې په دې وجه امام بخاری رحمه الله دَ هغه روایت ته ترجیح ورکړه (۱)

**په اعدادکښې تعارض اودهغې حل** - اعداد اوشمیر مختلف خودونکي دي دریواړو روایاتو کښې تطبیق ورکولوسره شارحین حضرات مختلف اقوال نقل کوی ① علامه داؤدی رحمه الله فرمائی **لعلهم کتبوا فی مواطن** یعنی ممکن ده چه دَ مردم شمارنې دا واقعه په مختلفو مقاماتو باندې دیرخل پیښه شوې وی په داسې صورت کښې ښکاره خبره ده چه دکسانو دَ زیاتیدو او کمیدو سره اعداد اوشمیر مختلف کیدل بالکل ممکن دی (۲)

② بعضو داتطبیق ورکړې دې چه په کومو روایتونوکښې دَ یوزر پنځوسوو عدد ذکرشوې دې دې نه مسلمانان سړی ښځې ماشومان او غلامان ټول مراددی (۳)

او په کومو روایاتوکښې چه دَ پنځو سوو عددذکرکړې شوې دې دَهغې نه صرف مجاهدین مراددی. دغه شان چه کومو روایاتوکښې شپږ سوو نه اووه سوو پورې دَعدد بیان شوې دې دَهغې نه صرف سړی مراددی (۴)

**په دویم تطبیق باندې دَامام نووی رحمه الله رد**:- لیکن دویم تطبیق ردکولوسره امام نووی رحمه الله فرمائی چه کله روایاتو کښې **ألف وخمسماۃ رجل** کښې دَ رجل تصریح موجود ده نودَدې اطلاق په ښځو ماشومانو اوغلامانوباندې صحیح نه دې.

③ امام نووی رحمه الله فرمائی چه صحیح تطبیق دادې چه کومو راویانودَ اووه سوو عدد روایت کړې دې دَهغې نه خصوصاً دَمدینې رجال یعنې سړی مراد دی اوکومو راویانوچه دَ یوزر پنځوسوو عدد ذکرکړې دې دَهغې نه دَ مدینې دَ رجالوسره مدینې سره ملحق ځایونو اوکلو مسلمانان اوسیدونکی هم مراد دی.

چنانچه امام نووی رحمه الله تحریر فرمائی: **وقد یقال: وجه الجمع بین هذه الالفاظ أن یکون قولهم ألف وخمسماۃ المراد به النساء والصبیان والرجال، ویکون قولهم ست ماۃ إلی سبع ماۃ الرجال خاصة، ویکون خمسماۃ المراد به المقاتلون، ولکن هذا الجواب باطل بروایة البخاری فی أواخر کتاب السیر فی باب کتابة الامام الناس، فان فیها: فکتب له ألفا وخمس ماۃ رجل. والجواب الصحیح - إن شاء الله - أن یقال: لعلهم أرادوا بقولهم مابین الستماۃ إلی السبعماۃ رجال المدینة خاصة، وبقولهم: فکتبناله ألفاوخمسماۃ هم مع المسلمین حولهم** (۵)

---

۱) عمدة القاری: ۱٤/ ٤۲٤ وفتح الباری: ٦/ ۲۲۰.
۲) فتح الباری: ٦/ ۲۲۰ وعمدة القاری: ۱٤/ ٤۲٥.
۳) فتح الباری: ٦/ ۲۲۰ وعمدة القاری: ۱٤/ ٤۲٥ وإرشادالساری: ٥/ ۱۷٥.
٤) فتح الباری: ٦/ ۲۲۰ وعمدة القاری: ۱٤/ ٤۲٥ وإرشادالساری: ٥/ ۱۷٥.
٥) شرح النووی علی صحیح مسلم: ۱/ ۸٤ کتاب الحج باب جواز الاستسرار بالایمان للخائف.

د علامه کرمانی رحمه الله د صنیع نه معلومیږی چه دهغوی په نیزد امام نووی رحمه الله مذکوره تطبیق راجح دي (۱) علامه کرمانی رحمه الله په دویم تطبیق باندې رد کولوسره فرمائیلی وو چه په حدیث باب کښې دِرجل تصریح موجود دی په دې وجه داسې ونیل صحیح نه دی چه دې نه ښځې ماشومان او غلامان مراد دی علامه عینی رحمه الله هغه پسې لیکلی دی سره فرمائی چه دا رد پخپله محل نظر دی ځکه چه د رجل اطلاق په عبید او صبیان باندې هم کیږی (۲)

**ترجمة الباب سره دحدیث باب مناسبت** روایت کښې کتابت یعنی دمردم شمارنی ذکر دی ترجمة الباب سره ددې مناسبت ښکاره دی

احدیث ۲۸۹۶ (۳) حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي كُتِبْتُ فِي غَزْوَةِ كَذَا وَكَذَا، وَامْرَأَتِي حَاجَّةٌ. قَالَ «ارْجِعْ فَحُجَّ مَعَ امْرَأَتِكَ». [ر: ۱۷۶۳]

## رجال الحدیث

① **ابونعیم** - دامشهور محدث ابونعیم الفضل بن دکین الملائی الکوفی رحمه الله دي ددوی حالات کتاب الایمان باب فضل من استبرأ لدینه کښې تیرشوی دی (۴)

② **سفیان** - دترجمة الباب د رومبی حدیث لاندې د دوی حواله تیره شوې ده.

③ **ابن جریج** - دا عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج اموی رحمه الله دي ددوی تذکره کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله لاندې تیره شوې ده

④ **عمروبن دینار** - داابومحمد عمرو بن دینار الجرحی رحمه الله دي ددوی تذکره هم کتاب العلم باب العلم والعظة باللیل کښې تیره شوې ده (۵)

⑤ **ابومعبد** - دادحضرت ابن عباس رضی الله عنهما آزادکړې شوې غلام ابومعبد نافذ المکی رحمه الله دي ددوی حالات کتاب الاذان باب الذکر بعد الصلوة لاندې تیرشوی دی.

⑥ **ابن عباس** - دامشهورصحابی درسول صلی الله علیه وسلم د تره خوئی حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما دي ددوی حالات بدء الوحی (۶) بل د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه نیغ په نیغه د هغوی د مرویاتو تعداد سره

---

(۱) شرح الکرمانی: ۱۳/۵۷.

(۲) عمدة القاری: ۱۴/۵۲۵ قال العلامة العینی رحمه الله الحکم ببطلان الوجه المذکور لایخلو عن نظر. لان العبید والصبیان یدخلون فی لفظ: الرجل فتامل: والله أعلم.

(۳) قد سبق تخریج الحدیث فی کتاب جزاء الصیدباب حج النسا رقم: ۱۸۶۲.

(۴) کشف الباری: ۲/۶۶۹.

(۵) کشف الباری: ۴/۳۰۹.

(۶) کشف الباری: ۱/۴۳۵ - ۴۳۷.

متعلق بحث کتاب الایمان باب کفران العشیر وکفر دون کفر لاندې تیرشوی دی (۱)

جاء رجل إلى النبی صلى الله تعالى علیه وسلم فقال یا رسول الله! إنی کتبت فی غزوة کذا وکذا وامرأتی حاجة قال: أرجع فحج مع امرءتك:- حضرت ابن عباس روایت کوی چه یوسړی رسول الله ﷺ له راغلو اوعرض ئې اوکړو یا رسول الله! زما نوم په فلانکی فلانکی جهاد کښې لیکلې شوې دې اوزما ښځه دحج د پاره وتلې ده حضورپاك اوفرمائیل زه خپلې ښځې سره حج اوکړه دې روایت سره متعلق بحثونه کتاب الحج باب حج النساء لاندې تیرشوی دی

**ترجمة الباب سره دحدیث باب مناسبت:-** د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په یه دغه روایت کښې إنی کتبت فی غزوة کذا وکذا مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه ددې جملې تعلق ترجمة الباب رومبی روایت لفظ اکتبوا سره دې د کوم نه چه دا ثابتیږی چه د صحابه کرامو عادت وو چه هغوی به د جهاددپاره د وتلونکو نومونه لیکل (۲) د حافظ صاحب ددې استدلال تائید دمذکوره روایت نه کیږی په کوم کښې چه دی یوسړې د حضورپاك په خدمت کښې حاضر شو وئې وئیل زما نوم په فلانکی اوفلانکی غزوه کښې لیکلې شوې دې

## باب ۱۷۸: إن الله یؤید الدین بالرجل الفاجر

**د ترجمة الباب مقصد:-** علامه ابن منیر رحمه الله فرمائی ددې ترجمة الباب نه دامام بخاری رحمه الله مقصد دادې که یوفاجر حاکم داسلام د حفاظت سبب جوړشی نو صرف د فسق اوفجور د وجې نه خروج او بغاوت کولوسره هغه معزول کول جائزنه دی. ځکه چه الله تعالى د فاسق اوفاجر نه هم د دین دخدمت اوتائید کار اخلی. لهذا د داسې حاکم په اقتدار باندې په صبر اوتحمل او شرعی امورو کښې د هغه اطاعت کول واجب دی.

[حدیث ۲۸۹۷] (۳) حَدَّثَنَا أَبُو الْیَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ ح وَحَدَّثَنِی مَحْمُودُ بْنُ غَیْلَانَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَیَّبِ عَنْ أَبِی هُرَیْرَةَ -رضی الله عنه- قَالَ شَهِدْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- فَقَالَ لِرَجُلٍ مِمَّنْ یَدَّعِی الإِسْلَامَ «هَذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ». فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ قِتَالًا شَدِیدًا، فَأَصَابَتْهُ جِرَاحَةٌ فَقِیلَ یَا رَسُولَ اللَّهِ، الَّذِی قُلْتَ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَإِنَّهُ قَدْ قَاتَلَ الْیَوْمَ قِتَالًا شَدِیدًا وَقَدْ مَاتَ. فَقَالَ النَّبِیُّ -صلی الله علیه وسلم- «إِلَى النَّارِ». قَالَ فَکَادَ بَعْضُ النَّاسِ أَنْ یَرْتَابَ، فَبَیْنَمَا

---

۱) کشف الباری: ۲/۲۰۵ – ۲۰۶.

۲) فتح الباری: ۶/۲۲۰.

۳) وأیضا أخرجه البخاری فی صحیحه: ۲/۶۰۴ فی کتاب المغازی باب غزوة خیبر. رقم: ۴۲۰۴ و: ۲/۹۷۷ فی القدر باب العمل بالخواتیم رقم: ۶۶۰۶ ومسلم فی صحیحه: ۱/۷۱ فی کتاب الایمان باب غلظ تحریم قتل الانسان نفسه.

هُمْ عَلَى ذَلِكَ إِذْ قِيلَ إِنَّهُ لَمْ يَمُتْ، وَلَكِنَّ بِهِ جِرَاحًا شَدِيدًا. فَلَمَّا كَانَ مِنَ اللَّيْلِ لَمْ يَصْبِرْ عَلَى الْجِرَاحِ، فَقَتَلَ نَفْسَهُ، فَأُخْبِرَ النَّبِي -صلى الله عليه وسلم- بِذَلِكَ فَقَالَ «اللَّهُ أَكْبَرُ، أَشْهَدُ أَنِّي عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ». ثُمَّ أَمَرَ بِلَالًا فَنَادَى بِالنَّاسِ «إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا نَفْسٌ مُسْلِمَةٌ، وَإِنَّ اللَّهَ لَيُؤَيِّدُ هَذَا الدِّينَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ». [۳۹۶۷، ۶۲۳۲]

## رجال الحديث

① **ابواليمان**:- دا ابواليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى رحمه الله دى. د دوى تذكره بدء الوحى كې تيره شوې ده.[1]

② **شعيب** - دابوبشر شعيب بن ابى حمزه القرشى الاموى رحمه الله دى. د دوى تذكره هم بدء الوحى كښې تيره شوې ده.[2]

③ **زهرى**:- دامشهورمحدث محمدبن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دى. د دوى حالات هم بدء الوحى لاندې تيرشوى دى.[3]

**قوله**: وَحَدَّثَنِي مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ.......

## رجال الحديث

①**محمود بن غيلان**:- دامحمود بن غيلان العدوى رحمه الله دى. د دوى حالات كتاب **مواقيت الصلوة باب النوم قبل العشاء** لاندې تيرشوى دى.

② **عبدالرزاق**:- داابوبكر عبدالرزاق بن همام بن نافع صنعانى يمانى رحمه الله دى. د دوى حالات كتاب الايمان باب حسن إسلام المرء لاندې تيرشوى دى.[4]

③ **زهرى**:- دامشهورمحدث عبدالله بن شهاب زهرى رحمه الله دى. د دوى حالات بدء الوحى لاندې تيرشوى دى.[5]

④**المسيب**:- داامام التابعين سعيدبن المسيب بن حزن بن ابى وهب بن عمرو بن عائذ بن عمران بن مخزوم بن مره قرشى مخزومى رحمه الله دى. د دوى تفصيلى تذكره **كتاب الايمان باب من قال ان الايمان هوالعمل** لاندې تيره شوې ده.[6]

---

[1]) كشف البارى: ۱/۴۷۹ - ۴۸۰.

[2]) كشف البارى: ۱/۴۸۰.

[3]) كشف البارى: ۱/۳۲۶.

[4]) كشف البارى: ۲/۴۲۱.

[5]) كشف البارى: ۱/۳۲۶.

[6]) كشف البارى: ۲/۱۵۹ – ۱۶۱.

⑤ ابوهريره رضي الله عنه د دوی حالات هم کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تفصیل سره تیرشوی دی (۱)

**قوله** وحدثني محمود.......... دا تحویل سند دې ددې خانی نه امام بخاري رحمه الله خپل دویم سند ذکرکړې دې

**قوله** شهدنا مع رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم فقال لرجل ممن يدعي الاسلام: هذا من أهل النار - حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائی چه مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په يوه غزوه کښې شرکت اوکړو دې نه غزوه خيبرمراددې يوسړې چه خپل ځان ئې مسلمان ښکاره کولو حضورپاك دهغه باره کښې اوفرمائيل دا جهنمي دې په دې روايت سره حضرت ابوهريره رضي الله عنه د غزوه دنوم تصريح نه کړه هم دغه روايت امام بخاري رحمه الله کتاب المغازی کښې هم نقل کړې دې هلته شهدنا خيبر تصريح موجود ده (۲)

وړاندې روايت کښې دی: فلما حضر القتال قاتل الرجل قتالا شديدا فاصابته جراحة، فقيل يارسول الله! الذي قلت إنه من أهل النار، فانه قد قاتل اليوم قتالا شديدًا وقد مات، فقال رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم: إلى النار.

کله چه جنګ شروع شو هغه سړې ډیر په تیزئی سره اوجنګیدو او زخمي شو صحابه کرامو عرض اوکړو یارسول الله ! د کوم سړی باره کښې چه تاسو ارشاد فرمائيلي چه دا جهنمي دې هغه خو نن ډير په تيزئی سره اوجنګيدو او مړ هم شو حضورپاك اوفرمائيل هغه جهنم ته اورسيدو.

په حقيقت کښې چه کله هغه د اسلام د طرف نه ډير په بهادرئی او بې خيالئی سره اوجنګيدو زخمي شو او په ظاهره دهغه د مرګ یقین هم اوشو نو صحابه کرامو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پيشنګوئی متعلق تذبذب کښې راګيرشو ځکه چه دهغوی په خيال د مسلمانانو د طرف نه جنګيدو سره بهادری خودلوسره هغه د شهادت درجه حاصله کړې وه.

**قوله** حضر القتال:- قتال مرفوع او منصوب دواړه شان لوستل صحيح دی. د رفع په صورت کښې قتال دحضر فاعل دې د نصب په حالت کښې به د حضرفاعل ضميروی چه دهغه سړی طرف ته به راجع وی اوقتال به مفعول وی. (۳) حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کښې نور فرمائی: فكاد الناس أن يرتاب.............. نيزدې وه چه خلق په شك اوشبه کښې اخته شوې وې په دې وخت کښې چا اووئيل هغه مړ نه دې خو دهغه زخم ژور دې کله چه شپه شوه نود زخمونو طاقت نه راوړلوسره هغه خودکشی اوکړه حضورپاك ته د دغه واقعه خبر ورکړې

---

۱) كشف الباري: ١/٦٥٩- ٦٦٣.

۲) صحيح البخاري: ٢/٦٠٤ كتاب المغازی باب غزوة خيبر رقم: ٤٢٠٤.

۳) شرح الكرماني: ١٣/٥٨ وعمدة القاري: ١٤/٤٢٦ وفتح الباري: ٧/٦٠١.

شو نو ونى فرمائيل الله اكبر انى عبدالله ورسوله بيا حضورپاك حضرت بلال رضی الله عنه ته دَدې اعلان كولو حكم اوكړو چه دَ مسلمان نه بغيره هيڅوك جنت ته نه ځى

أن يرتاب يرتاب دكاد خبردې دَ افعال مقاربه په خبر باندې أن ناصبه داخل كيدل قليل الاستعمال دې ليكن بهرحال جائز دې (۱)

**قوله** فقتل نفسه . دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت كښې دى چه هغه خودكشى اوكړه ليكن دا وضاحت نشته چه په څه آله سره نې خودكشى اوكړه. دهغه دا روايت كتاب المغازى كښې هم ذكردې په كوم كښې چه تصريح ده چه هغه په غشى باندې خپل كار تمام كړې وو هم په كتاب المغازى كښې دحضرت سهيل بن سعد رضی الله عنه يو روايت كښې هم دَ خودكشئ ذكردې خوپه هغې كښې دى چه دغه سړى په توره سره خودكشى كړې وه په ظاهره په دواړو كښې تضاد دې كتاب المغازى كښې په دې موضوع باندې تفصيلى بحث راروان دې (۲)

**قوله** ثم أمر بلالا . دلته په روايت كښې تصريح ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت بلال رضی الله عنه ته دَاعلان حكم وركړو اودَ صحيح مسلم په روايت كښې دى: **قم ياابن خطاب.** (۳) دغه شان دَ بيهقى په روايت كښې دى چه اعلان عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه كړې وو (۴) حافظ ابن حجر رحمه الله په دريواړو روايتونوكښې تطبيق كولوسره ليكى ممكن ده چه دا هم يواعلان په مختلفو مقاماتودې تولو كړې وى. (۵)

**قوله** وإن الله ليؤيدالدين بالرجل الفاجر . الله تعالى دَدې دين دَتقويت او تائيدكار فاجرسړى نه هم اخستې دې. داحديث په ظاهره دَ صحيح مسلم دَهغه روايت معارض دې په كوم كښې چه دى: **فلن أستعين بمشرك** (۶) هغوى اوفرمائيل زه به هيڅ كله دَ مشرك نه امداد وانخلم.

ليكن په دواړو رواياتوكښې څه تعارض نشته. علامه مهلب رحمه الله فرمائى چه رسول الله صلی الله علیه وسلم **لانستعين بمشرك** په كومه موقع چه ارشاد فرمائيلې وو هم هغه موقع سره خاص وو. (۷)

بل دا چه دَصحيح مسلم په روايت كښې دَ مشرك تصريح ده دې نه مسلمان فاجرمراد نه دې خودَ صحيح بخارى په روايت باب كښې دَ فاجر مسلم ذكردې په دواړو رواياتوكښې هيڅ

---

(۱) فتح البارى: ۶۰۱/۷ وعمدة القارى: ۴۲۶/۱۴.

(۲) كشف البارى: ص ۴۲۲ كتاب المغازى باب غزوة خيبر.

(۳) صحيح مسلم: ۷۴/۱ كتاب الايمان باب غلظ تحريم الغلول وأنه يدخل الجنة المؤمنون رقم: ۱۸۲.

(۴) فتح البارى: ۶۰۳/۷ كتاب المغازى باب غزوة خيبر.

(۵) فتح البارى: ۶۰۳/۷.

(۶) صحيح مسلم: ۱۱۸/۲ كتاب الجهاد باب كراهية الاستعانة فى الغرو بكافر إلا لحاجة أو كونه حسن الرأى رقم: ۴۷۰۰.

(۷) شرح ابن بطال: ۲۲۲/۵.

تعارض نشته (۱)

**په جهادکښې دکافرانو مشرکانونه امداد اخستلوحکم** امام مالك، علامه بن منذر او علامه جوزجاني رحمهم الله په نيزد مشرك نه امداد اخستل جائزنه دي (۲)، د يوروايت مطابق دامام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك هم دغه دې (۳)، ددې حضراتو استدلال د صحيح مسلم روايت لن استعين بمشرك نه دې په هغې كښې د مشرك نه امداد اخستلو ممانعت دې (۴)، امام اعظم اوامام شافعي رحمهما الله په نيزد ضرورت او حاجت لاندې د مشرك نه امداد اخستل جائز دي (۵)، علامه خرقي رحمه الله اود يوروايت مطابق امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك هم دغه دې (۶)

**دامام اعظم رحمه الله او امام شافعي رحمه الله دلائل** - ① د دې حضراتو رومبی دليل حديث باب دې

② د دوی دويم استدلال دادې چه رسول الله ﷺ دبنوقريظه خلاف د يهود بنو قينقاع نه امداد اخستې وو (۷)

③ د دوی دريم استدلال د صفوان بن اميه رضي الله عنه د طرف نه جنګ حنين كښې د مسلمانانو په حمايت كښې جنګيدلو درخواست حضورپاك ﷺ منظوركړې وو صفوان بن اميه رضي الله عنه په جنګ حنين او طائف كښې د مسلمانانود طرف نه جنګيدلې وو حالانكه هغه وخت هغه اسلام نه وو راوړلې (۸) حضورپاك د صفوان بن اميه رضي الله عنه نه په جنګ حنين كښې د جنګ وسله مستعار غوښتې وه هغه سل زغرې او نور لوازمات په خدمت كښې وړاندې كړې وو (۹) دغه شان په سنن سعيدبن منصوركښې دامام زهري رحمه الله يو مرسل روايت كښې هم تصريح ده چه حضورپاك د يهوديانونه امداد اخستې وو (۱۰)

**د اهل شرک نه دامداد غوښتلو شرائط:** - البته د دې حضراتو په نيز د مشركانونه امداد اخستل يوڅوشرائطوسره جائزدي: ① چه مشرك داهل اسلام باره كښې مثبت او دوستانه رائې لرې اودهغوی د طرف نه د مسلمانانوخلاف د بغاوت يا دهوكې اوفريب څه انديښنه نه وی (۱۱)

---

[۱]) شرح ابن بطال:۲۲۲/۵.

[۲]) المغنى لابن قدامة:۴۴۷/۱۰ رقم: الفصل:۷۵۰۸ علامه ابن قدامه رحمه الله إنا لا نستعين بمشرک نه استدلال كولوسره صحيح مسلم حواله وركړې ده. حالانكه دا د سنن ابن ماجه د روايت الفاظ دی د صحيح مسلم الفاظ هم هغه دی كوم چه په متن كښې حضرت شيخ الحديث دامت بركاتهم په تقرير كښې نقل دی دابن ماجه د روايت دپاره اوګورئی سنن ابن ماجه. ص:۲۰۳. كتاب الجهاد باب الا ستعانة بالمشركين.

[۳]) المغنى لابن قدامة:۴۴۷/۱۰.

[۴]) المغنى لابن قدامة:۴۴۷/۱۰.

[۵]) شرح السير الكبير للامام السرخسى رحمه الله ۱۹۱/۴ والمجموع شرح المهذب للنوى:۳۸/۲۱.

[۶]) المغنى لابن قدامة:۴۴۷/۱۰.

[۷]) شرح السير الكبير للامام السرخسى ۱۹۱/۴ والمجموع شرح المهذب:۳۷/۲۱ والام للامام شافعى ۲۶۱/۴

[۸]) شرح السير الكبير للامام السرخسى ۱۹۱/۴ والمجموع شرح المهذب:۳۷/۲۱.

[۹]) عمدة القارى:۷۲۶/۱۴ والمجموع شرح المهذب:۳۷/۲۱.

[۱۰]) المغنى لابن قدامه:۴۴۶/۱۰ رقم: المسئله: ۷۵۰۷.

[۱۱]) المجموع شرح المهذب:۳۸/۱.

② چه مسلمانانو ته په حقيقت كښې د اهل شرك دامداد ضرورت وى داستغناء او ضرورت نه كيدو په صورت كښې د غيرمسلم نه تعاون حاصلول جائزنه دى [1]

③ چه دمشركانو په مقابله كښې د مسلمانانو دله زياته وى دې دپاره چه دهغوى په حمايت كښې جنګيدونكى مشركان كه چرته سازش لاندې بغاوت كولوسره خپل مذهب والاسره ملاوشي نو په داسې صورت كښې چه داهل اسلام دپاره دهغوى خلاف خروج كول ناممكن نه وى [2]

**دامام مالك رحمه الله او علامه ابن منذر وغيره د استدلال جواب:-** د دې حضراتو استدلال د صحيح مسلم روايت لن استعين بمشرك نه وو شارحين حضرات د دې مختلف جوابات وركړى دى

① امام شافعى رحمه الله د دې استدلال جواب وركړې دې چه د صحيح مسلم دا روايت په روستو رواياتوسره منسوخ دې ځكه چه دا حديث رسول الله ﷺ د بدر په موقع باندې ارشاد فرمائيلې وو روستو دغزوه خيبرپه موقع باندې حضورپاك د يهود بنو قينقاع نه او په غزوه حنين كښې د صفوان بن اميه رضي الله عنه نه امداد اخستې وو په دې واقعاتوسره دغزوه بدر والاد صحيح مسلم مذكوره روايت منسوخ شو [3]

② دويم جواب دادې چه رسول الله ﷺ په كومه موقع باندې لن أستعين بمشرك فرمائيلي وو هم دهغه موقع دپاره خاص وو [4]

③ دريم جواب دا وركړې شوې دې چه د حديث نه جواز او عدم جواز دواړه ثابت دى په دې وجه امام ته اختيار دې چه څه مقتضى وى په هغې دې عمل اوكړى [5]

④ بعض حضراتودا جواب وركړې دې چه د صحيح مسلم په روايت كښې د رسول اكرم ﷺ ارشاد د يومشرك متعلق وو چه دمسلمانانو په حمايت كښې د جنګيدلودپاره مسلسل اصرار كولو رسول الله ﷺ ته د نبوت د فراست په ذريعه دهغه په زړه كښې داسلام طرف ته رغبت ادراك شوې وويه دې وجه حضورپاك مصلحتًا لن أستعين بمشرك فرمائيلوسره دهغه د طرف نه د تعاون وړاندې كولو اميد رد كړو چه د مسلمانانودطرف نه دې هغه اسلام راوړى اودې جنګيرى اوهم داسې اوشو [6]

**ترجمة الباب سره د حديث باب مناسبت:-** په حديث باب كښې إن الله ليؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښكاره دې

---

[1] ) المجموع شرح المهذب: ۳۸/۱ كتاب السير فصل:الاستعانة بالمشركين.
[2] ) المجموع شرح المهذب: ۳۸/۱ كتاب السير فصل:الاستعانة بالمشركين.
[3] ) الام للامام الشافعي رحمه الله ۲٦۱/٤ فى الاستعانة باهل الذمة على قتال العدو.
[4] ) شرح ابن بطال: ۲۲۲/٥ وعمدة القارى: ٤۲٦/۱٤.
[5] ) الام للامام الشافعي: ۲٦۱/٤.
[6] ) فتح البارى: ۲۲۱/٦.

## باب: ۱۸۹ من تامر فی الحرب من غیر امرة إذا خاف العدو

ترجمة الباب کښې من تامر جواب محذوف جاز ذلك دې دعبارت مقدر دې من تامر من غیر امرة إذا خاف العدو، جاز ذلك [1]

من غیر امرة - یعنی د جنګ په دوران کښې د حاکم یا امیر د طرف نه د امارت حواله کول بغیر دې نه چه پخپله امیر جوړ شی أی جعل نفسه أمیرا علی قوم فی الحرب من غیر تامیر الامام [2]

**د ترجمة الباب مقصد:**- په دې ترجمة الباب سره امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی که د لښکر امیر شهید شی په موقع باندې موجود پاتې نه شی یا په څه حادثه کښې د مشرئی کولو قابل پاتې نه شی او د دښمن د طرف نه د حملې خطره وی نوکه په داسې حالاتو کښې یو کس راوړاندې شی د دارالخلافه نه د لښکر د مشر د مقررکیدو د حکم نه وړاندې پخپله د لښکر مشری واخلی او سالار جوړ شی نو شرعاً به د هغه اطاعت کول واجب وی. په دې شرط چه د ده په امارة باندې ټول متفق وی. [3]

[حدیث ۲۸۹۸] [4] حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ، ثُمَّ أَخَذَهَا جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ، ثُمَّ أَخَذَهَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ، ثُمَّ أَخَذَهَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ عَنْ غَيْرِ إِمْرَةٍ فَفُتِحَ عَلَيْهِ، وَمَا يَسُرُّنِي - أَوْ قَالَ مَا يَسُرُّهُمْ - أَنَّهُمْ عِنْدَنَا». وَقَالَ وَإِنَّ عَيْنَيْهِ لَتَذْرِفَانِ .[ر: ۱۱۸۹]

## رجال الحدیث

① **یعقوب بن ابراهیم:**- دا ابویوسف یعقوب بن ابراهیم بن کثیر بن زید بن افلح عبدی دورقی دې. د دوی تذکره کتاب الایمان باب حب الرسول صلی الله تعالی علیه وسلم من الایمان لاندې وړاندې تیره شوې ده. [5]

② **ابن علیه:**- دا اسماعیل بن ابراهیم بن مقسم اسدی بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره د مذکوره کتاب او باب لاندې تیره شوې ده [6]

③ **ایوب:**- دا ایوب بن ابی تمیمه کیسان سختیانی بصری رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الایمان

---

[1] ) عمدة القاری: ۴۲۷/۱۴.

[2] ) عمدة القاری: ۴۲۷/۱۴.

[3] ) فتح الباری: ۲۲/۶ والابواب والتراجم للمحدث الکاندهلوی ص: ۲۰۴.

[4] ) امر تخریجه الحدیث فی کتاب الجنائز باب الرجل ینعی إلی أهل المیت بنفسه رقم: ۱۲۴۶.

[5] ) کشف الباری: ۲/۱۱.

[6] ) کشف الباری: ۱۲/۲.

ب ب حلاوة الایمان لاندې وړاندې تیره شوې ده [1]

⑥ **حمیدبن هلال** داابونصر حمید بن هلال البصری رحمه الله دې دده تذکره کتاب الصلوة باب یرد المصلی من مربین یدیه لاندې وړاندې تیره شوې ده

⑤ **انس بن مالک** رضی الله عنه دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم خادم خاص حضرت انس بن مالک خزرجی انصاری رضی الله عنه دې دده حالات کتاب الایمان لاندې وړاندې تیرشوی دی [2]

**خطب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم فقال: أخذ الراية زيد فأصيب، ثم أخذها جعفر فأصيب، ثم أخذها عبدالله بن رواحة فأصيب، ثم أخذها خالد بن الوليد عن غير امرة ففتح عليه.**

کله چه موته کښې صحابه کرام رضی الله عنهم مشغول وو دحضرت انس رضی الله عنه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه کښې په منبرباندې کیناستوارشادئی اوفرمائیلو، زید علم واخستو اوشهیدشو بیاجعفرجنډاواخسته او شهیدشو بیاعبدالله بن رواحه جهنډاواخسته اوهغه هم شهیدشو بیاخالدبن ولید دچادحکم نه بغیرجهنډا اونیوله اوهغه ته فتح حاصله شوه.

**من غیرامرة** -یعنی خالدبن ولید رضی الله عنه دمرکزنه دامارت تفویض کیدونه بغیربه خپله مرضئی د لښکرامیرمقررشو. أی صار إمیرامن غیرأن یفوض إلیه الامام. [3] نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د میدان جنګ داخبره هیڅانه ده کړې په دې باندې هغوی د نبوت د کشف په وجه خبر کړې شوې وو. [4]

امام واقدی رحمه الله په خپل سندسره ذکرکړې دی چه کله په موته کښې د کافرانواومسلمانانوپه مینځ کښې جنګ شروع شو نوالله تعالی په قدرت کامله سره د شام د زمکې پورې ټولې علاقې او آبادیانې دحضورپاك مخې ته کړې. دمنبرنبوی نه ترشام پورې ټول حجابات اوپردې اوچتې کړې شوې. میدان جنګ د حضورپاك په مشاهده کښې وو ددغه صورت حال مشاهده کولوسره نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیل چه زیدد اسلام جنهډا په لاس کښې واخسته او شهیدشو. إلی آخر ماقال صلی الله تعالی علیه وسلم.

په البدایه والنهایه کښې دی قال الواقدی: حدثنی عبدالجبار بن عمارة بن غزية عن عبدالله بن أبي بكر بن عمرو بن حزم قال: لما التقى الناس بموتة، جلس رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم على المنبر، وكشف الله له مابينه وبين الشام، فهوينظر إلى معركتهم، فقال: أخذ الراية زيد بن حارثة.... الخ [5]

---

[1] ) كشف الباری:۲/۲۶.

[2] ) كشف الباری:۲/۸.

[3] ) عمدة القاری: ٤/٤٢٨.

[4] ) البداية والنهاية: ٤/٢٤٦ وعمدة القاری: ١٤/٤٢٨.

[5] ) البداية والنهاية:٤/٢٤٦ – ٢٤٧ وعمدة القاری: ١٤/٤٢٨.

**قوله وما يسرني أوقال ما يسرهم أنهم عندنا** - اوزه دا امر د مسرت یعنی خوشحالئی نه دې یا د راوی شك دې. هغوی اوفرمائیل دغه شهیدانو دپاره دغه خبره د خوشحالئی سبب نه وو چه هغوی زمونږ سره موجودوي مطلب دا چه ددوی حقیقی خوشحالی هم په دې کښې وه چه د الله تعالی په لاره کښې خپل ځانونه قربان کړي او دغه رضاحاصله کړي دومره خوشحالی او مسرت به دهغوی زمونږ سره په موجودګیدو کښې نه وو ځکه چه دغه شهادت ددې نه زیات اوچت او غوره دې [1] حدیث باب سره متعلق نور بحثونه وړاندې کتاب المغازی کښې راروان دی [2]

**قوله وعيناه تذرفان** - اودې وخت کښې دحضورپاك سترګې مبارکې د اوښکونه ډکې وې مطلب دا چه کله حضورپاك د صحابه کرامو رضي الله عنهم د شهادت اعلان کولو نودغم او خفګان نه دهغوی په سترګومبارکوکښې اوښکې راغلې

**تذرفان** - بكسر الراء أي تدفعان الدموع. أو تدمعن دمعا ددې معنی ده د سترګونه اوښکې وتل. بهیدل [3]

**ترجمة الباب سره دحديث باب مناسبت** - دغزوه موته دپاره چه رسول الله ﷺ کوم لښکرروان کړې وو حضرت زیدبن حارثه رضي الله عنه ئې دهغې امیرمقررکړې وو اوفرمائیلي چه که زیدبن حارثه شهیدشونوبیابه جعفربن ابی طالب امیر وی اوکه جعفرهم شهیدشي نو بیا به عبدالله بن رواحه امیروی اوکه هغه هم شهیدشو نو مسلمانانوته اختیاردې چه څوك امیرجوړول غواړي خپل امیردې منتخب کړی [4]

په موته کښې د جنګ شروع اوشوه نودحضورپاك خوښ کړي شوي دریواړه د لښکرامیران یوبل پسې په بهادرئی سره شهیدان شو په آخره کښې عبدالله بن رواحه رضي الله عنه شهیدشونو خالدبن ولید راوړاندې شو اود جهاد علم ئې په لاس کښې واخستو اود فوج کمان ئې سنبال کړو چونکه خالدبن ولید رضي الله عنه رسول پاك ﷺ امیرنه وو منتخب کړې بلکه هغه پخپله د جهاد جنډا په لاس کښې واخستله اود لښکرکمان ئې واخستو په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ثم أخذها خالد بن الوليد من غير إمرة امام بخاری رحمه الله هم په دې سره ترجمة الباب ثابت کړې دې [5]

---

[1]) عمدة القارى: ١٤/ ٢٨٤.
[2]) عمدة القارى: ١٤/ ٢٨٤. وفتح البارى: ٧/ ٦٥٣.
[3]) عمدة القارى: ١٤/ ٢٨٤. وفتح البارى: ٧/ ٦٥٣.
[4]) طبقات ابن سعد: ٢/ ٦٦.
[5]) عمدة القارى: ١٤/ ٢٨٤. وفتح البارى: ٧/ ٦٥٣.

## باب- ۱۸۰ العون بالمدد

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې ترجمة الباب نه امام بخاري رحمه الله داخودل غواړي چه کله اسلامي لښکرته د مجاهدينو قلت اوکمې محسوس شي نود وخت خليفه له پکاردی چه هغه دې ددوی د امداد دپاره نور اعوان او انصار روان کړي [۱]

**المدد** - په عربي ژبه کښې د مدد اطلاق په هرهغه څيز باندې کيږي د کوم نه چه د زياتوالی اوکثرت فائده حاصليږي نوچه کله د لښکردپاره نوره زياتي دسته اوليکلې شي نوبه عربي کښې وائي أمد الجيش بمدد يعني دلښکرد نور زياتوالی انتظام اوکړې شو ددې جمع امداد راځي [۲]

[حديث ۲۸۹۹] [۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ وَسَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَتَاهُ رِعْلٌ وَذَكْوَانُ وَعُصَيَّةُ وَبَنُو لَحْيَانَ ، فَزَعَمُوا أَنَّهُمْ قَدْ أَسْلَمُوا، وَاسْتَمَدُّوهُ عَلَى قَوْمِهِمْ ، فَأَمَدَّهُمُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - بِسَبْعِينَ مِنَ الأَنْصَارِ قَالَ أَنَسٌ كُنَّا نُسَمِّيهِمُ الْقُرَّاءَ، يَحْطِبُونَ بِالنَّهَارِ وَيُصَلُّونَ بِاللَّيْلِ ، فَانْطَلَقُوا بِهِمْ حَتَّى بَلَغُوا بِئْرَ مَعُونَةَ غَدَرُوا بِهِمْ وَقَتَلُوهُمْ ، فَقَنَتَ شَهْرًا يَدْعُو عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَبَنِي لَحْيَانَ . قَالَ قَتَادَةُ وَحَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّهُمْ قَرَءُوا بِهِمْ قُرْآنًا أَلاَ بَلِّغُوا عَنَّا قَوْمَنَا بِأَنَّا قَدْ لَقِينَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَأَرْضَانَا . ثُمَّ رُفِعَ ذَلِكَ بَعْدُ. [ر: ۲۶۴۷]

## رجال الحديث

① **محمدبن بشار**:- دامشهورمحدث محمدبن بشار بن عثمان عبدی بصری رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کی لاینفروا لاندې وړاندې تير شوی دی [۴]

② **ابن ابی عدي**:- دا ابوعمرمحمدبن ابراهيم ابن ابی عدی السلمی البصری رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد لاندې وړاندې تيرشوی دی.

③ **سهل بن يوسف**:- دامشهورمحدث سهل بن يوسف الانماطی البصری رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب الجهاد باب من أقاد دابة غيره فی الحرب لاندې وړاندې تيرشوی دی.

④ **سعيد**:- دامشهورمحدث سعيدبن ابی عروبه مهران اليشکری دې. ددوی حالات کتاب الغسل باب إذا جامع ثم عاد لاندې تيرشوی دی

---

[۱] الابواب والتراجم للمحدث محمدزکریا الکاندهلوی رحمه الله ص: ۲۰۴.

[۲] عمدة القاری: ۱۴/۴۲۸.

[۳] اقد سبق تخريج الحديث فی کتاب الوتر باب القنوت قبل الرکوع وبعده رقم: ۱۰۰۱.

[۴] کشف الباری: ۳/۲۲۱.

⑤**قتاده** داقتاده بن دعامه بن قتاده بن عزیزسدوسی بصری رحمه الله دی .ددوی حالات کتاب الایمان من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې وړاندې تیرشوی دی (۱)

⑥**انس** رضی الله عنه داد رسول الله صلی الله علیه وسلم خادم خاص حضرت انس بن مالك خزرجی انصاری رضی الله عنه دې ددوی حالات هم په مذکوره کتاب اوباب کښې تیرشوی دی کشف الباري ۴۰۳/۲.

**أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم أتاه رعل وذكوان وعصية وبنولحيان فزعموا أنهم قد أسلموا، واستمدوه على قوم واستمدوه.** دا دباب استفعال نه دې معنی مدد طلب کول حضرت انس رضی الله عنه فرمائی رعل. ذکوان عصیه او بنولحیان د قبیلې والا دحضورپاك په خدمت کښې حاضرشو دا سلام اظهار ئی اوکړو اودا تاثرئی ورکړو چه هغوی مسلمانان شوی دی اوهغوی د حضورپاك نه د دښمن قوم خلاف امداد اوغوښتلو چونکه د کتاب المغازی په روایت کښې د قوم په ځائې د عدو تصریح ده په دې وجه په ترجمه کښې مونږ د قوم تعبیر په دښمن سره کړې دې.

**قوله فأمدهم النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بسبعین من الانصار.**
حضورپاك اویا کسان انصار دهغوی د امداد دپاره ورکړل

**بنولحیان** - داروایت د بئر معونه د واقعه متعلق دې او په دې کښې د بنولحیان ذکر راغلې دې حافظ دمیاطی رحمه الله دا وهم ګرځولې دې ځکه چه د بنولحیان تعلق غزوه رجیع سره دې د بئرمعونه ددې سره هیڅ تعلق نشته. (۲) مذکوره روایت کتاب المغازی کښې غزوه بئرمعونه لاندې راروان دې ددې متعلق بحثونه به هم هلته په تفصیل سره راځی. (۳)

**ترجمة الباب سره دحدیث باب مناسبت:** - په روایت کښې **واستمدوه على قوم فأمدهم النبی صلی الله تعالی علیه وسلم** یعنی رعل اوذکوان وغیره قبیلې خلقو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته درخواست اوکړو چه زمونږ د دښمن په مقابله کښې زمونږ امداد اوکړه نوحضورپاك دهغوی دامداددپاره او یاکسان انصار ورکړه امام بخاری رحمه الله په دې سره ترجمة الباب ثابت کړې دې

## باب- ۱۸۱ من غلب العدو فأقام على عرصتهم ثلاثا

**د ترجمة الباب مقصد:** - دې باب نه امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه د غلبه موندلونه پس د دښمن په علاقه یا د جنګ په میدان کښې تردریو ورځوپورې حصاریدل دسنت نه ثابت دی. خو په ترجمة الباب کښې دامام بخاری رحمه الله د صنیع نه معلومیږی چه د دښمن په علاقه یا د جنګ میدان کښې درې ورځې قیام کول ضابطه نه ده بلکه دامام په رائې باندې موقوف ده

---

(۱) کشف الباری:۴۰۳/۲.
(۲) عمدة القاری:۴۲۹/۱۴. وفتح الباری:۲۲۲/۶ وتحفة الباری: ۵۱۸/۳..
(۳) کشف الباری:ص:۲۶۱ کتاب المغازی باب غزوة بیرمعونة.

احدیث ۲۹۰۰[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ - رضی الله عنهما - عَنِ النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - أَنَّهُ كَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلَى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ.

## رجال الحدیث

① **محمد بن عبدالرحیم** - دا ابویحیی محمد بن عبدالرحیم بن ابی زهیر بغدادی رحمه الله دی د صاعقه په لقب سره مشهور دي دَدوی حالات کتاب الوضوء باب غسل الوجه لاندې وړاندې تیرشوی دی

② **روح بن عبادة** - دا ابومحمد روح بن عباده بن العلاء بن حسان بن عمرو بن مرثد قیسی بصری رحمه الله دي دَ دوی حالات کتاب الایمان باب اتباع الجنائز من الایمان لاندې تیرشوی دی[2]

③ **سعید** - دَدوی حواله باب العون بالمدد لاندې تیره شوې ده

④ **قتاده** - دا قتاده بن دعامه بن قتاده بن عزیز سدوسی بصری رحمه الله دي. دَدوی حالات کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیرشوی دی[3]

⑤ **انس بن مالک** رضی الله عنه - دَدوی حالات هم دَدې نه وړاندې باب لاندې تیرشوی دی

⑥ **ابوطلحه** رضی الله عنه - دا دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه میرنې پلار حضرت زیدبن سهیل بن الاسود بن حرام البخاری المدنی دي. په ابوطلحه باندې مشهور دي. دَدوی حالات کتاب الوضوء باب الماء الذی یغسل به شعر الانسان کښې تیرشوی دی.

**قوله**: ذکرلنا أنس عن أبي طلحة رضی الله عنه - امام قتاده رحمه الله فرمائی دا روایت مونږ ته حضرت انس بن مالک رضی الله عنه د ابوطلحه رضی الله عنه نه بیان کړې دي. حافظ حجر رحمه الله لیکلی دی ورواه ثابت عن أنس بغیر ذکر أبي طلحة. یعنی دا روایت ثابت عن انس په طریق سره هم مروی دې خو په دې کښې دَحضرت ابوطلحه رضی الله عنه په مینځ کښې واسطه نشته.[4]

**قوله**: أنه كان إذا ظهر على قوم أقام بالعرصة ثلاث ليال - رسول کریم صلی الله علیه وسلم چه به کله په یو دښمن قوم باندې غالب راتلو نو په میدان جنګ کښې به نې درې ورځې قیام کولو العرصة په عین او صاد باندې فتحه او راء سکون سره دَدې جمع عرصات راځی عرصه ارت او

---

[1] ) رواه ایضًا (۵۶۶/۲) فی کتاب المغازی باب قتل أبی جهل رقم: ۳۹۷۶ وعند أبی داؤد فی سننه: ۱۱/۲ فی کتاب الجهاد باب فی الامام یقیم عندالظهور علی العدو یعرضتهم رقم: ۲۶۹۵ وعند الترمذی فی جامعه (۲۸۳/۱) فی أبواب السیر باب فی البیات والغارات رقم: ۱۵۵۱.

[2] ) کشف الباری: ۵۱۸/۲.

[3] ) کشف الباری: ۳/۲.

[4] ) فتح الباری: ۲۲۳/۲.

کولاؤ خانی ته وئیلې شي د کوم ځلورو واړو طرفو ته چه څه آبادی نه وی

قال ابن الاثیر: هی کل موضع واسع لابناء فیه (۱) وقال الثعالبی: کل بقعة لابناء فیها فهی عرصة (۲) وقال العینی وابن حجر رحمهم الله شی البقعة الواسعة بغیر بناء من دار وغیرها (۳).

**د دریوورځو د قیام حکمت** - شارحینو دې مختلف توجیهات کړی دی ① علامه مهلب رحمه الله فرمائی د حضور پاک دا قیام به د آرام او ملانیغولو د پاره وو مسافرهم په دریوورځو کښې پوره آرام او راحت حاصلوی په دې وجه به رسول الله ﷺ په دښمن باندې د غلبه موندلو نه پس په جنګ سره حاصلیدونکې بدنی سترې والې لرې کولو د پاره په میدان جنګ کښې درې ورځې حصاریدو البته په دې سنت باندې عمل کول هغه وخت صحیح دی چه د دښمن د طرف نه د حمله او یلغار خطره نه وی والله اعلم

چنانچه علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی کان هذا منه والله اعلم. لیریح الظهر والانفس، هذا إذا کان فی أمن عدو وطارق، وإنما قصد إلی ثلاث. والله اعلم. لانه أکثر ما یریح المسافر (۴)

② علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی إنما کان یقیم لیظهر تاثیر الغلبة وتنفیذ الاحکام (۵) یعنی د رسول اکرم ﷺ غرض په دې قیام سره د قوت غلبه اظهار او د اسلام د احکامو نفاذ مقصود وو

③ علامه ابن المنیر رحمه الله یوه عجیبه توجیه کړې ده هغه فرمائی چه په دې سره د الله تعالی د ذکر او شعائر اسلام ترویج او اشاعت د وجه د ګناه د ککړې زمکې ضیافت مقصود وو لکه چه د هغوی قیام د ضیافت په حکم کښې وو چونکه ضیافت درې ورځې وی په دې مناسبت سره رسول الله ﷺ قیام هم د دښمن په علاقه کښې درې ورځې وو

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی قال ابن المنیر: یحتمل أن یکون المراد أن تقع ضیافة الارض التی وقعت فیها المعاصی بایقاع الطاعة بذکر الله وشعائر اسلام وإذا کان ذلک فی حکم الضیافة ناسب أن یقیم علیها ثلاثا، لان الضیافة ثلاثا. (۶)

**ترجمة الباب سره مناسبت**:- په حدیث باب کښې دی أنه کان إذا ظهر علی قوم أقام بالعرصة ثلاث لیال ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې

تَابَعَهُ مُعَاذٌ وَعَبْدُ الأَعْلَى حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -. [۳۷۵۷]

---

(۱) النهایة لابن الاثیر:۳/۲۰۸.
(۲) فقه اللغة للثعالبی.
(۳) عمدة القاری:۱۴/۴۳۰ وفتح البای:۶/۲۲۳.
(۴) شرح ابن بطال۵/۲۲۶وفتح الباری:۶/۲۲۳ والابواب والتراجم ص:۲۰۴.
(۵) عمدة القاری:۱۴/۴۳۰ وفتح الباری:۶/۲۲۳ والابواب والتراجم ص: ۲۰۴.
(۶) فتح الباری:۶/۲۲۳ والابواب والتراجم ص ۲۰۴.

امام بخاري رحمه الله فرمائي چه د قتاده نه معاذ او عبدالاعلى هم د روايت باب متابعت كړې دې د معاذ عنبري متابعت اصحاب سنن ثلاثه موصولاً كړې دې په كوم كښې چه حضورپاك ارشاد دې احب أن يقيم بالعرصة ثلاثة (۱) د عبدالاعلى السامي رحمه الله متابعت ابوبكربن ابي شيبه رحمه الله موصولاً نقل كړې دې امام مسلم رحمه الله ددې دواړو متابعاتو تخريج د يوسف بن حماد په طريق باندې كړې دې بل اسماعيلي مستخرج كښې دا دواړه متابعاتوعن أبي يعلى عن أبي بكر بن أبي شيبه په طريق باندې موصولاً ذكركړي دی. (۲)

## باب-۱۸۲ من قسم الغنيمة فى غزوه وسفره

**دَ ترجمة الباب مقصد** -مسئله داده چه آيا په دارالحرب كښې دننه دَمال غنيمت تقسيم جائزدې كه نه؟ دَ جمهورو په نيز جائزدې او احناف وائي جائزنه دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه ددې ترجمة الباب نه امام بخاري رحمه الله دَ جمهورو فقهاؤ تائيد كولوسره په احنافو باندې ردكړې دې. (۳) ليكن علامه عيني په حافظ ابن حجر رحمه الله باندې ردكولوسره فرمائيلي دي چه احاديث باب خو پخپله دَاحنافودپاره حجت دې اودې نه هډو د جمهورو مذهب نه ثابتيږي په دې وجه دا ونيل تيك نه دی چه دلته امام بخاري رحمه الله د جمهورفقهاؤ تائيدكولوسره په احنافو ردكړې دې. (۴)

وَقَالَ رَافِعٌ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- بِذِي الْحُلَيْفَةِ، فَأَصَبْنَا غَنَمًا وَإِبِلاً، فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الْغَنَمِ بِبَعِيرٍ. [ر: ۲۳۶]

## رجال الحديث

①**رافع**:- دا رافع بن خديج بن عدى الاوسى رضي الله عنه دې. دَ ده حالات كتاب مواقيت الصلوة باب وقت المغرب لاندې تيرشوي دی. حضرت رافع خديج رضي الله عنه فرمائي چه په ذوالحليفه كښې مونږ رسول اكرم صلى الله عليه وسلم سره وو. دغنيمت په مال كښې مونږ ته اوښان اوچيلئي ملاؤشوې. دَغنيمت دَ مال تقسيم په وخت حضورپاك لس چيلئي دَ يو اوښ برابر اوګرځولې

**دَتعليق تخريج**:- امام بخاري رحمه الله په كتاب الشركة، باب قسمة الغنيمة (۵) او باب من عدل عشرة من الغنم بجزور فى القسم (۶) لاندې دا تعليق په تفصيل سره موصولاً نقل كړې دې. دلته دَ باب مناسبت

---

(۱) سنن الدارمي رحمه الله: ۲/ ۲۱ كتاب السير باب ان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم إذا ظهر على قوم أقام على عرصتهم ثلاثا رقم: ۲٤٥۹ وسنن أبى داوٗد ۲/ ۱۱۱ كتاب الجهاد باب فى الامام يقيم عندالظهور على العدو بعرصتهم رقم: ۲٦۹٥ وسنن الترمذى: ۱/ ۲۸۲ كتاب السير باب فى البيات والغارات رقم: ۱٥٥۱.

(۲) تغليق التعليق: ۳/ ٤٦۰.

(۳) فتح البارى للحافظ: ٦/ ۲۲۳.

(٤) عمدة القارى: ١٤/ ٤٣۰.

(٥) صحيح بخارى: ۱/ ۳۳۸ رقم: ۲٤۸۸.

(٦) صحيح بخارى: ۱/ ۳٤۱ (رقم: ۲٥۰)

سره امام بخاری رحمه الله ددې یوجز نقل کړې دې (۱)

دغه شان کتاب الجهاد کښې باب مایکره من ذبح الابل والغنم فی المغانم لاندې کتاب الذبائح والصید کښې باب التسمیة علی الذبیحة ومن ترك متعمدا او باب إذا أصاب تقوم غنیمة لاندې هم امام بخاری رحمه الله مذکوره تعلیق موصولاً نقل کړې دې (۲)

**ددې تعلیق مقصد** :- که د حافظ ابن حجر رحمه الله ددې رائې اعتبار اوکړې شي چه ترجمة الباب سره امام بخاری رحمه الله د جمهورو تائید کولو سره په احنافو باندې رد کړې دې نو بیا په دې تعلیق سره د امام بخاری رحمه الله دا مقصد ثابتول دی چه ذوالحلیفه چرته چه رسول الله ﷺ د غنیمت مال تقسیم کړې وو دارالحرب وو چونکه حضور پاك په دارالحرب کښې قیام کښې مال غنیمت تقسیم کړې په دې وجه دا تعلیق د امام بخاری رحمه الله په نیز په دارالحرب کښې دننه د غنائم د تقسیم په جواز باندې صریح دلیل او د جمهور مؤید دوی او د امام بخاری رحمه الله مقصد هم دغه ثابت کول دی

اوکه چرې د علامه عینی رحمه الله د رائې اعتبار اوکړې شي نو بیا خو ښکاره خبره ده چه دې تعلیق نه د امام بخاری رحمه الله مقصد د احنافو مذهب ثابتول دی چه ذوالحلیفه کښې چرته رسول الله ﷺ مال غنیمت تقسیم کړې دارالاسلام وو نه چه دارالحرب لکه چه د احنافو د فقهاؤ رائې ده.

**ترجمة الباب سره مطابقت** :- په تعلیق کښې دی کنا مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بذی الحلیفة فاصبنا غنما وابلا فعدل عشرة من الغنم ببعیر نو ترجمة الباب سره ددې مناسبت بالکل واضح دې حافظ ابن حجر رحمه الله چه د ترجمة الباب کوم مقصد بیان کړې دې که د هغې اعتبار اوکړې شي نو بیا هم ترجمه سره د تعلیق مناسبت ښکاره دې. اوکه د علامه عینی رحمه الله د رائې اعتبار اوکړې شي نو بیا هم ترجمه سره مناسبت صفا دې.

[حدیث ۲۹۰۱] (۳) حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا أَخْبَرَهُ قَالَ اعْتَمَرَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - مِنَ الْجِعْرَانَةِ، حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ. [ر: ۱۶۸۷]

## رجال الحدیث

① **هدبه بن خالد** :- دا ابوخالد هدبه بن خالد بصری رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب الصلوة باب فضل صلوة الفجر لاندې تیر شوی دی.

② **همام** :- دا همام بن یحیی بن دینار دې. د دوی حالات کتاب الوضوء باب ترك النبی صلی الله تعالی علیه وسلم والناس الاعرابی حتی فرغ من بوله فی المسجد لاندې تیر شوی دی

(۱) عمدة القاری: ۱۴/۴۳۰ - ۴۳۱.

(۲) صحیح البخاری کتاب الجهاد: ۱/۳۳۲ رقم: ۳۰۷۵ وفی الذبائح: ۲/۸۲۶ رقم: ۵۴۹۸ وأیضاً: ۲/۸۳۱ رقم: ۵۵۴۳ وتغلیق التعلیق للحافظ ابن حجر رحمه الله ۳/۴۶۱.

(۳) قد سبق تخریج الحدیث فی کتاب العمرة باب النزول بذی طوی قبل أن یدخل مکة رقم: ۱۷۷۸.

③ **قتاده** - تيرشوى باب لاندې د ده حواله تيره شوې ده
④ **انس** ﷺ - د دوى حواله هم په تيرشوى باب كښې تيره شوې ده

**قوله قال اعتمر النبى صلى الله تعالى عليه وسلم من الجعرانة حيث قسم غنائم حنين** حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائى رسول الله ﷺ احرام په جعرانه كښې اوتړلو كوم خائې چه نبى د غزوه حنين مال غنيمت تقسيم كړې وو دا روايت هم په دې سندسره كتاب العمرة باب النزول بذى طوى قبل أن يدخل مكة لاندې تفصيلاً تيرشوې دې [1] امام بخارى رحمه الله دلته ترجمة الباب مناسبت سره د دې يوجزنقل كړې دې

**ترجمة الباب سره مناسبت** - ترجمة الباب سره د مذكوره روايت مناسبت بالكل واضحه دې د باب د تعليق لاندې حافظ ابن حجر اوعلامه عينى رحمهم الله رانې مخې ته كولوسره ترجمة الباب سره د مذكوره تعليق مناسبت سره متعلق كوم تفصيل شاته تيرشو هغه دلته هم په خيال كښې اوساتئ.

**دارالحرب كښې د مال غنيمت د تقسيم مسئله** :- په دارالحرب كښې د ننه د مجاهدينو د پاره د مال غنيمت تقسيم جائزدې كه نه؟ په دې مسئله كښې د جمهور فقهاؤ او احنافو اختلاف دې

**د جمهورفقهاؤ مسلک** - امام مالك امام اوزاعى امام شافعى ابن منذر او ابوثور رحمهم الله په نيزيه دارالحرب كښې د غنيمت د مال تقسيم جائزدې. [2]

**د احنافو مسلک** :- د فقهاء احناف رحمهم الله په نيز په دارالحرب كښې د غنائم تقسيم په هيڅ صورت جائزنه دې صاحب بدائع الصنائع علامه كاسانى رحمه الله ليكلى دى چه تقسيم په دوه قسمه دې تقسيم د حمل اونقل او بل تقسيم د ملك.

① د تقسيم حمل اونقل مطلب دادې كه چرې مال غنيمت دارالاسلام ته منتقل كولو د پاره د مجاهدين اسلام سره د سورلئى انتظام نه وى نو امير جيش مالك جوړولونه بغير د لښكر تول غانمينوته د هغوى مقررحصې وركړى. دارالاسلام ته په رسيدوباندې د غه حصې واپس واخلى او د ملكيت په توګه دې تقسيم كړى. دا صورت د احنافو په نيز بالكل جائزدې. ځكه چه په دې صورت كښې دارالحرب كښې چه كوم تقسيم شوې هغه د ملكيت تقسيم نه وو بلكه تقسيم حمل ونقل يعنى خپل مقام ته د رسولوتقسيم وو [3]

② د تقسيم ملكيت مفهوم بالكل واضحه دې چه په دارالحرب كښې د ننه مال غنيمت د غانمينو ملكيت اوګرځولې شى او تقسيم كړې شى دې ته تقسيم ملكيت وئيلې شى اودا صورت د احنافو د فقهاؤ په نيز جائزنه دې [4]

**د جمهورفقهاؤ دلائل اود هغې رد** :- ① د جمهورورومبې دليل دادې چه په دارالحرب كښې

---

[1] ) حواله بالا.
[2] ) المجموع شرح لمهذب للامام النووى رحمه الله ۱٤۸/۲۱ والمغنى لابن قدامة رحمه الله ۱۰/٤٥۸.
[3] ) بدائع الصنائع:۹/٤۸۸ — ٤۸۹ وردالمختار مع الدرالمختار: ٦/۲۲٤ — ۲۲٥.
[4] ) بدائع الصنائع:۹/٤۸۸ — ٤۸۹ وردالمختار مع الدرالمختار: ٦/۲۲٤ — ۲۲٥

دَاهل اسلام غلبه اواستیلاء سره ملکیت ثابتیږی په دې وجه په دارالحرب کښې دمال غنیمت تقسیم جائزدې اودې تقسیم حیثیت به بعینه هم هغه وی کوم حیثیت چه دَ غنائم په دارالاسلام کښې وی (۱)

علامه ظفرعثمانی رحمه الله ددې دلیل داجواب ورکړې دې چه دارالحرب طرف ته دوباره غلبه اودَ یلغارامکان بهرحال موجود وی ددې دپاره اهل اسلام هلته من وجه غالب هم وی او مغلوب هم لهٰذا په غنائم باندې دَاهل اسلام ملکیت په درالحرب کښې پوره نه وی ځکه چه صرف په غلبه او استیلاء باندې ملکیت تام کیږی نه اتمام ملکیت دَ پاره دارالحرب دارالاسلام جوړول دَ غلبه اواستیلاء مکمل استحکام ضروری دې (۲)

② دَ جمهورو دویم استدلال دَ ترجمة الباب دَ رومبی معلق روایت نه دې دَ حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه په دې تعلیق کښې تصریح ده چه رسول الله ﷺ په ذوالحلیفه کښې مال غنیمت تقسیم کړې وو دجمهورو په نیزذوالحلیفه دارالحرب دې لهٰذادې تعلیق نه استدلال کولو سره جمهوروائی چه په دارالحرب کښې دَ مال غنیمت تقسیم جائزدې خوحقیقت دادې چه دا روایت پخپله دَ جمهوروخلاف دَ احنافودپاره مستدل دې علامه عینی رحمه الله په عمدة القاری کښې تحریرفرمائی چه په دې معلق روایت کښې خو په دارالحرب کښې دَمال غنیمت دَ تقسم قطعی توګه باندې څه ذکرنشته ځکه چه ذوالحلیفه هغه وخت په دارالاسلام کښې شامل وه ددې حیثیت دَ دارالحرب نه وو (۳)

③ دَ جمهورفقهاؤ دریم استدلال دَ ترجمة الباب دویم اوآخری روایت نه دې أن انسارضی الله عنه قال: اعتمرالنبی صلی الله علیه وسلم من الجعرانة حیث قسم غنائم حنین. حضرت انس بن مالک رضی الله عنه فرمائی رسول الله ﷺ دَعمرې احرام دَ جعرانه نه تړلې وو چرته چه حضورپاک دَ حنین دَ مال غنیمت تقسیم کړې وو ددې روایت نه استدلال کولوسره جمهور وائی چه جعرانه دارالحرب وو په کوم کښې چه دَ رسول الله ﷺ مال غنیمت تقسیم کول په دارالحرب کښې دَمال غنیمت دَ تقسیم په جواز باندې صریح دلیل دې لیکن علامه عینی رحمه الله فرمائی چه جعرانه دارالاسلام وو دې ته دارالحرب وئیل صحیح نه دی په دې وجه داروایت هم په حقیقت کښې دَ احنافو دلیل دې (۴) هم ددې استدلال یوجواب امام سرخسی رحمه الله په مبسوط کښې داورکړې دې چه محمدبن اسحاق اوکلبی په روایت کښې دی أن رسول الله صلی الله تعالیٰ علیه وسلم قسم غنائم حنین بعد منصرفه من الطائف بالجعرانه یعنی دَ طائف نه په واپس راتلورسول الله ﷺ دَ حنین مال غنیمت جعرانه کښې تقسیم کړو

ددې مطلب دادې چه رسول الله ﷺ دَ حنین مال غنیمت رلکه چه دَ ترجمة باب مذکوره روایت

---

۱) المغنی لابن قدامة:۱۰/۴۵۸ – ۴۵۹والمجموع شرح مهذب ۲۱/۱۴۸.
۲) إعلاء السنن: ۱۴/۱۲.
۳) عمدة القاری: ۱۴/۴۳۱.
۴) عمدة القاری: ۱۴/۴۳۱.

كښې تصريح د٥، مؤخر كولوسره جعرانه ته راغلو تقسيم ئې كړو جعرانه هغه وخت دارالاسلام يعنې مكه مكرمه كښې شامل وه غزوه حنين دفتح مكه نه پس پېښه شوې په دې وجه د مكه مكرمې دارالاسلام كيدل بديهي دى
امام سرخسى رحمه الله فرمائى چه دا روايت په حقيقت كښې په دې خبره باندې دلالت كوى چه دارالحرب كښې دمال غنيمت تقسيم جائزنه دې دغزوه حنين نه ملاؤشوې مال غنيمت مؤخر كولوسره جعرانه ته راتلل اوتقسيم كول ددې واضح دليل دې (۱)
⑥ د جمهورو فقهاؤ يواستدلال داهم دې چه رسول الله ﷺ غزوه بنو مصطلق غزوه هوازن او غزوه خيبر كښې كله چه د دې مقاماتوحيثيت د دارالحرب وومال غنيمت تقسيم كړې وو تركومې چه د غزوه بنومصطلق او غزوه خيبرتعلق دې نوددې جواب دادې چه بنومصطلق او خيبر رسول الله ﷺ فتح كولوسره دارالاسلام جوړكړې وو اوهلته داسلام د پوره احكامو نفاذ په عمل كښې راغلې وو په دې وجه بنومصطلق او خيبر كښې د غنائم دتقسيم حيثيت به بعينه هم داسې وى لكه چه په يو اسلامى رياست كښې د مال غنيمت تقسيم كيږى (۲)
اوتركومې چه د هوازن تعلق دې نوحافظ ابن حجر رحمه الله تلخيص الخبير كښې تصريح كړې د٥ چه رسول الله ﷺ د هوازن مال غنيمت جعرانه ته د راتلونه پس تقسيم كړې وو ددې نه د جمهورو استدلال كول صحيح نه دى بلكه دا خو پخپله داحنافو مستدل دې چه جعرانه دارالاسلام په حدودكښې واقع وه (۳) لكه څنګه چه اول هم مونږ ددې تفصيل خودلې دې.
⑤ د جمهورو فقهاؤ نه امام شافعى رحمه الله استدلال كړې دې چه رسول الله ﷺ د بدرمال غنيمت سير نوم مقام كښې تقسيم كړې وو بدر هغه وخت دارالحرب وو او سير هم دغلته واقع وو امام سرخسى رحمه الله صاحب بدائع الصنائع علامه كاسانى رحمه الله ددې استدلال داجواب وركړې دې چه يوخو سير په حدودبدركښې شامل كول صحيح نه دى اودويم دا چه رسول الله ﷺ غنائم بدر په سيركښې نه وو تقسيم كړې بلكه د صحيح اومشهورقول مطابق ئې په مدينه منوره كښې تقسيم كړې وو اوښكاره خبره د٥ چه مدينه دارالاسلام وو. (۴)
حقيقت دادې چه دكومو رواياتونه جمهورو استدلال كړې دې هغه پخپله دهغوى د پاره داحنافو حجت دې په دې كښې يو روايت هم په دارالحرب كښې دننه د مال غنيمت د تقسيم په جائزكيدو باندې دلالت نه كوى امام سرخسى رحمه الله دحضرت مكحول رحمه الله يوروايت نقل كړې دې ماقسم رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم الغنائم إلافي دارالاسلام (۵) يعنې رسول الله ﷺ هميشه په دارالاسلام كښې د غنائم تقسيم فرمائيلې يوروايت هغوى د ابن عباس رضي الله عنهما نقل كړې دې په كوم كښې چه دى أن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم قسم غنائم بدر بعد

---

۱) المبسوط للامام السرخسى رحمه الله ۱۶/۵.
۲) إعلاء السنن للعلامة ظفرأحمدعثمانى:۱۱۳/۱۲.
۳) إعلاء السنن للعلامة ظفرأحمد عثمانى:۱۱۳/۱۲.
۴) المبسوط للامام السرخسى رحمه الله ۱۵/۵ وبدائع الصنائع للعلامة الكاسانى رحمه الله ۴۹۱/۹.
۵) المبسوط للامام السرخسى رحمه الله ۵/۱۵ وبدائع الصنائع للعلامة الكاسانى رحمه الله ۴۹۱/۹.

ماقدم المدینة د بدر غنائم رسول الله ﷺ په مدینه منوره کښې تقسیم کړی وو امام سرخسی رحمه الله مبسوط کښې فرمائی چه دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما منشاء په حقیقت کښې ددې روایت نه دا ثابت کول دی چه دامیرجیش دپاره جائزنه دی چه دارالحرب کښې دښه مال غنیمت تقسیم کړی (۱)

دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما ددې روایت نه ثابته شود چه غنائم بدرحضورپاك مدینې منورې ته د راتلونه پس تقسیم کړی وو په دې سره دامام شافعی رحمه الله داستدلال تردید کیږی په کوم کښې چه هغوی فرمائیلی غنائم بدر حضورپاك په سیر کښې تقسیم کړی وو

**ترجمة البا ـ سره دحدیث باب مناسبت** ـحدیث باب دې اعتمر النبي صلی الله تعالی علیه وسلم من الجعرانة حیث قسم غنائم حنین د ترجمة الباب نه د امام بخاری رحمه الله مقصد څه دې حافظ صاحب اوعلامه عینی رحمه الله ددواړو حضراتو راني تشریح وړاندې تیره شوې ده که ددوی مختلف آراء ستاسو په ذهن کښې وی نودواړو راویانو په وړاندې ترجمة الباب سره دمذکوره حدیث مناسبت بالکل واضح دې

## باب ـ ۱۸۳ إذا غنم المشرکون مال المسلم ثم وجده المسلم

**د ترجمة الباب مقصد**:- په دې باب سره حضرت امام بخاری رحمه الله د یواختلافی مسئلې طرف ته اشاره فرمائیلې ده. که حربیانو په دارالاسلام باندې حمله کولوسره د مسلمانانو مال غنیمت اوګټلو او په خپل تصرف کښې راوستلو بیا مسلمانانو په هغوی باندې حمله اوکړه اوهغه مال ئې دوباره حاصل کړو نوهرسړې به حسب سابق د خپل متعین مال مالك وی یابه هغه مال مال غنیمت په حکم کښې وی اود عامو غنائمو په شان به تقسیم کیږی؟

علامه عینی رحمه الله دامام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې د إذا جواب نه دې ذکر کړې لکه چه ددې نه زیربحث مسئله کښې د اختلاف مذاهب طرف ته اشاره ده (۲)

[حدیث ۲۹۰۲/ ۲۹۰۴] قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضی الله عنهما- قَالَ ذَهَبَ فَرَسٌ لَهُ، فَأَخَذَهُ الْعَدُوُّ، فَظَهَرَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ فَرُدَّ عَلَيْهِ فِي زَمَنِ رَسُولِ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم-، وَأَبَقَ عَبْدٌ لَهُ فَلَحِقَ بِالرُّومِ، فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ، فَرَدَّهُ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ بَعْدَ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم-.

## رجال الحدیث

① **ابن نمیر**:- دا عبدالله بن نمیر الهمدانی الکوفی رحمه الله دې. ددوی حالات کتاب التیمم باب إذا لم یجد ماء ولا ترابا لاندې مخکښې تیرشوی دی

② **عبیدالله** دا عبیدالله بن عمربن حفص بن عاصم بن عمربن الخطاب القرشی العدوی رحمه الله دې

(۱) المبسوط للسرخسی رحمه الله ۱۱۵/۵.

(۲) عمدة القاري:۳/۱۵.

دَ دوی حالات كتاب الوتر باب ليجعل آخر صلاته وترًا لاندې تيرشوی دی

(۳) **نافع** - داد حضرت عمربن الخطاب رضی الله عنه آزادکړې شوې غلام ابوعبدالله نافع المدنی رحمه الله دې دَ دوی حالات كتاب العلم باب من أجاب السائل بأكثر مما سال لاندې تيرشوی دی

(۴) **ابن عمر** رضی الله عنهما - دا مشهورصحابی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې دَدوی حالات كتاب الايمان باب بني الاسلام على خمس لاندې تيرشوی دی (۱)

**قوله: ذهب فرس له فأخذه العدو** - دَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما يواس اوتختيدو نوهغه دښمن اونيولو حافظ ابن حجر رحمه الله او عينی رحمه الله فرمائی چه دَ كشميهنی په روايت كښې لفظ ذهب په ځائی مذكردَ ذهبت صيغه مؤنث سره او لفظ فاخذه كښې دَ ضميرمذكر په ځائی هاضميردَمؤنث ضبط شوې دې دَدې وجه داده چه فرس اسم جنس دې مذكر اومؤنث دواړه شان استعماليږی (۲) په دواړو نسخوكښې هيڅ تعارض نشته په يوروايت كښې دَ تذكير اعتباراوكړې شو او بل كښې دَ تانيث.

**قوله: فظهر عليه المسلمون فرد عليه في زمن رسول الله صلى الله عليه وسلم** - مطلب داچه مسلمان په دښمن باندې غالب راشي نوهغه اس دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارکه زمانه كښې ابن عمر رضی الله عنهما ته واپس كړې شو.

**قوله: وأبق عبد له فلحق بالروم، فظهر عليهم المسلمون، فرده عليه خالد بن وليد بعد النبي صلى الله تعالى عليه وسلم** - يعنی دغه شان دَحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما يوغلام اوتختيدو په روم كښې پناه واخسته كله چه مسلمانانو په روم باندې حمله اوكړه نوحضرت خالدبن وليد رضی الله عنه غلام هغوی ته حواله كړو. دَرسول الله صلی الله علیه وسلم دَزمانې مباركې نه پس واقعه ده.

**دَ مذكوره تعليق تخريج** - دا تعليق امام ابوداؤد رحمه الله كتاب الجهاد باب في المال يصيبه العدو من المسلمين ثم يدركه صاحبه في الغنيمة لاندې او ابن ماجه رحمه الله كتاب الجهاد باب ما أحرز العدو ثم ظهر عليه المسلمون لاندې موصولاً روايت كړې دې (۳) حافظ ابو نعيم رحمه الله هم المستخرج على البخاری كښې دا تعليق عن محمد بن علي بن حبيش عن القاسم بن زكريا بن زهير بن سلام النسائي عن ابن نمير په طريق سره موصولاً روايت كړې دې (۴)

---

(۱) كشف البارى: ۱/۶۳۷ — ۶۳۸.

(۲) فتح البارى: ۶/۲۲۴ وعمدة القارى: ۳/۱۵.

(۳) سنن أبى داؤد: ۲/۱۲ وسنن ابن ماجه: ص: ۲۰۴ كتاب الجهاد باب ماأحرز العدو ثم ظهر عليه المسلمون.

(۴) تغليق التعليق للحافظ ابن حجر: ۳/۴۶۲.

[حديث ۲۹۰۳] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ أَنَّ عَبْدًا لِابْنِ عُمَرَ أَبَقَ فَلَحِقَ بِالرُّومِ، فَظَهَرَ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، فَرَدَّهُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ، وَأَنَّ فَرَسًا لِابْنِ عُمَرَ عَارَ فَلَحِقَ بِالرُّومِ، فَظَهَرَ عَلَيْهِ فَرَدُّوهُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ.

## رجال الحديث

① **محمدبشار** - دامشهورمحدث محمدبن بشار بن عثمان عبدی بصری رحمه الله دي. دَدوی حالات كتاب العلم باب ماكان النبى صلى الله تعالى عليه وسلم يتخولهم بالموعظة والعلم كي لا ينفروا لاندي په تفصيل سره تيرشوی دی (۱)

② **يحيى** - دامشهورامام حديث يحيى بن سعيدبن فروخ القطان تميمى دي. دَدوی حالات كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه لاندي تيرشوی دی (۲) دَعبيدالله اونافع رحمهم الله حواله دَ روايت په رومبى سند كښې تيره شوې ده.

**قوله**: أن عبداً لابن عمر أبق ...... دادَترجمة الباب دَرومبى روايت دويم طريق دي په دې كښې دی چه دَ ابن عمر رضی الله عنهما يوغلام اوتختيدو او روم ته لاړو حضرت خالدبن وليد رضی الله عنه هغه راونيولو او عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته ئې واپس كړو او هم دغه شان دَ ابن عمر رضی الله عنهما يو آس اوتختيدو او روم كښې داخل شو. حضرت خالدبن وليد رضی الله عنه هغه راونيولو او اهل اسلام هغه ابن عمر رضی الله عنهما ته واپس كړو.

**قوله**: فردوه على عبدالله:- دَ صحيح بخارى په دويمه نسخه كښې دَ جمع دَ صيغه په خائې فرده مفرد واردشوې دي.(۳) كه چرې دَجمع صيغه وى لكه چه په مذكوره روايت كښې ده نودغې ترجمه به شي مسلمانانو هغه حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنهما ته واپس كړو كه دَمنفردصيغه وى نوبياخوبنكاره خبره ده فرده كښې ضمير فاعل حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه طرف ته راګرځي.

**قوله**: قال أبوعبدالله: عار مشتق من العير، وهوحمار وحش، أى هرب:-

ابوعبدالله دَ امام بخارى رحمه الله كنيت دي دلته امام بخارى رحمه الله دَ لفظ عار تفسير كړې دي چه دا دَعيرنه مشتق دي اوعيرحمار وحشى ته وائى. دَ عار معنى امام بخارى رحمه الله عاد الفرس: انفلت وذهب ههنا وههنا (۴) اس وران شو او په مستئى كښې اخوا ديخوا اوتختيدو. هم دغه معنى امام

---

۱) كشف البارى: ۳/۲۵۸ - ۲۶۱.
۲) كشف البارى: ۲/۲. ۳.
۳) تحفة البارى بشرح صحيح البخارى لشيخ الاسلام زكريابن محمدالانصارى: ۳/۵۲۰.
۴) مختارالصحاح للامام محمد بن أبى بكر الرازى. ص: ۵۶۲.

خلیل هم کړې ده.[1] شیخ الاسلام زکریابن محمد انصاری رحمه الله فرمائي چه د صحیح بخاری په یو نسخه کښې د امام بخاری رحمه الله د اتفسیری قول ساقط دې

احدیث ۲۹۰۴] [3] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنهما أَنَّهُ كَانَ عَلَى فَرَسٍ يَوْمَ لَقِيَ الْمُسْلِمُونَ، وَأَمِيرُ الْمُسْلِمِينَ يَوْمَئِذٍ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ، بَعَثَهُ أَبُو بَكْرٍ، فَأَخَذَهُ الْعَدُوُّ، فَلَمَّا هُزِمَ الْعَدُوُّ رَدَّ خَالِدٌ فَرَسَهُ.

## رجال الحدیث

①**احمدبن یونس** - دا ابوعبدالله احمدبن یونس بن عبدالله بن قیس تمیمی یربوعی کوفی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الایمان باب من قال ان الایمان هو العمل لاندې تیرشوی دی.[4]

②**زهیر** - دا زهیربن معاویه بن خدیج بن الرحیل بن زهیر بن خیثمه جنعفی کوفی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الایمان باب الصلوة من الایمان لاندې تیرشوی دی.[5]

③**موسی بن عقبه** - داصاحب المغازی موسی بن عقبه الاسدی المدنی رحمه الله دې د دوی حالات کتاب الوضوء باب إسباغ الوضوء لاندې تیرشوی دی

④**عن نافع عن ابن عمر** رضی الله عنهما - د ترجمة الباب د رومبي روایت لاندې د دواړو راویانو حواله تیره شوې ده.

**قوله** أنه کان علی فرس یوم لقی المسلمون، وأمیرالمسلمین یومئذ خالدبن الولید بعثه أبوبکر، فأخذه العدو، فلما هزم العدو رد خالد فرسه - په کومه ورځ چه مسلمانان (د جنګ د پاره) کفاروسره مقابله شو ابن عمر رضی الله عنهما په اس باندې سوړوو په هغه ورځ د مسلمانانو امیرخالدبن ولید رضی الله عنه وو هغه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د اسلامی لښکر امیرجوړ کړې لیګلې وو. (د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما) اس دښمن اونیولو کله چه دښمن شاته شو نوخالد (ابن ولید رضی الله عنه) هغه ته د هغه اس واپس کړو.

**قوله** یوم لقی المسلمون - د صحیح بخاری په دې روایت کښې مفعول محذوف دې. حافظ ابونعیم رحمه الله او اسماعیلی رحمه الله چه کوم روایت نقل کړې دې په هغې کښې مفعول ذکردې روایت اسماعیلی رحمه الله عن محمدبن عثمان بن أبي شیبة عن أحمد بن یوسف په طریق او ابونعیم رحمه الله أحمدبن یحیی الحلواني په طریق سره نقل کړې دې په دې کښې دی: یوم لقي

---

[1] ) فتح الباری:۶/۲۲۵.
[2] ) تحفة الباری:۳/۵۲۰.
[3] ) د ترجمة الباب رومبی روایت کښې د دې تخریج تیرشوی دې.
[4] ) کشف الباری:۲/۱۵۹.
[5] ) کشف الباری:۲/۳۶۷، ۳۷۰.

المسلمون طینًا وأسدا (۱) یعني په کومه ورځ چه مسلمانان د جنګ دپاره قبیله طي او اسد سره ملاؤشو د اسماعیلي او ابونعیم هم په دې طریق کښې ابن عمر رضی الله عنهما د اس د دښمن په تحویل کښې راتللو وجه هم ذکرده د روایت الفاظ دادی فاقتحم الفرس بعبدالله بن عمر جرفًا فصرعه وسقط ابن عمر فعار الفرس (۲) مطلب داچه اس عبدالله بن عمر رضی الله عنهما واخستلو او حرف ته نې ټوپ کړو اوهغه نې راغورزولو ابن عمر رضی الله عنهما پریوتلواو اس وزان شو اوتختیدو

**د باب په روایاتوکښې تعارض اوددې تطبیق** په روایاتوکښې چه دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما د اس کومه واقعه نقل ده هغه کله پیښه شوې ده؟ په دې سلسله کښې د ترجمة الباب دویم او دریم روایت کښې تعارض دې په رومبی روایت کښې ده د اس واقعه چه د رسول اکرم ﷺ په مبارکه زمانه کښې شوې اود غلام واقعه ددې نه پس هم د دې روایت په دویم طریق کښې دی چه دواړه واقعات د رسول الله ﷺ د زماني مبارکې نه پس سره متعلق دی په دې دویم طریق کښې فرس او عبد دواړوسره متعلق فلحق بالروم الفاظ مروی دی اولکه څنګه چه په دریم روایت کښې دی چه دحضرت خالد بن ولید رضی الله عنه په مشرتی کښې په روم باندې د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په زمانه کښې شوې په دې وجه چه دویم روایت د دریم روایت په تناظر کښې اوکتلې شي نوددې نه هم دغه ثابتیږی چه د فرس او عبد واقعات د رسول اکرم ﷺ د وفت نه پس پیښې شوی دی او دریم روایت د رومبی روایت سره متعارض دې دا روایت د رومبی روایت برعکس دې په رومبی روایت کښې د فرس واقعه د رسول اکرم ﷺ د زمانې بیان کړې شوې ده او په دې کښې د اس د ورانیدو واقعه د ابوبکرصدیق رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې شوې لکه چه تعارض په اصل کښې د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما د فرس والا واقعې دتاریخ په تعین کښې دې

علامه قسطلانی رحمه الله د باب رومبې روایت یعنی د ابن نمیر په طریق چه دې ته ترجیح ورکولوسره فرمائی چه ددې طریق متابعت اسماعیل بن زکریا رحمه الله هم کړې دې چه د فرس واقعه د رسول کریم په مبارکه زمانه کښې پیښه شوې (۳) رومبی روایت ته ترجیح ورکولوسره علامه داؤدی رحمه الله فرمائی چه ددې روایت په سند کښې عبیدالله راوی د نافع نه حدیث روایت کولوکښې په دریم طریق کښې واقع موسی بن عقبه نه أثبت دې (۴) حافظ ابن عبدالبر رحمه الله هم ددې تصویب کړې دې (۵)

امام ابن ماجه رحمه الله کتاب الجهاد باب ما أحرز العدو ثم ظهرعلیه المسلمون لاندې عن علی بن محمد بن نمیرعن عبدالله عن نافع عن ابن عمر په طریق سره کوم روایت ذکرکړې دې په هغې کښې دی قال

---

(۱) فتح الباري:۶/۲۲۵.

(۲) فتح الباري:۶/۲۲۵.

(۳) إرشادالساري للقسطلاني:۵/۱۷۹.

(۴) إرشادالساري:۵/۱۷۹ وأوجز المسالک:۸/۲۸۵.

(۵) أوجز المسالک:۸/۲۸۵.

ذهبت فرس له فاخذها العدو وظهرعلیهم المسلمون فردعلیه فی زمن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم... (۱) هغوی د باب لاندې هم دغه یو طریق ذکر کولو باندې اکتفاء کړې ده. دویم طریق ئې نه دې ذکر کړې د دې صنیع نه د هغوی رحجان هم متعین کیږی چه د هغوی په نیز راجح هم دغه دې چه د ابن عمر رضی الله عنهما د فرس واقعه عهدنبوی کښې پیښه شوې ده د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دورخلافت سره د دې تعلق نشته. والله اعلم

**قوله حکم ما أحرز العدو ثم ظهر علیه المسلمون** - ترجمة الباب کښې چه امام بخاری رحمه الله کومه فقهی مسئله ذکر کړې ده اوس د هغې تفصیل اوګورئې که اهل حرب په اهل اسلام باندې حمله اوکړی د مسلمانانو په مالونو او املاک باندې قبضه کولو سره دارالحرب ته یوسی بیا اهل اسلام په دارالحرب باندې حمله اوکړی او هغه اموال او املاک واپس دارالاسلام ته راوړی نو په مسلمانانو کښې هرسړې حسب سابق به د خپل متعین مال مالک وی یا هغه اموال به د غنیمت په حکم کښې راتلو سره لاعلی التعیین په ټولو کښې تقسیم کیږی؟

**د امام شافعی رحمه الله ابوثور او ابن منذرمسلک**:- د دې حضراتو په نیز په دارالاسلام باندې غلبه او استیلاء سره د اهل اسلام په اموالو او املاکو باندې د حربیانو ملکیت نه ثابتیږی نوچه کله اهل اسلام په دارالحرب باندې حمله کولو سره دغه اموال او املاک دارالاسلام ته راوړی نوچه کوم مال د چا ملکیت وو هغه به حسب سابق هم د هغه ملکیت کښې وی د دغه مالونو حکم به د مال غنیمت نه وی. (۲)

**امام حسن امام زهری اوعمروبن دینارمسلک**: د دې حضراتو په نیز د مسلمانانو په زور اخستې شوې مال د دارالحرب نه دارالاسلام ته د منتقل کیدو نه پس به په غانمینو کښې تقسیم کیږی یعنی په دارالحرب باندې حمله کونکی مجاهدین به د دې مستحق وی د مخکینی مالک حق به په دغه مال باندې باقی پاتې نه شی. (۳)

د دې حضراتو استدلال دا دې چه د مسلمانانو په غلبه او استیلاء سره څنګه چه د مشرکینو مال د مسلمانانو د پاره غنیمت جوړیږی دغه شان ذکرشوې مال هم. په کوم چه د اهل حرب غلبه او استیلاء اوشی هغه د هغوی ملک کیږی لهذا د مسلمانانو په غالب راتلو سره به هغه د مال غنیمت په توګه په مجاهدینو کښې تقسیم کیږی. (۴)

**د جمهورفقهاؤمسلک**:- امام اعظم ابوحنیفه امام ثوری امام اوزاعی امام مالک او د یو روایت مطابق امام احمد رحمهم الله مسلک دا دې چه اهل حرب په اهل اسلام باندې د حملې کولو د وجه نه به د مسلمانانو د مالونو مالکان جوړشی (۵) خوچه په دارالحرب باندې حمله کولو سره

---

(۱) سنن ابن ماجه: ۲۰٤ کتاب الجهاد باب ماأجرزه العدو ثم ظهرعلیه المسلمون.

(۲) الاستذکار لابن البر: ٤/٤٤ فتح الباری: ۲۲٤/۶ والمغنی لابن قدامة: ٤۸۲/۱۰.

(۳) المحلی بالاثار لابن حزم رحمه الله ۳۵۵/۵ وشرح ابن بطال رحمه الله ۲۲۷/۵ وفتح الباری: ۲۲٤/۶ وأوجز المسالک: ۲۷۱/۸.

(٤) حواله بالا.

(۵) المغنی لابن قدامة: ٤۷۵/۱۰.

اهل اسلام خپلو مالونه په زورواخستل دارالاسلام ته نی راوړل نود دې حضراتو په نیزپه دې کښې تفصیل دې

که چرې مخکینی مالکان دَ مال غنیمت دَ تقسیم نه وړاندې خپل متعین مال اوموموی نوَدهغوی ملکیت به وی اودَ غنائم دَ تقسیم نه پس په خپل مال باندې به دَزورمالك ملکیت باقی پاتې نه شی بلکه هغه به دَغانمین ملکیت وی البته دَ دې حضراتو په نیز دَ غنائم دَ تقسیم نه پس که چرې زورمالك خپل مال اولیدو اودهغه خواهش دې چه غانم ته دَ قیمت په عوض دهغه مال ملاؤ شی نوبیادَ غانم په مقابله کښې دَهغه زیات حق دې چه دَ قیمت دَ اداکولوپه صورت کښې هغه ته دغه مال ورکړې شی.[۱]

په دې صورت کښې شریعت دَاصل مالك او غانم دَ دواړو مفادورعایت اوخیال ساتلې دې.

چونکه دَمال غنیمت دَ تقسیم نه پس دَ زورمالك ملکیت په دغه مال باندې باقی نه پاتې کیږی او دې باندې دَغانم ملکیت قایم کیږی په دې وجه که زورمالك خپل مال بې عوض اخستې وې نوغانم به په نقصان کښې پاتې کیدو په دې وجه دَخپل مال دَحاصلولو دَپاره زورمالك باندې دَ دې قیمت اداکول لاَزم گرځولې شوی دی دې دَپاره چه خپل مال واخلی اوزورِ مالك هم فائده کښې پاتې شی اودَ غانم حق هم اوه وهلې شی.[۲]

صحابه کرامو کښې حضرت عمربن الخطاب حضرت علی حضرت زیدبن ثابت ﷺ اوتابعینونه سعیدبن المسیب عطاء بن ابی رباح قاسم اوعروه رحمهم الله مسلك هم دغه دې.

[۳] په یوروایت کښې امام احمد رحمه الله په نیزدمال غنیمت دَتقسیم نه پس په خپل مال باندې دَزورِ مالك ملکیت قطعًا باقی نه پاتې کیږی اوهم غانم دَدې اصل مالك جوړیږی [۴] لیکن په المغنی کښې دی چه دَ امام احمد رحمه الله په نیزږومبې روایت معمول به دې [۵]

**امام شافعي ابوثور او ابن منذر رحمهم الله وغیره دلائل اودَ هغې رد.** - علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی دَدې حضراتو استدلال دَ احادیث باب نه دې په کوم کښې چه تصریح ده حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته دَهغه اس اوغلام چه دارالحرب ته تختیدلی وو واپس کړې شوی وو.[۶]

علامه ابن حزم رحمه الله هم په المحلی بالاثار کښې دَدې روایاتونه دا استدلال کړې دې چه دَ اهلِ اسلام په مال اومتاع باندې دَ مشرکانو ملکیت هډو ثابتیږی نه ځکه ده چه دَ دارالحرب نه دَ مسلمانانو مال اومتاع په زور اخستل اودارالاسلام ته راوړلونه پس به بهرصورت خپل زورِ مالك ته حواله کولې شی [۷] خو حقیقت خودادې چه احادیث باب پخپله دَ دغه حضراتوخلاف

---

[۱]) المدونة الکبری:۵۹۲/۲ والمغنی لابن قدامة:۴۷۱/۲۱ وعمدة القاری:۳/۱۵ وردالمختار علی الدرالمختار:۲۵۷/۶ وأوجز المسالک للشیخ زکریا الکاندهلوی رحمه الله ۲۵۷/۶.

[۲]) ردالمحتار علی الدرالمختار لابن عابدبن الشامی:۲۵۷/۶.

[۳]) شرح ابن بطال:۲۲۷/۵ وعمدة القاری:۳/۱۵.

[۴]) المغنی لابن قدامة:۴۷۱/۲۱.

[۵]) المغنی لابن قدامة:۴۷۱/۲۱.

[۶]) إرشادالساری للقسطلانی:۵۴۳/۶.

[۷]) المحلی الاثار للعلامة لابن حزم:۲۶۰/۵.

دَ جمهور فقهاؤ دپاره حجت دي ځکه چه دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما د ترجمة الباب والا په روايت كښې اجمال دي د موطاامام مالك رحمه الله هم په دې روايت كښې آخركښې داتصريح هم ده. وذلك قبل أن يقاسم (١) يعنى مجاهدين اسلام دَ دارالحرب نه چه کوم اس اوغلام اخستي وو دارالاسلام ته ئې راوړې وو هغه حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دَ مال غنيمت دتقسيم نه وړاندې واپس کړې شوې وو

هم دغه روايت عن رشدين عن يونس عن الزهري، عن سالم عن أبيه په طريق په سنن دارقطني كښې هم مروى دې په دې كښې دى. من وجد ماله الفئ قبل أن يقسم فهوله، ومن وجد بعد ماقسم فليس له شئ (٢) مال غنيمت دتقسيم نه وړاندې چا چه خپل مال اوموندلو هغه مال (بغيرد عوض نه دهغه ملكيت دې خودَ غنيمت دتقسيم نه پس موندلو په صورت كښې به هغه ته دهيڅ اخستو هم حق نه وى

دمال غنيمت دتقسيم نه پس دَ ملكيت باقى نه پاتې كيدو مطلب دادې چه هغه به دعوض داداكولونه بغير به دَ خپل مال مالك خونه شي خودعوض اوقيمت اداكولونه پس دغانم په مقابله كښې به دهغه زيات حق وى. ددې تائيددَ رسول الله ﷺ حديث اودحضرت عمر رضي الله عنه دوه آثارنه كيږى چه وړاندې دَجمهورو دَدلائلو لاندې راروان دى

**دَ جمهورو دلائل:-** ① امام اعظم ابوحنيفه امام ثورى امام اوزاعى امام مالك اوامام احمدبن حنبل رحمهم الله استدلال دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَ حديث نه دې داروايت عن حسن بن عمارة عن الملك بن ميسرة عن طاوس عن ابن عباس رضي الله عنهما په طريق سره نقل دې په دې كښې دى. أن رجلا وجد بعيرًا له كان المشركون أصابوه، فقال له النبى صلى الله تعالى عليه وسلم: إن أصبته قبل أن يقسم فهولك، وإن أصبته بعد ماقسم، أخذته بالقيمة (٣) يعنى يوسړى خپل اوښ اوليدلو كوم چه مشركانو اخستې وو (او روستو مسلمانانو په دارالحرب باندې حمله اوكړه اوهغه ئې په مال غنيمت كښې دوباره دارالاسلام ته راوړو) نورسول الله ﷺ هغه مخاطب كړو وئې فرمائيل كه دا اوښ دمال غنيمت دتقسيم نه وړاندې واخستو نودابه هم ستاوى اوكه دمال غنيمت دتقسيم نه پس درته ملاؤشى نوبيا په قيمت وركولوسره ئې اخستې شى دا روايت امام دارقطني رحمه الله او امام بيهقي رحمه الله هم روايت كړې دې. (٤)

**دَ جمهورو په دليل كلام اودهغې جواب** -حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلاني رحمه الله دَ جمهور

---

(١) موطاللامام مالک رحمه الله ص:٤٩٩ باب ماير دقبل أن يقع القسم لما أصاب العدو. وإعلاء السنن:٣١١/١٢.

(٢) سنن الدارقطني: ١١٣/٤.

(٣) الاستذكار للحافظ ابن عبدالبر رحمه الله ٦ د والمغني مع ذيله المسمى به الشرح الكبير على مقنع لموفق الدين وشمس الدين ابن القدامة: ١٠/٤٦٩ – ٤٧١ كتاب الجهاد حكم مالواخذه اهل الحرب من اموال المسلمين وعبيدهم فادركه صاحبه قبل قسمة فهواحق به كشف البارى ٥٧٧/٢٠ .

(٤) نصب الراية للزيلعي: ٤٣٤/٣ وأوجزالمسالك إلى موطاء الامام مالك: ١٧٥/٩ دارالقلم دمشق.

مذکره دلیل باندې د سندپه حواله سره کلام کولوسره تحریر فرماني وإسناده ضعیف [۱] په اصل کښې ددې روایت تضعیف ددې په سند کښې موجود راوی حسن بن عمارة د وجه کړې شوې دې د یحیی بن معین رحمه الله نه دَدوی باره کښې لیس بشئ او ابراهیم بن یعقوب جوزجاني نه ساقط الفاظ جرح منقول دہ [۲] او ابن حزم رحمه الله خو د حسن بن عماره د ضعیف یقین کولو کښې هیڅ کسر نه دې پریخودې [۳]

لیکن حقیقت دادې چه ددې روایت تائیدپه ډیرومتابعاتوسره کیږی په دې وجه دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما دامذکوره روایت ضعیف ګرځول انصاف نه دې علامه عیني رحمه الله د امام احمدبن حنبل رحمه الله دا حواله نقل کړې ده چه د حسن بن عماره نه علاوه مذکوره روایت مسعرعن عبدالملك په طریق سره مروی دې دَدې تائید د یحیی بن سعید رحمه الله په دې قول سره کیږی سالت مسعرا عنه فقال: هو من حدیث عبدالملك ولكن لا أحفظه [۴]

دغه شان امام علي بن المدیني رحمه الله فرماني: روی عن یحیی بن سعید أنه سال عنه فقال: هو من روایة عبدالملك عن طاؤوس عن ابن عباس رضی الله عنهما [۵]

دَدې اقوالو نه معلومیږی چه حسن بن عماره په چاچه د ضعف الزام لګولې شوې دې په مذکوره روایت نقل کولو کښې متفرد نه دې بلکه د ډیرو متابعاتو نه ددې تائید کیږی علامه ظفراحمد عثماني الجوهر النقي په حواله سره د ابن عدی رحمه الله قول نقل کړې دې وقد روی هذا الحدیث عن مسعر عن عبدالملك [۶] وړاندې علامه عثماني رحمه الله لیکی وهذه متابعة جیدة قویة وتابعه إسماعیل بن عیاش فرواه عن عبدالملك بن میسرة، کما في المحلی [۷] بل امام شافعي رحمه الله هم دَدې متابعت عن أبي یوسف القاضي عن الحسن بن عمارة عن الحکم بن عتبة عن مقسم په طریق سره کړې دې چنانچه امام بیهقي رحمه الله دَدې متابعت متعلق فرمائی: هکذا وجدہ عن أبي یوسف عن الحسن بن عمارة عن الحکم بن عتبة، رواه غیره عن الحسن بن عمارة عن عبدالملك [۸]

امام ابو یوسف رحمه الله فقیه او مجتهد وو په روایت حدیث کښې دَهغوی ثقاهت او درایت هم

---

[۱]) فتح الباري:۲۲۴/۶ وإرشاد لساری:۱۷۹/۵.
[۲]) عمدة القاري: ۳/۱۵.
[۳]) المحلی بالاثار لابن حزم:۳۵۷/۵.
[۴]) عمدة القاري:۴/۱۵.
[۵]) عمدة القاري:۴/۱۵.
[۶]) إعلاء السنن:۳۱۰/۱۲.
[۷]) إعلاء السنن:۳۰۱/۱۲ والمحلی بالاثار لابن حزم:۳۵۷/۵.
[۸]) نصب الرایة للزیلعي رحمه الله ۴۳۶/۳ وإعلاء السنن ۳۱۰/۱۲.

مسلم دې دمذکوره روایت نه دهغوی استدلال کول ددې روایت د صحت دلیل دې بیا د مسعراواسماعیل بن عیاش متابعت په خانې پخپله د حسن بن عماره د روایت په صحت باندې صریح دلیل دې په دې اصولوباندې ټول محدثین متفق دی چه کله د یوضعیف روایت متابعت د بل ضعیف یاددې نه اقوی روایت سره وی نوهغه حدیث ضعیف نه پاتې کیږی د قوی درجه حاصلوی د احنافویا جمهورفقهاؤ د استدلال تضعیف د حسن بن عماره د وجه نه شوې دې ددې دترديد دپاره ډیر متابعات ذکرکړې شو هم ددې حسن بن عماره بعض حضراتو توثیق هم کړې دې مثلاً محمد بن اسحاق رحمه الله ددوی باره کښې فرمائی حدثنی من لا أتهم

② د جمهورفقهاؤ دویم استدلال دحضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د اثرنه دې دا اثر په مصنف عبدالرزاق کښې عن محمد زائد عن مکحول عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه په طریق سره روایت کړې شوې دې په دې کښې دی أنه إن أدرك قبل القسمة رد إلى صاحبه بغير ثمن، وإن لم يدرك إلا بعد القسمة فصاحبه أحق به بقيمته.(۱) که چرې هغه دتقسیم (غنیمت)نه وړاندې خپل مال اوموندلو نودې مالك ته به دغه مال بې قیمته واپس ورکولې شی خوکه دتقسیم نه پس نی اوموندلو بیاپه دغه مال باندې دهغه حق د قیمت اداکولو په صورت کښې په خانې دې علامه ابن حزم رحمه الله المحلی کښې ددې اثر درې نور طرق هم ذکرکړی دی.(۲)

③ د جمهوروردریم استدلال دحضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د اثر نه دې کوم چه امام طحاوی اوامام دارقطنی رحمهما الله عن رجاء بن حیوة عن قبیصة بن ذویب په طریق سره د صحیح سند روایت کړې دې په دې کښې دی أن عمر رضى الله عنه قال: فيما أحرزه المشركون فأصابه المسلمون فعرفه صاحبه قال إن أدركه قبل أن يقسم فهوله، وإن جرت فيه السهام فلا شئ له.(۳)

مطلب دادې چه کوم مالی مشرکانو اخستې دې او مسلمانانوهغه (په جهادکښې دوباره) ترلاسه کړو او روستو اصل مالك خپل مال اوپيژندلو نوحضرت عمر رضي الله عنه فرمائی که هغه ته دا مال دتقسیم نه وړاندې ملاؤشوې وی نوبیاخوداد هغه حق دې خوکه په مجاهدینوکښې حصې تقسیم شوې نوبیادهغه هیڅ حق باقی نه پاتې کیږی.

داصرف یواتفاق دې چه حضرت عمر رضي الله عنه په دې اثرکښې داتصریح نه ده کړې چه دخپل مال قیمت اداکولونه پس د غانم په مقابله کښې زورمالك زیات حقدارد دې گنی دحضرت عمر رضي الله عنه په اول ذکرشوی اثرکښې دا تصریح راغلې ده دهغوی په یوبل اثرکښې هم دا تصریح موجود ده دغه اثر وړاندې راځی.

**دحضرت عمر رضي الله عنه په اثرباندې اشکال اودهغې جواب.** دحضرت عمر رضي الله عنه ددې دویم اثر په سند کښې راوی قبیصه بن ذؤیب باندې کلام کړې شوې دې چه دحضرت عمر رضي الله عنه نه دهغه سماع

---

(۱) المحلى بالاثار لابن حزم:۵/۳۵۴ كتاب الجهاد اختلاف الناس فى مال المسلم يجده فى غنيمة.
(۲) المحلى بالاثار لابن حزم:۵/۳۵۴.
(۳) عمدة القارى۱۵/۴ وإعلاء السنن:۱۲/۳۱۲.

او لقاء (ملاقات) ثابت نه دې (۱) ابوسهیل ﷫ دا اثر مرسل ګرځولي دې (۲) لیکن حقیقت دادې چه دا اثر موصول دې حافظ ابن عبدالبر ﷫ په الاستیعاب کښې لیکي ‌د قبیصه بن ذؤیب پیدائش په یوروایت کښې د فتح مکه په ورځ او په یوروایت کښې دی چه د هجرت په اول کال شوې (۳) روایت کښې دی چه حضورپاک ﷺ دهغه دپاره دبرکت دعا فرمائیلې (۴) ددې دپاره ابن شاهین فرمائیلی چه دا صحابی وو. (۵) حافظ ابن حجر ﷫ تهذیب التهذیب

کښې د ابن قانع داقول دهغه باره کښې نقل کړې دې له رؤیة (۶) ددې نه هم د قبیصه بن ذؤیب دصحابی کیدو تائید کیږی. ددې نه علاوه حضرت ابوبکر صدیق ﷛ ابودرداء ﷛ حضرت عائشه صدیقه ﷝ او حضرت ابوهریره ﷛ غوندې کبار صحابه کرامونه نې د حدیث سماع کړې ده اودهغوی نه نې روایات اخستې دی (۷)

د مذکوره دلائلو په رنړا کښې دحضرت عمر ﷛ سره د قبیصه بن ذؤیب ملاقات ممکن دی دمحدثینو په نیزد سند د اتصال دپاره د راوی اومروی عنه دزمانې یوکیدل هم کافي دی. (۸) امام مسلم ﷫ هم د صحیح مسلم په مقدمه کښې فرمائیلی چه د اتصال سند دپاره امکان لقاء کافي ده. (۹) فرض کړه که حضرت عمر ﷛ سره د هغوی ملاقات ثابت هم نه وی خوبیا هم د اصول حدیث په رنړا کښې دا اثر موصول دې ځکه چه کله حضرت ابوبکر ﷛ اوحضرت ابودرداء ﷛ سره د قبیصه بن ذؤیب ملاقات ثابت دې نو حضرت عمر ﷛ سره ددوی دملاقات امکان د دواړو دزمانې یوکیدل بالکل هم یوه خبره ده.

دویم جواب علامه عینی ﷫ داورکړې دې چه د قبیصه بن ذؤیب ملاقات که حضرت عمر ﷛ سره ثابت نه وی نوبیاهم مذکوره روایت مرسل ګرځول معمول به جوړیدې شی اوددې تائید هم دحضرت عمر ﷛ د یواثر نه کیږی. هغه دادې: عن رجاء حیوة أن ابن عبیدة رضی الله عنهما کتب إلی عمر بن الخطاب — رضی الله عنه — فی هذا فقال: من وجد ماله بعینه فهو أحق به بالثمن الی حسب علی من أخذه، وکذلك إن بیع ثم قسم منه فهو أحق به بالثمن. (۱۰)

علامه ظفر احمد عثمانی ﷫ یوقوی جواب ورکړې دې هغه فرمائی چه تدریب الراوی کښې

---

۱) عمدة القاری: ۱۵/ ٤.

۲) إعلاء السنن: ۱۲/ ۳۱۲.

۳) الاستیعاب لابن عبدالبر علی هامش الاصابة لابن حجر ۳/ ۲۵۵ و تهذیب التهذیب: ۸/ ۳٤۷.

٤) الاستیعاب علی هامش الاصابة ۳/ ۲۵٦ و تهذیب التهذیب: ۸/ ۳٤۷.

۵) إعلاء السنن: ۱۲/ ۳۱۲.

٦) تهذیب التهذیب: ۸/ ۳٤۷.

۷) تهذیب الکمال فی أسماء الرجال للحافظ المزی: ۲۳/ ٤۷۷ و تهذیب التهذیب: ۸/ ۳٤٦.

۸) تدریب الراوی فی شرح تدریب النووی: ۱/ ۲۱۵.

۹) مقدمة صحیح مسلم: ۱/ ۲۱ — ۲۲.

۱۰) عمدة القاری: ۱۵/ ۳.

علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه کله د مرسل تائید د مسند روایت نه یا بل داسې مرسل روایت سره وی د کوم راوی چه د رومبی مرسل نه مختلف وی نو داسې دواړه روایتونه د صحیح درجې لری ترهغه وخته پورې چه د دغه دواړو په مقابله کښې یو صحیح حدیث معارض شی نو دغه دواړو ته به ترجیح حاصله وی او صحیح روایت به مرجوح وی د قبیصه مذکوره روایت امام بیهقی رحمه الله د حضرت عمر رضی الله عنه په دریو واسطوسره نقل کړې دې او یویو کولوسره په دوو مختلفو واسطوسره عبدالرزاق او ابن ابی شیبه هم روایت کړې دې دغه شان تول پنځه مراسیل جوریری لکه چه هم یوروایت د حضرت عمر رضی الله عنه نه په پنځو واسطوسره نقل دې او هرمرسل د بل د پاره موید دې (۱) په دې صورت کښې که د قبیصه روایت مرسل تسلیم هم کړې شی نو هیڅ مضائقه نشته ځکه چه د اصول حدیث په رڼا کښې صحیح روایت هم کوم چه د دې معارض وی مرجوح به وی.

**د مکاتب مدبر او ام الولدحکم:** - دلته دویمه مسئله داده چه که هم په دغه مال کښې کوم چه اهل حرب اخستې دې او اهل اسلام په حمله کولوسره دوباره حاصل کړو نو د مکاتب مدبر او ام الولد هم شامل وی نو د دوی څه حکم دې؟ په دې کښې هم اختلاف دې

**د امام مالک امام احمد اوامام ثوری رحمهم الله مسلک** - د امام مالک امام احمد او امام ثوری رحمهم الله په نیزد مسلمانانو د عامو مالونو په شان په مکاتب مدبر او ام الولدباندې هم په غلبه اواستیلاء سره د اهل حرب د مشرکینو ملکیت ثابتیږی لهذا هغه د عامو مالونو په شان د مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې به زوړمالک ته واپس کولې شی خو د تقسیم نه پس به صرف دې صورت کښې زوړمالک ته واپس کول جائزوی کله چه هغه د دې قیمت یا عوض اداکړی (۲)

د دوی استدلال د حضرت علی رضی الله عنه د روایت نه دې: **عن قتادة أن مكاتبا أسره العدو فاشتراه رجل، فسأل بن قرواش عنه علي بن أبي طالب — رضي الله عنه — فقال له علي رضي الله عنه: إن أفتكه سيده فهو على كتابته وإن أبى أن يفتكه فهو للذي اشتراه.** (۳) دښمن یو مکاتب قید کړې وو کوم چه یو سړی واخستو. بکر بن قرواش د حضرت علی رضی الله عنه نه د دې معامله د نوعیت د شرعی حکم تپوس اوکړو نو حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل که آقا دا مکاتب د دښمن د قید نه آزادکړې وی نو هغه به د وړاندې په شان د هغه مکاتب وی اوکه آقاداسې نه وی کړې او د خلاصی نه ئې انکار اوکړو نو بیابه د مکاتب اخستونکې د هغه مالک وی

**د احنافو مسلک:** - د احنافو په نیز مکاتب مدبر اوام الولد د عام مالونو په حکم کښې نه دی. شرعًا دادریواړه د آزادپه حکم کښې دي په کوموچه د عامو مالونو په شان د اهل حرب د مشرکانو ملکیت غلبه او استیلاء قطعًا نه ثابتیږی په دې وجه د عام مالونو برعکس به دریواړوکښې په هریوباندې د زوړمالک ملکیت په هرصورت برقراروی. د مال غنیمت په

---

(۱) إعلاء السنن: ۳۱۲/۱۲.

(۲) المغني والشرح الكبير للامامين موفق الدين وشمس الدين ابن قدامة: ۴۷۴/۱۰.

(۳) أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه انظر المحلى بالاثار لابن حزم: ۳۵۳/۵.

تقسیم سره ددې ملکیت نه ختمیږی نوکه دغنیمت مال تقسیم شوې وی اوکه نه مکاتب مدبراو ام الولد به د مخکینی مالك په ملکیت کښې وی.(۱)

**د احنافو استدلال** د احنافو استدلال دحضرت عمر رضی الله عنه د اثرنه دې د سنن سعیدبن منصور روایت دې حدثنا عثمان بن مطر الشیبانی حدثنا أبوحریز عن الشعبی قال: أغار أهل "ماه" وأهل "جلولاء" علی العرب، فاصابوا سبایا من العرب ورقیقا، ومتاعا، ثم إن السائب بن الاقرع عامل عمر — رضی الله عنه — غزاهم ففتح ماه" وکتب إلی عمر — رضی الله عنه — فی سبایا المسلمین ورقیقهم ومتاعهم قد اشتراه التجار من أهل ماه" فکتب الیه: أن المسلم أخو المسلم لایخونه ولا یخذله، فایما رجل من المسلمین أصاب رقیقه ومتاعه بعینه فهو أحق به، وان أصابه فی أیدی التجار بعد ما أقتسم فلا سبیل إلیه، وأیما حر اشتراه التجار فانه یرد علیهم رؤوس أموالهم فان الحر لایباع ولایشتری.(۲)

په روایت کښې دی چه اهل "ماه" او "جلولاء" په جزیرة العرب باندې حمله اوکړه د عربو قیدیان غلامان اومالونه ئی لوټ کړل لاړل. حضرت عمر رضی الله عنه سائب بن اقرع د لښکرامیرجوړکړو اودهغوی خلاف ئی د جنګ په مهم باندې روان کړل هغوی ته فتح اوشوه نو چه د مسلمانانو کوم قیدیان غلامان اومال اومتاع چه سوداګرود اهل ماه نه اخستې وو حضرت سائب بن اقرع دهغې دحکم معلوملولوپاره دحضرت عمر رضی الله عنه په خدمت کښې استفسارنامه اولیګله حضرت عمر رضی الله عنه په جواب کښې اولیکل یومسلمان د بل مسلمان رور دې هغه نه د دهٔ سره خیانت کوی او نه هغه بې آسرې پریږدی. کوم مسلمان چه خپل غلام یا مال اووینی هم هغه دهغې اصل حقداردې. اوکه چرې هغه دا مالونه د غنیمت د مال دتقسیم نه روستو سوداګرو سره اووینی نو بیا هغه سره ددې د حاصلولو هیڅ لارنشته. اوالبته که سوداګرو احرار اخستې وی نوهغه (سوداګرو)ته دې دهغې پیسې واپس کړی (اواحرار دې دهغوی نه واپس واخلی) ځکه چه د آزاد (حر) اخستل اوخرڅول جائزنه دی.

**قوله**: وإن أصابه فی أیدی التجار بعد ما اقتسم فلا سبیل له:- یعنی د غنیمت دمال د تقسیم نه پس کله چه مخکینې مالک خپل مال متاع اوغلامان وغیره سوداګروسره اووینی نوبیاهغه سره ددې دحاصلولوهیڅ لارنشته. علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله فرمانی چه د حضرت عمر رضی الله عنه ددې اثر مطلب دادې که هغه دخپل مال قیمت نه اداکوی نوپه دغه صورت کښې به هغه ته هیڅ نه شی ورکولې. کنی سوداګروته دمال قیمت اداکولونه پس به هغه زیات حقداروی. لکه چه شاته هم دحضرت عمر رضی الله عنه یواثرکښې ددې تصریح موجودده.

دلته په زیربحث مسئله کښې د احنافو استدلال په اصل کښې حضرت عمر رضی الله عنه مذکوره اثر کښې فان الحر لایباع ولایشتری نه دې. اودحریت او آزادنی علت په مکاتب مدبر او ام الولدکښې موجود دې په دې وجه به د غلبه او استیلاء نه په دوی باندې د حربیانو ملکیت هیڅ کله نه

---

(۱) أوجز المسالک: ۸/۳۸۰ — ۳۸۴. ورد المختار علی الدر المختار: ۶/۲۵۹ کتاب الجهاد.

(۲) أخرجه سعید بن منصور فی سننه: ۲/۲۸۸، ۲۸۹ دارلکتب العلمیة بیروت

تبتبري په دې وجه چه کله اهل اسلام په دارالحرب باندې د حمله کولو په نتيجه کښې هغه د حربيانو نه واخلي او بيائې دارالاسلام ته راوړي نو پخواني مالکان به د دې د اخستلو زيات حقدار وي.[1]

**امام مالک امام احمداو ابوثور رحمهم الله د استدلال رد**:- د دوی استدلال د حضرت علی رضي الله عنه د اثرنه وو چه که د مکاتب آقا دې خلاص کړو نو هغه به هم هغه شان مکاتب وی کنی به بل صورت کښې به مکاتب اخستونکې هم اصل مالك وی. د دې استدلال جواب ورکولو سره علامه ظفراحمد عثمانی رحمه الله فرمائي. وهومحمول عندنا على أن مولاه إن لم يفتكه، فللذى اشتراه أن يحبسه عنده حتى يتوفى ثمنه بدليل ..... أن الحر لايباع ولايشترى والمكاتب والمدبر وأم الولد في حكم الحر، لايباع أحد منهم ولايشترى.[2] يعني زمونږ په نيزدا اثر په هغه صورت باندې محمول دې چه کله آقا د مکاتب په راخلاصولو کښې انکاراوکړی نو بيا د هغه اخستونکې صرف د دومره موده د پاره د خپل خدمت د پاره رامنع ساتی په کومې سره چه هغه قيمت پوره شی چه د هغه د اخستلو په وخت ئی اداکړې وو. د دې دليل د حضرت عمر رضي الله عنه دا اثر دې چه د آزادسړی اخستل اوخرڅول جائزنه دی. مکاتب مدبر اوام الولد هم د آزاد په حکم کښې دی په دې وجه به په دوی کښې د يوهم اخستل اوخرڅول جائزنه وی.

**د عبدآبق حکم**:- هم د دې مسئله په ذيل کښې فقهاؤ د عبدآبق حکم هم بيان کړې دې. د عبدآبق په حکم کښې د ائمه احناف په مينځ کښې اختلاف دې.

**د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مسلک**:- د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله په نيز عبدآبق مکاتب مدبر او ام الولد په حکم کښې دې. په دې وجه د دارالحرب د تختيدونه پس د مولاملکيت ختميدو د وجه نه عبدآبق د آزاد غلام په شان د هيچا مملوک نه شی جوړيدې. هم دغه قول د امام احمدبن حنبل رحمه الله هم دې.[3]

**د صاحبينو رحمهما الله قول**:- د قاضی ابويوسف رحمه الله او محمد رحمه الله په نيز د عبدآبق حکم د عام اموال او املاك په شان دې. په دې وجه د دې حضراتو په نيز د غلبه او استيلاء په ذريعه به اهل حرب د عبدآبق مالکان وی. کله چه اهل اسلام په دارالحرب باندې حمله اوکړی هغه اونيسی خان سره ئی راولی نو د غنيمت د مال د تقسيم نه وړاندې که زوړ مالك به د قيمت اداکولونه بغير د اخستلو مجازوی خو د مال غنيمت د تقسيم نه پس د ده استحقاق په قيمت اداکولو سره مشروط وی[4] هم دغه قول د امام مالك رحمه الله هم دې. په المدونه کښې دی چه د هغوی په نيز عبدآبق او غيرآبق دواړو يوحکم دې.[5] د حنابله هم دغه مسلك دې په المغنی کښې دی.

---

[1] إعلاء السنن:١٢/٣١٩.
[2] إعلاء السنن:١٢/٣١٩.
[3] إعلاء السنن:١٢/٣١٩
[4] أوجزالمسالک للكاندهلوی رحمه الله ٨/٢٧٧ وإعلاء السنن:١٢/٣١٧ — ٣١٨.
[5] المدونة الكبرى:٢/٥٩٤ كتاب الجهادباب فى الرجل يعرف متاعه وعبيده قبل أن يقعوا فى المقسم؛ وأوجزوالمسالک إلى موطا الامام مالک:٩/١٧٧ دمشق دارالقلم.

ومنا انه مال لو اخذوه من دار الاسلام ملكوه، فاذا أخذوه من دار الحرب ملكوه كالبهيمة [۱]

**د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله استدلال** د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله استدلال جامع ترمذى او سنن ابوداؤد کښې د حضرت على رضي الله عنه د روايت نه دې عن ربعى بن حراش عن على رضى الله عنه قال: خرج عبدان الى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم –يعنى يوم الحديبية قبل الصلح– فكتب اليه مواليهم فقالوا: يا محمد! والله ما خرجوا اليك رغبة دينك وانما خرجوا هربا من الرق، فقال ناس صدقوا يا رسول الله، ردهم اليهم، فغضب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وأبى أن يردهم، قال: هم عتقاء الله عزوجل [۲]

حضرت على رضي الله عنه روايت کوى چه د حديبيه په ورځ د صلح نه وړاندې دوه غلامان رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل د دوارو موالى د حضور پاك په نوم خط کښې دا اوليکل په خدائى چه دا تاسو له ستاسو د دين د رغبت د وجه نه دى درغلى بلکه د غلامئ نه تختيدلى درغلى خلقو عرض اوکړو يا رسول الله دوى رېښتياوانى دا غلامان دوى ته واپس کړه رسول الله صلى الله عليه وسلم چه دا واوريده نو غصه شو او د هغوى د واپس کولو نه ئې انکار اوکړو او وئې فرمائيل دوى ته الله تعالى آزادى ورکړې ده

علامه ظفر احمد عثمانى رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله په تائيد کښې د دې روايت نه استدلال کولو سره تحرير فرمائى چه کله د دار الحرب نه دار الاسلام طرف ته راتلونکې غلام د مسلمانانو د ملکيت لاندې راتلو سره غلام نه پاتې کيږى نو دار الاسلام نه دار الحرب ته تختيدونکې د يو مسلمان غلام په طريقه اولى د مشرکين اهل حرب د ملکيت لاندې نه شي راتلې [۳]

**د صاحبين رحمهما الله استدلال او د هغې رد:-** د صاحبينو رائې وه چه عبد آبق د عامو مالونو په حکم کښې دې د هغوى استدلال د مصنف ابن ابى شيبه د دې روايت نه دې أن أمة لرجل مسلم أبقت إلى العدو، فغنمها المسلمون، فعرفها أهلها، فكتب فيها أبوعبيدة بن الجراح إلى عمر، فكتب إليه عمر: إن كانت لم تخمس ولم تقسم فهى رد على أهلها، وإن كانت قد خمست وقسمت فامضها لسبيلها. [۴]

روايت کښې دى چه د يو مسلمان وينځه دښمن له اوتختيده کله چه هغه د اهل اسلام په مال غنيمت کښې ملاؤ شوه نو هغه مالك اوپيژندله حضرت ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ته خط اوليکلو حضرت عمر رضي الله عنه په جواب کښې اوليکل که خمس او مال غنيمت تقسيم شوې نه وى نو دغه وينځه دې خپل آقاته حواله کړى او که چرې خمس او مال غنيمت تقسيم شوې وى نو بيا چه دې سره څه کيږى هغه هم په هغه حالت پريږدئى يعنى د مال غنيمت په تقسيم کښې چه د چا په حصه کښې راغله هم هغه سره ئى پريږدئى

---

[۱] المغنى لابن قدامة: ۱۰/۴۷۷ رقم الفصل: ۷۵۴۷.

[۲] أخرجه ابوداؤد فى سننه. کتاب الجهاد باب فى عبيد المشرکين يلحقون بالمسلمين فيسلمون رقم: ۲۷۰۰ والترمذى فى جامعه: ۲/۲۱۳ کتاب المناقب باب مناقب على رضى الله عنه رقم: ۳۷۱۶.

[۳] إعلاء السنن: ۱۲/۳۲۰.

[۴] المحلى بالآثار لابن حزم رحمه الله ۵/۳۵۴.

خو دې استدلال جواب دادې چه په مذکوره روایت کښې د کومې وینځې ذکردې هغه دَخپل آقاد کورنه اوتختیده نوحربیانوهغه هم په دارالاسلام کښې نیولې وه او دارالحرب ته نې بوتلې وه چونکه په دارالاسلام کښې دهغې حیثیت د وینځې وو آزاده شوې نه وه په دې وجه د دارالحرب د ملکیت اعتبار اوکړې شو (١) د روایت نه داخبره نه ثابتیږی چه وینځه دارالحرب ته تلې وه په دغه صورت کښې به دا دخپل آقاد ملکیت نه وتلې وه او آزاده شوې به وه او په دې به د دارالحرب ملکیت حزیت علت د موجودګئی د وجه نه نه ثابتیدو

## باب-١٨٤ من تكلم بالفارسية والرطانة

**دَ ترجمة الباب مقصد:** علامه ابن بطال حافظ ابن حجر اوعلامه عینی رحمهم الله فرمائی چه په دې ترجمة الباب سره امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه اهل حرب ته هم دهغوی په ژبه کښې امان ورکړئی دَدې به هم اعتبار وی. یعنی امان ورکولو دپاره عربی ژبه کښې خبرې کول شرط نه دی عجمی ژبه هم کولې شی.(٢)

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی کتاب الجهاد کښې داترجمه قایم کولوسره امام بخاری رحمه الله دا یقین ورکول غواړی چه د اکناف عجم نه راتلونکی سفیرانو اوقاصدانوسره خبرې اترې کولودپاره عربومسلمانانوته په فارسئی کښې د خبرواترو ضرورت پیښیدې شي په دې وجه هغوی له فارسی ژبه زده کول پکاردی. رسول الله ﷺ حضرت زید بن ثابت ته د عجمی ژبو زده کولوحکم ورکړو (٣)

<u>بالفارسية</u>:- یعنی دَ فارس قوم ژبه، دَ قوم فارس دَ جداعلی نوم فارس بن کومرس وو په دې وجه دهغوی ژبه ته فارسی وئیلې شی. (٤) داکومرس څوك وو؟ حافظ ابن حجر رحمه الله دَدِه باره کښې مختلف اقوال نقل کړی دی: ① دا دَسام بن نوح دَاولادنه وو. ② یوقول دادې چه دَیافث بن نوح دَاولادنه وو. ③ بعض حضرات وائی چه کومرس دَحضرت آدم علیه السلام نه پیداشوې دې ④ څلورم او آخری قول دادې چه کومرس په حقیقت کښې هم حضرت آدم علیه السلام پخپله دې (والله اعلم)(٥)

دَ کومرس اووه لس (١٧) ځامن وو تول بهادر تکړه او بې مثله فارس (سواره) وو په دې وجه دَ پوره قوم نوم فارس شو (٦) خودا توجیه مخدوش ګنړلوسره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه اشتقاق د عربی ژبه خصوصیت دې اوداخصوصیت په عجمی ژبوکښې نه شی موندلې په دې وجه دا وینا کول صحیح نه دی چه د کومرس قوم نوم دهغوی دَ بې مثله فروست (شهسوارئی)

---

(١) إعلاء السنن:١٢/٣١٨و ٣٢٠.

(٢) شرح ابن بطال:٥/٢٣١ وعمدة القاری:١٥/٩ وفتح الباری:٦/٢٢٦.

(٣) إرشادالساری للقسطلانی:٥/١٨١.

(٤) فتح الباری:٦/٢٢٦.

(٥) د څلورو واړو اقوالودپاره اوګورئی فتح الباری:٦/٢٢٦.

(٦) عمدة القاری:١٥/٥وفتح الباری:٦/٢٢٦.

د وجه نه فارس شوي دي مشهوره داده چه داس نسل د ټولونه اول د حضرت اسماعيل عليه السلام بن ابراهيم عليه السلام د پاره مسخر کړې شو (۱) والله اعلم

**الرطانة** - په راء باندې زبر او زير لوستل دواړه صحيح دى (۲)، د دې اطلاق د عربى نه علاوه په ټولو عجمي ژبو باندې کيږي شارح بخاري علامه کرماني رحمه الله فرمائي چه په هره يوه عجمي ژبه کښې خبرې کولو ته رطانه وئيلې شي (۳) هم د غه خبره صاحب د الافعال او علامه ابن التين رحمه الله هم کړې ده (۴)

علامه ابن الاثير رحمه الله فرمائي: التراطن: كلام لايفهمه الجمهور، والعرب تخص بها غالبا كلام العجم (۵) د رطانه اطلاق په داسې خبرو اترو باندې کيږي کوم باندې چه عام خلق نه پوهيږي عرب دې نه عجمي ژبه مراد اخلي

وقوله تعالى ﴿ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ ﴾ /الروم: ۲۲/. ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ ﴾ /ابراهيم: ۴/.]

دا د سورت روم آيت دې پوره آيت دا دې ﴿ وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِلْعَالِمِينَ ﴾ (۶) يعنى او د هغه الله تعالى په نښانو کښې د آسمانونو او زمکو پيدا کول او ستاسو ژبې (خبرې) او رنګونه مختلف کيدل دى

مطلب دا دې چه د هر قوم ژبه لهجه طرز د خبرو د بل قوم نه مختلف وى هم د غه شان هر انسان په خپل تخليق يعنى مخ سره صورت رنګ او شکل په اعتبار سره د بل انسان نه مختلف وى او داسې په دې وجه دى چه د هرسړى يو خپل جدا شاخت وى د يو بل پيژند ګلو کول کښې آسانى وى که ټول د آدم عليه السلام اولاد په شکل او صورت رنګ سره هم په يو ډول شي نو بيا خو بيا ډيرې ګډوډۍ پيدا شي او کار نظام به ګډوډ شوي وو او بې شميره تعطل به پيدا شوي وي (۷)

﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ ﴾:- دا د سورت ابراهيم د شروع آيت دې پوره آيت دا دې ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللَّهُ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ (۸) يعنى الله تعالى چه کوم رسول او نبى کوم قوم ته ورليګلې دې په هغه باندې هم د هغه قوم په ژبه کښې وحى نازل کړې دې د پاره چه د هغه قوم هم په خپله ژبه کښې د الله تعالى احکام او تعليماتو باندې پوره شان سره پوهه شي. او د قيامت په ورځ دې ويناکولو سره هغوى ته د عذر

---

(۱) فتح الباري: ۶/۲۲۶.
(۲) عمدة القاري: ۵/۱۵ وفتح الباري: ۶/۲۲۶.
(۳) شرح الكرماني رحمه الله ۱۳/۶۱.
(۴) شرح ابن بطال: ۵/۲۳۲ وعمدة القاري: ۵/۱۵.
(۵) النهاية لابن الاثير رحمه الله ۲/۲۳۳ (مادة رطن)
(۶) سورة الروم: ۲۲.
(۷) عمدة القاري: ۵/۱۵.
(۸) سورة ابراهيم: ۴.

كولوموقع ملاؤنه شي چه هغه تعليمات خو زمونږ د پوهې اوعقل نه بالاوو؟ په كومو قومونو او ملتونو كښې چه انبياء او رسولان مبعوث شوى دى الله تعالى د حجت د اتمام دپاره هم په هغوى باندې دهغوى په ژبه كښې وحى نازل كړې
د مذكوره آيت تفسير كولوسره علامه زمخشرى رحمه الله فرمائى **أى ليفقهوا عنه مايدعوهم اليه فلا تكون لهم حجة على الله، ولايقولوا: لم نفهم ماخوطبنا به** (١)

**د باب لاندې د ايات ذكر كولومقصد** علامه عينى حافظ ابن حجر او علامه عسقلانى رحمهم الله فرمائى چه دې آياتونو ذكر كولوسره امام بخارى رحمه الله ددې خبرې طرف ته اشاره كړې ده چه رسول الله ﷺ دمختلف ژبو ويونكو ددنيا ټولو قومونوته پيغمبر جوړ كړې راليږلې شوې دې حضورپاك په دغه ژبوباندې پوهيدلو داځكه چه حضورپاك دهغوى په ژبوباندې پوهه شى او هغوى د حضورپاك په ژبه باندې په آسانئى سره پوهه شى (٢)

**دحافظ ابن حجر رحمه الله رائې** - خوحافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه د رابطه اوسفارتى فرائضو د پوره كولو دپاره هرقوم سره ثقه اومعتمدترجمان ضرور وى داخبره يقينى نه ده چه رسول الله ﷺ په هره ژبه كښې خبرې اترې كولې شوې (٣)

احديث ٢٩٠٥ (٤): حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ أَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ أَخْبَرَنَا سَعِيدُ بْنُ مِينَاءَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنهما- قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَنَا، وَطَحَنْتُ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ، فَتَعَالَ أَنْتَ وَنَفَرٌ، فَصَاحَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ «يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ، إِنَّ جَابِرًا قَدْ صَنَعَ سُوْرًا، فَحَيَّ هَلاً بِكُمْ». [٣٨٧٥، ٣٨٧٦]

## رجال الحديث

① **عمرو بن على** دا مشهورحافظ حديث ابوحفص عمربن على بحربن كنيزالباهلى الصيرفى البصرى رحمه الله دې كتاب الوضوء باب الرجل يوضئ صاحبه لاندې ددوى تذكره تيره شوې ده.

② **ابوعاصم** - دا ابوعاصم ضحاك بن مخلدبن ضحاك بن مسلم شيبانى بصرى رحمه الله دې. ددوى تذكره كتاب العلم باب طرح الامام المسالة على أصحابه.......لاندې وړاندې تيره شوې ده

③ **حنظله بن ابى سفيان**- دحنظله بن ابى سفيان بن عبدالرحمن بن صفوان بن اميه بن خلف جمحى قرشى رحمه الله دې كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بنى الاسلام على خمس

---

(١) تفسير الكشاف للعلامه الزمحشرى رحمه الله ٤٧٩/٣ وعمدة القارى:٦/١٥.

(٢) فتح البارى:٦/٢٢٦ وعمدة القارى:١٥/٦ وإرشادالسارى:١٨/٥.

(٣) فتح البارى:٦/٢٦.

(٤) وعنده أيضًا فى صحيحه:٢٥٨٨/ – ٥٨٩ فى كتاب المغازى باب غزوة الخندق رقم:٤١٠١ وعندمسلم فى صحيحه:١٧٨/٢ فى كتابالاشربة باب جواز استتباعه غيره إلى دارمن يثق برضاه بذلك رقم:٢٠٣٩ وقد تفردابه الشيخان. انظر تحفة الاشراف:١٨٣/٢ رقم:٢٢٦٣.

لاندې د دوی تذکره تیره شوې ده [۱]

⑥ **سعیدبن میناء** دا ابوولیدسعیدبن عیناء المدنی الکوفی رحمه الله دی کتاب الجنائز باب التکبیرعلی الجنائزأربعا لاندې د دوی تذکره تیره شوې ده

⑤ **جابربن عبدالله** رضی الله عنه دامشهورصحابی جابربن عبدالله رضی الله عنه دې د دوی تذکره کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وضوءه علی المغمی علیه لاندې تیره شوې ده

**قوله** قلت یارسول الله، ذبحنا بهیمة لنا، وطحنت صاعا من شعیر، فتعال أنت ونفر: د حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنه روایت دې چه ما عرض اوکړو یارسول الله ! مونږ د چیلئ یو وړوکې غوندې بچې ذبح کړې دې او یوصاع اوربشې مو اوړه کړې دی تاسو د یوڅو کسانو سره زمونږ کورته تشریف راوړئی بهیمة داد بهمة تصغیردې د ګډې وړوکي بچې [۲] بهیمه د مؤنث اومذکردواړودپاره استعمالیږی بهم اوبهام د دې جمع راځي

**قوله** فصاح النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: فقال: یااهل الخندق إن جابرًا قد صنع سورًا، فحی هلابکم: رسول الله صلی الله علیه وسلم په اوچت آواز سره ارشاد اوفرمائیلو جابر د دعوت اهتمام کړې دې زر راشئ

سؤر- د دعوت په موقع تیار کړې شوې خوراك ته سؤر وائي [۴] داد فارسی ژبې لفظ دې د یوقول مطابق د دې اطلاق په هرقسم خوراك باندې کیږی [۵] علامه اسماعیلی رحمه الله هم دغه رائې ده [۶] د بعض حضراتو په نیز د دې اطلاق په فارسی ژبه کښې صرف په دعوت ونیسه باندې کیږی [۷] د بعضو په نیزدا د حبشی ژبې لفظ دې اود عام خوراك د پاره ونیلې شی د زیات استعمال د وجه نه د عربو په ژبه ورختلې دې او په عربی کښې هم استعمالیږی [۸]

فحی هلابکم- د دې معنی ده أقبلوا أو أسرعوا بانفسکم [۹] یعنی راوړاندې شئی یا زرکوئی دا لفظ د حی او هل مرکب دې د هل لام تنوین سره یابغیرتنوین د علا په وزن اوسکون سره هل لوستلې شی دا لفظ باء إلی اوعلی نه هم متعدی دې بل دواړه حروف جدا هم مستعمل دی

---

[۱] ) کشف الباری:۱/۶۳۶.
[۲] ) شرح الکرمانی:۱۳/۶۲.
[۳] ) النهایة لابن الاثیر رحمه الله ۱/۱۶۸ (ماده ب ه م) وعمدة القاری:۱۵/۶.
[۴] ) شرح الکرمانی:۱۳/۶۲ وشرح النووی علی صحیح مسلم:۲/۱۷۸ کتاب الاشربة باب جواز استتباعه غیره
[۵] ) شرح النووی علی صحیح مسلم.۲/۱۷۸.
[۶] ) فتح الباری:۶/۲۲۶.
[۷] ) عمدة القاری:۱۵/۶.
[۸] ) عمدة القاری: ۱۵/۶ وشرح النووی علی صحیح مسلم:۲/۱۷۸.
[۹] ) عمدة القاری:۱۵/۶.

حی د أقبل په معنی کښې دې او هلا أسکن په معنی کښې دې [1]

علامه داؤدی رحمه الله دَدې يوه بله معنی کړې ده. فحيهلابكم: أى أقبلوا أهلابكم أتيتم أهلكم دَدې قول په وړاندې حی هلا کلمات دَترحيب دَ قبيل نه هم کيدې شی [2]

**دَ حديث باب مقصد** - بعض داسې روايات نقل دی په کوم کښې چه فارسی ژبې ته ناخوښه وئيلې شوی دی او په فارسی کښې خبرې اترې کولوممانعت واردشوې دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه روايت باب نه امام بخاری رحمه الله ددغه رواياتو ضعيف اوبې اصل کيدو طرف ته اشاره کړې ده مثلاً يوروايت دې: كلام أهل النار بالفارسية. [3] يعنی دَاهل جهنم ژبه به فارسی وی. دغه شان يوبل روايت دې من تكلم بالفارسية زادت فى خبثه ونقصت من مروءته [4] يعنی چاچه په فارسی ژبه کښې خبرې اوکړې دَهغه خباثت به زياتيږی اومروت به ئې کميږی دا دَمستدرك حاکم روايت دې. حافظ صاحب په دې باره کښې فرمائيلی دی وسنده واه دَدې سند واهی او بې اصل دې [5]

هم په دغه مستدرك حاکم کښې دَحضرت عمر رضی الله عنه طرف ته هم يوروايت منسوب دې من أحسن العربية فلايتكلمن بالفارسية فانه يورث النفاق. [6] يعنی په عربی ژبه کښې ښه خبرې کونکې دې په فارسی کښې هيڅ کله خبرې نه کوی ځکه چه دا نفاق پيداکوی. دې روايت ته هم بې اصل وئيلوسره حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی وسنده واه [7]

ردالمحتار علی الدرالمختار کښې علامه ابن عابدين شامی دَصاحب الولوجيه دا قول نقل کړې دې چه دَعربی نه علاوه دَالله تعالی بل هيڅ يوه ژبه خوښه نه ده. دغه شان دَحضرت عمر رضی الله عنه طرف ته دَ يوقول نسبت کولوسره ليکی إنه نهى عن رطانة الاعاجم. يعنی حضرت عمر رضی الله عنه به دَعجم ژبه وئيلونه منع فرمائيله.

دې نه علاوه سنن ابن ماجه کښې يوروايت دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم دَحضرت ابوهريره دَ بيمارئې دَ تپوس په وخت فارسی کښې فرمائيلی اشکمت درد؟ [8] يعنی أتشتكى بطنك (آياتاته دَ خيټې دَ درد شکايت دې؟) نودا روايت دَسند اومتن په اعتبارسره معلول او ضعيف دې. دَدې

---

[1] ) عمدة القاری:۱۵/۶.
[2] ) عمدة القاری:۶/۱۵.
[3] ) فتح الباری: ۲۲۷/۶.
[4] ) فتح الباری: ۲۲۷/۶.
[5] ) فتح الباری: ۲۲۷/۶.
[6] ) فتح الباری: ۲۲۷/۶.
[7] ) فتح الباری: ۲۲۷/۶.
[8] ) ردالمختار علی الدرالمختار: ۵۲۱/۱.

په سند کښې ذواد بن عليه اودهغه شيخ ليث بن أبي سليم بن زنيم دواړه ضعيف دى [١] علامه ابن جوزى رحمه الله د ابن ماجه دغه دواړو راويانو د وجه نه دا روايت ضعيف ګرځولې دې په کوم کښې چه د اشکمت درد الفاظ د رسول الله ﷺ طرف ته منسوب کولوسره دحديث درجه ورکړې شوې ده [٢] دغه شان شاه عبدالغنى مجددى دهلوى رحمه الله إنجاح الحاجة في شرح ابن ماجة کښې دعلامه فيروزآبادى رحمه الله دا قول نقل کړې دې چه اشکمت درد او نورو فارسى الفاظ کوم چه رسول الله ﷺ طرف ته منسوب دى هغه دې هيڅ اصل نشته [٣].

ليکن حقيقت دادې چه دا اقوال ناقابل احتجاج دې د رسول الله ﷺ طرف ته منسوب کړې شوى داسې روايات هم سندومتن په لحاظ سره مخدوش او بې بنياددى په کوم کښې چه د فارسى يا عجمى ژبومذمت کړې شوى وى. پخله د قرآن مجيد دا آيت ﴿ وَاخْتِلَافُ أَلْسِنَتِكُمْ وَأَلْوَانِكُمْ ﴾ کښې هره يوه ژبه د الله تعالى د طرف نه کيدل واضح او بديهى دى. په ظاهره عجمى ژبې ناخوښه کول او په دې کښې د خبرو اترو کولو منع ګرځولو کښې هيڅ معقول وجه نه ښکارى. خلاصه دا چه ترجمة الباب د حديث نه دامام بخارى رحمه الله مقصددادې چه په عجمى ژبه کښې خبرې اترې کول جائزدى د دې دناجائزګرځولو هيڅ څه وجه نشته

علامه نووى رحمه الله هم د دې حديث په ذيل کښې په شرح صحيح مسلم کښې تحرير فرمائى وقد تظاهرت أحاديث صحيحة بان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم تكلم بالفاظ غيرالعربية فيدل على جوازه. [٤] مطلب دادې چه دمختلف احاديث صحيحه نه ثابت دى چه رسول الله ﷺ په غيرعربى کښې خبرې کړې دى نوښکاره خبره ده چه دا په هره يوه عجمى ژبه کښې د خبرو کولو په جواز باندې دال دې.

**ترجمة الباب سره دحديث باب مناسبت:-** په حديث باب کښې دى جابر اقدصنع سورا ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې.

[حديث ٢٩٠٦] [٥] حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيدٍ قَالَتْ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَعَ أَبِى

---

[١]) تحفة الاشراف:١٠/٣١٧ رقم:١٤٣٥١.

[٢]) العلل المتناهية لابن الجوزى:١/١٢٩ وقال: هذان حديثان لايصحان.

[٣]) حاشيه المسماة بانحاج الماجة للشيخ عبدالغنى المجدى الدهلوى على هامش سنن ابن ماجه:٢٤٧ كتاب الطب باب فى الصلوة شفاء والابواب والتراجم للمحدث الكاندهلوى ص:٢٠٣.

[٤]) شرح مسلم للامام النووى:٢/١٧٨ كتاب الاشربة باب جواز استتابة غيره......

[٥]) وأيضًا رواه البخارى:١/٥٤٦ فى كتاب المناقب باب هجرة الحبشة رقم:٣٨٧٤ و ٢/٥٦٦ فى كتاب اللباس باب المخميصة اللسوداء رقم:٥٨٢٣ و:٢/٨٦٩ باب مايدعى لمن لبس ثوباجديداً رقم:٥٨٤٥ و:٢/٨٨٦ كتاب الادب باب من تبرك صبية غير حتى تلعب به أوقبلها أو مازحها رقم:٥٩٩٣ وأبوداود فى سننه:٢/٦٠٣ فى كتاب اللباس باب مايدعى لمن ليس ثوبا جديداً رقم١٩...... وقد تفردا به انظرتحفة الاشراف ١١/٢٦٨ رقم:١٥٧٧٩..

وَعَلَى قَمِيصٌ أَصْفَرُ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « سَنَهْ سَنَهْ » . قَالَ عَبْدُ اللَّهِ وَهِيَ بِالْحَبَشِيَّةِ حَسَنَةٌ . قَالَتْ فَذَهَبْتُ أَلْعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ، فَزَبَرَنِي أَبِي قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « دَعْهَا » . ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ « أَبْلِي وَأَخْلِقِي ، ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي ، ثُمَّ أَبْلِي وَأَخْلِقِي » . قَالَ عَبْدُ اللَّهِ فَبَقِيَتْ حَتَّى ذَكَرَ .[ ۳۶۶۱، ۵۴۸۵، ۵۵۰۷، ۵۶۴۷]

# رجال الحديث

① **حبان بن موسى** - دا ابومحمد حبان بن موسى سوار السلمى المروزى رحمه الله دى. كتاب الاذان باب يسلم حين يسلم الامام لاندې د دوى تذكره تيره شوې ده

② **عبدالله** - دا مشهور محدث عبدالله بن مبارك بن واضح الحنظلى رحمه الله دى. د دوى تذكره بدء الوحى لاندې تيره شوې ده [1]

③ **خالدبن سعيد** -دا مشهور تبع تابعى خالد بن سعيد بن عمرو بن سعيد بن عاص بن سعيد بن عاص رحمه الله دى. امام بخارى رحمه الله په صحيح بخارى كښې د ده هم دغه يو روايت په مختلف ابواب كښې نقل كړې دى. معتمد او ثقه راوى وو. هغوى د خپل پلار سعيد بن عمرو بن سعيد بديح مولى عبدالله بن جعفر او سهل بن يوسف انصارى نه روايت حديث كړې دى [2] د هغوى نه جليل القدر ائمه حديث يو لوئى جماعت د حديث سماع كړې ده. په هغوى كښې عبدالله بن مبارك رحمه الله هم شامل دى. [3] محمد بن بشير رحمه الله د هغوى باره كښې فرمائى صدوق. [4] ابن حبان رحمه الله د هغوى ذكر په ثقات كښې كړې دى. [5] په يو روايت كښې د هغوى نوم راتلو نه پس د امام بخارى رحمه الله تلامذه تپوس اوكړو چه تاسو د چا ذكر كوئى؟

قيل لمحمد: من ذكرت يا أبا عبدالله؟ نو امام بخارى رحمه الله جواب وركړو الثقة الصدوق المامون خالد بن سعيد أخو إسحاق بن سعد. [6]

④ **عن ابيه (سعيد بن عمرو)**: د عن ابيه نه د هغوى پلار ابوعثمان سعيد بن عمرو بن سعيد بن العاص الاموى رحمه الله مراد دى. د دوى حالات كتاب الوضوء باب الاستنجاء بالحجارة لاندې تير شوى دى.

⑤ **ام خالد بنت خالد بن سعيد** - د دوى نوم امه او ام خالد كنيت وو. د صحابى لوروه او د حضرت زبير بن عوام رضي الله عنه بى بى وه. د دوى حالات كتاب الجنائز باب التعوذ من عذاب القبر

---

[1] ) كشف البارى: ۱/ ۴۶۲.
[2] ) الانساب للسمعانى: ۱/ ۲۰۹ وتهذيب الكمال الحافظ المزى: ۸/ ۸۱ وتهذيب التهذيب لابن حجر: ۳/ ۹۵.
[3] ) تهذيب الكمال: ۸/ ۸۲.
[4] ) تهذيب الكمال: ۸/ ۸۲ وتهذيب التهذيب ۳/ ۹۵.
[5] ) ايضاً.
[6] ) ايضاً.

لاندې تېر شوې دی (۱)

قالت أتيت رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم مع أبي وعلى قميص أصفر قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: سنة سنة

حضرت ام خالد رضي الله عنها فرمائي چه زه خپل پلار (خالد بن سعيد رضي الله عنه) سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم او ما د زيړرنګ قميص اچولې وو رسول الله ﷺ اوفرمائيل سنه سنه ډير ښائسته

**قوله** قال عبدالله: وهي بالحبشية حسنة - دا مدرج من الراوی دې دلته د راوی نه سنه سنه معنی بيان شوې ده چه دا د حبشی زبان لفظ دې او د دې معنی ښائسته ده

**دعبدالله نه څوک مراد دي؟** - قال عبد الله نه عبد الله ابن مبارک رحمه الله مراد دې بعض نسخو کښې ابوعبدالله دې (۲) ابوعبدالله امام بخاری رحمه الله کنيت دې په دې صورت کښې ظاهره ده قائل به پخپله امام بخاری رحمه الله وی. خو علامه قسطلانی رحمه الله ارشاد السارى کښې تحرير فرمائي چه راجح عبدالله دې او دې نه عبدالله ابن مبارک رحمه الله مراد دې (۳)

**لفظ سنه ضبط** - دا د سين او نون فتحه او "د" په سکون سره دې او د کشميهنی په روايت کښې د نون نه پس الف سره سناه سناه ضبط شوې دې (۴) خو اکثر د عربويه کلام کښې الف حذف کولو سره سنه هم وئيلې شی. د بعض ارباب لغت رائې ده چه په سنه کښې نون مشدد دې (۵) بهرحال دې نه د امام بخاری رحمه الله مقصد الرطانة بالعجمية ثابت کول دی. چونکه ام خالد رضي الله عنها په حبشه کښې پيدا شوې وه په دې وجه رسول الله ﷺ (فداه ابی وامی) دا په ليدو سره د ضيافت طبع په توګه په حبشی ژبه کښې اوفرمائيل چه ډير ښائسته

قالت فذهبت ألعب بخاتم النبوة، فزبرني، قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: دعها. ثم قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم: أبلي وأخلقي، ثم أبلي وأخلقي. ام خالد رضي الله عنها فرمائي چه زه لاړم او د حضور پاك خاتم نبوت سره مې لوبې کولې په دې باندې زما پلار زه اورټلم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل دا پريږده (مطلب دا چه د لوبونه ئې مه منع کوه) بيائې اوفرمائيل چه ستا عمر دې دومره اوږد شی چه ته دا قميص په اغوستو اغوستو سره زوړ کړې

**قوله** أبلي وأخلقي - د ابلا او اخلاق دواړو يوه معنی ده يعنی زړول او خرابول.

---

(۱) وړاندې اختصار سره كتاب اللباس کښې هم دغه ذکر راغلې دې اوګورئی کشف البارى كتاب المغازى ص: ۱۷۵.

(۲) شرح الكرمانى: ۶۳/۱۳.

(۳) إرشاد السارى: ۱۸۰/۵.

(۴) عمدة القارى: ۷/۱۵.

(۵) ايضاً.

**قوله قال عبدالله: فبقيت حتى ذكر**:- دَدې جملې په تشريح کښې مختلف اقوال دى

① يوقول دادې چه **فبقيت** کښې ضمير فاعل دَام خالد رضي الله عنها طرف ته راجع وى. يعنى **فبقيت ام خالد** او **حتى ذكر** (صيغه مجهول) کښې ضمير قميص طرف ته راګرځى [1] په دې صورت کښې به ترجمه وى ترکومې چه ام خالد رضي الله عنها ژوندئى وه دَ هغې دَ قميص مشهورتياوه.

② علامه کرمانى رحمه الله فرمائى دَ ذكر ضميردَ راوى طرف ته راګرځى اوعبارت مقدردې. أى **ذكر الراوى، مانسى ذولِ مدته** [2]
مطلب دا چه ام خالد سره پيښه شوې دا خارق امر واقعه دومره قابل ذكروه چه راوى تول عمردا هيره نه کړې شوه اودَ **فبقيت** ضمير هم دَام خالد طرف ته راجع دې

③ بعض رواياتو کښې لفظ ذكر په ځائې مذکردَ صيغه مؤنث ذكرت نقل کړې شوې دى. دا مجهول اومعروف دواړه شان لوستل ثابت دى دَ مجهول لوستلو په صورت کښې عبارت مقدر دې **حتى صارت مذكورة عندالناس لخروجها عن العادة**. [3] يعنى ام خالد رضي الله عنها (سره چه دَ خپل نوعيت کومه واقعه پيښه شوې) خلاف عادت كيدو دَ وجه په خلقو کښې هميشه دَهغې تذكره وه معروف يعنى ذكرت لوستلو په صورت کښې به مطلب داوى چه هغې پخپله دَ دې خارق عادت واقعې تذكره کوله (والله اعلم)

④ دَ ابوهيثم په روايت کښې دَ ذكر په ځائې دكنَ ضبط شوې دى او ابوذر رحمه الله هم دې ته ترجيح ورکړې ده. دكن دَ دكنة نه مشتق دې. دَ زيات استعمال دَ وجه نه په لباس باندې خيرى او دوړې قط کيږى اودَ لباس رنګ تك تور شى هم دې ته دكنة وائى. [4] دَ دې ځلورم روايت په رڼاکښې دَ مذكوره جمله معنى ده چه ام خالد رضي الله عنها ژوندئى پاتې شوه (اودَ هميشه دَاستعمال دَ وجه نه) دَ قميص رنګ (دَ خيرى اودوړو جمع كيدو دَ وجه) تك تور شو. [5]

⑤ علامه عينى رحمه الله فرمائى **وفى بعض النسخ: فذكر دهرًا، ولفظ دهرا محذوف فى كتاب ابن بطال، وذكره ابن السكن، وهو تفسير لهذه الرواية، كانه أراد: بقى هذا القميص مدة طويلة من الزمان، فنسيها الراوى، فعبر عنها بقوله: ذكر دهرًا**. [6]

يعنى بعض نسخو کښې (دَ حتى ذكر په ځائې) **فذكر دهرًا** دې. خو لفظ **دهرًا** دَعلامه ابن بطال رحمه الله په نسخه کښې محذوف دې. البته ابن سكن رحمه الله دالفظ ذكر کړې دې چه په حقيقت کښې

---

[1] ) عمدة القارى:١٥/٨.
[2] ) شرح الكرمانى ١٣/٦٣.
[3] ) عمدة القارى:١٥/٨.
[4] ) عمدة القارى:١٥/٨.
[5] ) شرح الكرمانى ١٣/٦٣ وعمدة القارى ١٥/٨
[6] ) عمدة القارى:١٥/٨.

ترجمة الباب مذكوره روايت تفسيردې (مطلب دادې چه ددې لفظ په صراحت سره د مذكوره جملې مفهوم واضح كيږي) لكه راوي دا وئيل غوښتل چه دا قميص د يوې اوږدې مودې پورې موجود وو خو هغه ته دغه موده ياده نه وه په دې وجه نې ذكرًا دهرًا الفاظ اداكړل

(۱) علامه انورشاه كشميري رحمه الله ددې روايت په ذيل كښې يوه عجيبه نكته بيانوي. فرمائي چه د عمر په تناسب سره څومره د ام خالد رضي الله عنها قد لوئيدلو دهغې قميص به هغه شان غټيدلو د رسول الله صلى الله عليه وسلم مباركه دعا أبلي وأخلقي.... په بركت سره چه څنګه هغه داوږدې مودې پورې ژوندئ وه هغه قميص هم دهغې په بدن باندې موجود اوسيدوسره لوئيدلو اود مرور ايام نه باوجود په هغې باندې د زړوالي او خرابوالي اثار نه ښكاريده (۱)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د صنعاني په نسخه كښې د ترجمة الباب د مذكوره روايت په آخر كښې د امام بخاري رحمه الله داقول هم ذكردې. قال أبوعبدالله —هومصنف— ولم تعش امرءة مثل ماعاشت هذه يعني أم خالد (۲) حافظ صاحب فرمائي چه دام خالد رضي الله عنها سره د موسى بن عقبه ملاقات هم دهغې په اوږدعمر باندې دلالت كوي خكه چه دهغې نه علاوه چرته بل يوصحابي سره د موسى بن عقبه ملاقات نه دې شوي (۳)

**حديث نه مستنبط فوائد:** علامه عيني رحمه الله د ترجمة الباب ددې روايت نه مختلف فوائد مستنبط كړي دي:

(۱) په روايت كښې دي چه د ام خالد رضي الله عنها په زيړقميص باندې د ناخوښئ اظهارنه دې فرمائيلې. ددې نه معلومه شوه چه د ښځودپاره د زيړرنګ لباس اغوستل جائزدي

(۲) په روايت كښې دي چه ام خالد رضي الله عنها د رسول الله صلى الله عليه وسلم خاتم نبوت سره لوبې كولې پلار اورټله نورسول الله صلى الله عليه وسلم هغه دداسې كولو نه منع كړو چه پريږده لوبې دې كوي. ددې نه معلومه شوه چه دمشرانو په موجودګئ كښې ماشومان د لوبوكولونه نه دی منع كول پكار

(۳) رسول الله صلى الله عليه وسلم ام خالد رضي الله عنها په نوي لباس كښې كتلوسره دعاوركړه. ددې نه ثابته شوه چه نوی لباس اغوستلوسره كتونكي له دهغوی په حق كښې دعاء خير كول د سنت نه ثابت دی اود اسلام د آدابونه دی.

(۴) رسول الله صلى الله عليه وسلم په عجمي ژبه كښې خبرې اوكړې. ددې نه په عجمي ژبه كښې د خبرو اترو كولوجواز ثابتيږي (۴)

---

(۱) فيض الباري:۴۵۸/۳. علامه انورشاه كشميري رحمه الله فرمائي فبقيت حتى ذكرت أي بقيت تلك القميص لم يخلقها مضى الليالي، ومرور الايام. ولعل تلك القميص أيضا تتوصع عليهابقدر جسدها. فانها إذا نقصت كانت صبية، فلابد من الزياد في القميص، ومن يؤمن بقاء تلك القميص إلى زمن لم تخلق، لم يعجزعن الايمان بسعتها ايضا.

(۲) فتح الباري:۲۲۷/۶.

(۳) ايضا.

(۴) عمدة القاري:۸/۱۵.

**ترجمة الباب سره مناسبت** په روایت کښې سنه سنه مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دی.

احدیث ۲۹۰۷ [۱]: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ أَخَذَ تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ، فَجَعَلَهَا فِي فِيهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم بِالْفَارِسِيَّةِ «كَخْ كَخْ أَمَا تَعْرِفُ أَنَّا لَا نَأْكُلُ الصَّدَقَةَ». [ر ۱۴۱۴]

## رجال الحدیث

① **محمدبن بشار** - دامشهورمحدث محمدبن بشار بن عثمان عبدی بصری رحمه الله دی. دَدوی حالات کتاب العلم باب ماکان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم یتخولهم بالموعظة والعلم کی لاینفروا لاندې وړاندې تیر شوی دی [۲]

② **غندر** - دا ابوعبدالله محمدبن جعفر هذلی رحمه الله دې. دَغندر په لقب سره مشهوردې دَدوی تذکره کتاب الایمان باب ظلم دون ظلم لاندې تیرشوی دی.

③ **شعبه** - دا امیرالمؤمنین فی الحدیث شعبه بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی البصری رحمه الله دې دَ دوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې تیرشوی دی. [۳]

④ **محمدبن زیاد** - داعبدالرحمن بن محمد بن زیاد محاربی کوفی رحمه الله دې کتاب العلم باب تعلیم الرجل أمته وأهله کښې دَدوی تذکره تیره شوې ده. [۴]

⑤ **ابوهریره** رضی الله عنه دَدوی تفصیلی حالات کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تیرشوی دی [۵]

أن الحسن بن علی أخذ تمرة من تمرة الصدقة فجعلها فی فیه، فقال له النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بالفارسة: کخ کخ، أما تعرف أنا لانأکل الصدقة؟

دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت دې چه حضرت حسن بن علی رضی الله عنهما دَ صدقه یوه کهجوره اوچته کړه په خله کښې واچوله نورسول الله صلی الله علیه وسلم فارسی کښې اوفرمائیل کخ کخ (دَ کهجورې تیرولو نه ئې منع کړو)، آیاتاته پته نه ده چه مونږ صدقه نه خورو

کخ کخ - بفتح الکاف وکسرها وسکون الخاء المعجمة وکسرها وبالتنوین مع الکسر وبغیر تنوین [۶] دا الفاظ په فارسی ژبه کښې دَ زجر اوتوبیخ اودیوکار دَمنع کولو دَپاره ونیلې شی

---

[۱] قد سبق تخریجه فی کتاب الزکوة باب أخذ صدقة التمر عند صرام النخل رقم: ۱۴۸۰.
[۲] کشف الباری: ۳/۲۲۱ - ۲۲۴.
[۳] کشف الباری: ۱/۶۷۸.
[۴] کشف الباری: ۳/۵۱۴.
[۵] کشف الباری: ۱/۱۵۹، ۱۶۳.
[۶] شرح الکرمانی ۱۳/۶۳ وعمدة القاری: ۱۵/۸.

هم ددې معنى ده ارکېا، وارم پرېږده اوغورزوه [1]

**دعلامه کرمانی رحمه الله اعتراض اودهغې جواب** د باب په مذکوره درېواړو روایتونوکښې چه کوم عجمى الفاظ د رسول الله ﷺ نه مروى دى علامه کرمانى رحمه الله فرمائى ددې په عجمى کیدوباندې اشکال کیدې شى ① د باب په ړومبى روایت کښې لفظ سور وارد شوې دې په دې کښې احتمال دادې چه دا لفظ صابون په شان د توافق الیقین د قبیل نه دې اود عربى ژبې لفظ دې [2] لیکن علامه عینى رحمه الله فرمائى دا اشکال خوددې وجه نه ناقابل التفات دې چه صرف د احتمال درجه لرى حالانکه لغت په احتمال سره نه شى ثابتیدې [3]

② د ترجمة الباب په دویم روایت کښې لفظ سنه وارد شوې دې علامه کرمانى رحمه الله فرمائى چه ممکن ده ددې اصل حسنة وى اوددې د شروع نه "ح" حذف کړې شوى وى لکه چه په عربى مثل کفى بالسیف شاهداً کښې "هد" حذف کولوسره عرب کفى بالسیف شا وائى [4] لیکن د علامه کرمانى رحمه الله دا توجیه هم حافظ ابن حجر رحمه الله اوعلامه عینى رحمه الله ردکولوسره فرمائى چه د یولفظ په شروع کښې ترخیم جائزنه دې ځکه چه داسې وینا کول غلطه ده چه لفظ سنه د شروع نه "ح" غورزولې شوې ده. [5]

③ په دریم روایت باب کښې لفظ کخ راغلې دې علامه کرمانى رحمه الله فرمائیلى دى چه ممکن ده چه داهم غیرعجمى لفظ وى اود حروف صوتیه د قبیل نه وى خو علامه عینى رحمه الله فرمائى چه دا اعتراض هم بې محل دې ځکه چه لفظ کخ د اسماء افعال د قبیل نه دې نه چه د اسماء اصوات د قبیل نه لهذا دا لفظ هم عجمى دې [6]

**فوائدحدیث:**- علامه ابن بطال رحمه الله د روایت نه دوه فوائد مستنبط کړى دى ① ماشومانوته د احکام شریعت تعلیم ورکول اوهغوى ته د حرام او مکروه څیزونونه د ځان ساتلو تلقین کول ② چه په ماشومانوکښې د پوهې صلاحیت وى نوهغوى ته داسې خبرې هم خودلې شى چه پوهه اوعاقل سړى ته خودلې شى [7]

**ترجمة الباب سره مناسبت:**- په حدیث باب کښې د کخ کخ عجمى الفاظ دى او ترجمة الباب سره ددې مناسبت ښکاره دې.

---

[1] شرح الکرمانی ۶۳/۱۳ وعمدة القاری:۸/۱۵.
[2] شرح الکرمانی ۶۳/۱۳ وعمدة القاری ۹/۱۵.
[3] عمدة القاری:۹/۱۵.
[4] شرح الکرمانی ۶۳/۱۳ وفتح الباری:۶/ ۲۲۷ - ۲۲۸ وعمدة القاری:۸/۱۵.
[5] فتح الباری:۲۲۸/۶ وعمدة القاری:۹/۱۵.
[6] عمدة القاری:۹/۱۵.
[7] شرح ابن بطال:۲۳۲/۵.

## باب-۱۸۵ الغلول

**دَ ترجمة الباب مقصد:-** په دې باب کښې امام بخاری رحمه الله په مال غنیمت کښې دَخیانت حرمت او شناعت بیانول غواړی چه په مال غنیمت کښې خیانت کول ناجائز لاړ نه یوشی حاصلول گناه کبیره ده
**دَغلول معنی -** غلول په غین اولام باندې ضمه سره (۱) په مال غنیمت کښې خیانت کول او: تقسیم نه وړاندې دَ مال غنیمت نه غلا کولوته وائی. امام ابن اثیر رحمه الله فرمائی الغلول هوالخيانة في المغنم والسرقة في الغنيمة قبل القسمة (۲)
صاحب دَ روح المعانی علامه آلوسی رحمه الله فرمائی چه دَ غلول اصل معنی ده په پټه طریقه غلا کول. روستو دا لفظ دَمال غنیمت نه دَ غلا کولودپاره استعمال شو. اوعلامه نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې فرمائی: أصل الغلول الخيانة مطلقًا، ثم غلب اختصاصه في الاستعمال بالخيانة في الغنيمة (۳) یعنی غلول په حقیقت کښې خیانت ته وئیلې شی روستودې غالب استعمال په مال غنیمت کښې خیانت سره اوشو. علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه غلول دَمطلقًا خیانت دَپاره هم استعمالیږی خوکه دَدې اطلاق په مال غنیمت کښې په غلاباندې اوکړې شی نو بیا په دغه دواړو معنوکښې عموم خصوص من وجه دَ نسبت نه به وی (۴)
**دَ غلول دَ تسمیه وجه:-** غلول معنی تړل اوراګیرول دی. امام نفطویه رحمه الله فرمائی چه مال غنیمت کښې خیانت کولوسره لاسونه مغلول اومحبوس کیږی په دې وجه په دې کښې خیانت ته غلول نوم ورکړې شو. قال نفطويه: سمي بذلك لان الايدي مغلولة عنه أي محبوسة (۵)
**دا غلول گناه کبیره ولې ده:-** شرح صحیح مسلم کښې امام نووی رحمه الله فرمائی چه غلول په اجماع سره گناه کبیره ده. په مال غنیمت کښې دَ خیانت جرم دومره زیات سخت کیدو وجه داده چه مال غنیمت دَ اهل اسلام مشترکه حق وی په دې کښې خیانت کول او غلا کول دَ بې شمیره خلقو دَ حقوق دَ حق تلفئی مترادف دې (۶)
**وقول الله تعالى: ﴿ وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ ﴾** /آل عمران: ۱۶۱/.
لفظ قول غلول باندې عطف کیدو دَ وجه نه مجرور دې. (۷) پوره آیت داسې دې ﴿ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ

---

(۱) إرشادالساری:۱۸۱/۵.
(۲) النهاية لابن الاثير:۳۸۰/۳.
(۳) شرح النووی علی صحیح مسلم:۱۲۲/۲ کتاب الامارة.
(۴) إرشاد الساری:۱۸۱/۵.
(۵) شرح النووی علی صحیح مسلم:۱۲۲/۲ کتاب الامارة.
(۶) شرح النووی علی صحیح مسلم:۱۳۲/۲ کتاب الامارة وعمدة القاری:۹/۱۵ وفتح الباری:۲۲۸/۶ وإرشادالساری:۱۸۱/۵
(۷) عمدة القاری:۹/۱۵.

أَن يَغُلَّ ۚ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ هم ددې آيت د نزول د سبب باره كښې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې چه په غزه بدر كښې د مال غنيمت نه يوڅادر اورك شو څه خلقو اووئيل لعل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم أخذها يعنى داڅادر كيدې شي رسول الله ﷺ اخستې وى دا آيت هم په دې موقع باندې نازل شو په كوم كښې چه ددې خراب جرم ترديد كولوسره اوخودلې شوچه د نبى د شان نه خلاف دى چه هغه داسې حركت اوكړى دا آيت رسول الله ﷺ د دغه الزام نه د برى كولوډپاره لازم شو (١)

[حديث ٢٩٠٨] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ أَبِي حَيَّانَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو زُرْعَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَامَ فِينَا النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَذَكَرَ الْغُلُولَ فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ قَالَ « لاَ أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ لَهَا ثُغَاءٌ عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ يَقُولُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَغِثْنِي. فَأَقُولُ لاَ أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. وَعَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ لَهُ رُغَاءٌ، يَقُولُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَغِثْنِي. فَأَقُولُ لاَ أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. وَعَلَى رَقَبَتِهِ صَامِتٌ، فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَغِثْنِي. فَأَقُولُ لاَ أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ. أَوْ عَلَى رَقَبَتِهِ رِقَاعٌ تَخْفِقُ، فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَغِثْنِي. فَأَقُولُ لاَ أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا، قَدْ أَبْلَغْتُكَ ». وَقَالَ أَيُّوبُ عَنْ أَبِي حَيَّانَ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ. [ر: ١٣٣٧]

## رجال الحديث

① **مسدد**:- دامسدد بن مسرهد بن مسربل اسدى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه لاندې تيرشوى دى. (٣)

② **يحيى**:- دا ابوسعيد يحيى بن سعيد بن فروخ القطان التميمى رحمه الله دې. ددوى حالات كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه لاندې تيرشوى دى (٤)

③ **ابوحيان**:- دايحيى بن سعيد بن حيان تممى كوفى رحمه الله دې. د دوى حالات كتاب الايمان باب سوال جبرائيل النبى صلى الله تعالى عليه وسلم عن الايمان والاسلام لاندې تيرشوى دى (٥)

---

١) عمدة القارى: ٩/١٥ قال العينى وقال ابن أبى حاتم: حدثنا المسيب بن واضح حدثنا أبوإسحاق الفزارى عن سفيان عن خصيف عن عكرمة عن ابن عباس، قال: فقدوا قطيفة يوم بدر. فقالوا: لعل رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم أخذها فانزل الله تعالى ﴿وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ﴾ أى يخفون هذه تنزيه له صلى الله تعالى عليه وسلم من جميع وجوه الخيانة فى أداء الامانة وقسمة الغنيمة وغيرذلك.

٢) قد سبق تخريجه فى كتاب الزكوة باب البيعة على إيتاء الزكوة رقم: ١٤٠٢.

٣) كشف البارى: ٢/٢.

٤) كشف البارى: ٢/٢.

٥) كشف البارى: ٢/٥٨٧ — ٥٩٩.

④ **ابوزرعه** دا ابوزرعه بن عمرو بن جریر بجلي رحمه الله دي ددوی حالات کتاب الایمان باب الجهاد من الایمان لاندې تیرشوی دی (١)

⑤ **ابوهریره** رضي الله عنه ددوی تفصیلي حالات کتاب الایمان باب أمور الایمان لاندې تیرشوی دی (٢)

**قوله قام فینا النبي صلی الله تعالی علیه وسلم فذکر الغلول فعظمه وعظم أمره:** د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دې چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مونږ ته دخطبه ورکولو دپاره اودریدو اوپه مال غنیمت کښې دغلاذکرکولوسره دا ګناه کبیره اوګرځوله او (ددې په تنیجه کښې ملاویدونکې) سزا سختۍ نی بیان کړه.

**لاألفین أحدکم یوم القیامة علی رقبته شاة لها ثغاء، علی رقبته فرس له حمحمة، یقول: یارسول الله! أغثني، فأقول: لاأملك لك من الله شیئا، قد أبلغتك**

**لاألفین:** همزه بندې ضمه فاء کسره او آخرکښې نون تاکیدثقیله سره لاأجدن په معنی کښې دې. (٣)

ددې مصدر الفاء راځی د موندلوپه معنی کښې دې. وئیلې شی الفاه هغه اوموندلو. (٤) دلته لا نافیه ده البته په بعض نسخوکښې لا د قسم سره لالفین هم ضبط شوې دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه صحیح لاې نفی دې. (٥)

علامه قسطلاني رحمه الله فرمائی: هو مثل قولهم: لا أرینك ههنا، والاصل لاتکن ههنا فاراك، وتقدیره في الحدیث: لایغل أحدکم فالفیه: أی أجره (٦) یعنی لاألفین لاأرینك ههنا په معنی کښې دې چه زه به ئی دلته هیڅ کله اونه ګورم ددې اصل دې لاتکن ههنا فاراك یعنی ته دلته مه رازه چه زما په نظر راشې دا خولفظی ترجمه ده روانه ترجمه ده ته دلته مه رازه چرته زه تا اونه وینم.

او قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه دعذری په روایت کښې لا ألفین په ځائی لا ألقین ضبط شوې دې خو مشهوراولنې دې. (٧) اوس د روایت ترجمه اوګورئی: په تاسوکښې دې یو سړې هم په مال غنیمت کښې خیانت کونکې نه شی چه زه هغه د قیامت په ورځ په داسې حالت کښې اوګورم چه د هغه په سټ باندې چیلئی وی او چغې وهی یا اس وی او هنړیږی اوهغه سړې فریاد کولوسره وائی یارسول الله! زما امداد (شفاعت) اوکړه نوزه به ورته وایم زه ستا امداد

---

(١) کشف الباري:٢/٣٠٤.

(٢) کشف الباري:٢/٦٥٩ – ٦٦٣.

(٣) عمدة القاري:١٥/١٠.

(٤) المعجم الوسیط :ص:٨٣٣.

(٥) فتح الباري:٦/٢٢٨.

(٦) إرشاد الساري:٥/١٨١.

(٧) شرح النووی علی صحیح مسلم:٢/١٢٣.

شفاعت، نه شم کولې د الله تعالی پیغام خوماتاسو ته دررسولې وو

حمحمة - بفتح الحائین المهملتین، د کیاغوښتو دپاره چه اس کوم آواز اوباسی هغې ته حمحمة وائی او صهیل مطلقًا هنریدو ته وائی (۱)

ثغاء - د ثاء په ضمه اوغین تخفیف سره د چیلئی مې مې ته وائی (۲)

**قوله** لا أملك لك شيئًا أی من المغفرة، لان الشفاعة أمرها إلى الله (۳) مطلب دادې چه زه به د الله تعالی نه ستاسو بخښنې په درخواست کولوکښې امداد نه شم کولې ځکه چه شفاعت خود الله تعالی په رضاباندې موقوف دې. په سورت أنبیاء کښې دا مضمون واضحه کولوسره فرمائی: ﴿ لَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَىٰ ﴾

وقد أبلغتك: أی فلیس لك عذر بعد الابلاغ. ددې جملې نه د رسول اکرم ﷺ منشاء دا وه چه ماتاسو ته د حق خبره خودلې وه په دې وجه د خپل خان د بخښلو دپاره به تاسو سره څه عذر نه وی (۴)

علامه عینی رحمه الله حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه د مذکوره ارشاد نه د رسول الله ﷺ مقصد ددغه جرم د سختوالی احساس رابیدارول وو گنی حضورپاک به د خپل امت د گناهگارانو دپاره د قیامت په ورځ ضرور شفاعت کوی (۵)

**قوله** وعلی رقبة صامت: اوددغه په سټ کښې به سره زر او سپین زر وی د صامت اطلاق په عربی ژبه کښې په سرو زرو او سپینو زرو باندې کیږی (۶)

**قوله** وعلی رقبة رقاع تخفق: اوددغه په سټ کښې به د کپړې ټکړې وی چه حرکت به کوی. رقاع د رقعة جمع ده د کپړې ټکړې ته وائی (۷) تخفق: أی التحرك د باب ضرب نه ددې معنی حرکت کول دی.

**د رقاع نه څه مراد دې؟:** - ددې لفظ په تشریح کښې شراح حدیث مختلف اقوال نقل کړی دی.

① علامه ابن جوزی رحمه الله فرمائی دې نه مطلقًا کپړې مراد دی (۸)

---

(۱) النهایه لابن الاثیر: ۴۳۶/۱ (مادة: حمحم) وشرح الکرمانی: ۶۴/۱۳ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری ۲۲۹/۶ وإرشادالساری: ۱۸۱/۵ ومجمع بحارالانوار: ۵۷۶/۱.

(۲) شرح الکرمانی: ۶۴/۱۳ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۹/۶.

(۳) شرح الکرمانی: ۶۴/۱۳ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۹/۶.

(۴) عمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۹/۶.

(۵) فتح الباری: ۲۲۹/۶ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وإرشادالساری: ۱۸۲/۵ والتعلیق المحمود بسنن أبی داوٗد للعلامة فخرالحسن الکنکوهی: ۱۵/۲.

(۶) شرح ابطال: ۲۳۰/۵ والنهایة لابن الاثیر: ۵۲/۳ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۵/۶.

(۷) عمدة القاری: ۱۰/۱۵ وإرشادالساری: ۱۸۲/۵.

(۸) عمدة القاری: ۱۰/۱۵ وإرشادالساری: ۱۸۲/۵.

⑦ علامه حمیدی رحمه الله فرمائی چه دې نه هغه حقوق مراد دی کوم چه په رقاع کښې تحریر کیږی المرادبهاماعلیه من الحقوق المکتوبة فی الرقاع خودا رائې رد کړې شوې ده ابن جوزی رحمه الله فرمائی چه رقاع په کپړې باندې محمول کول زیات مناسب او بهتر دی (کوم چه حسی او محسوس کیدونکې څیزدې، ځکه چه په حدیث کښې هم د حسی خیانت ذکردې. وردعلیه ابن الجوزی: بان الحدیث سبق لذکرالغلول الحسی، فحمله علی الثیاب أنسب (١) خو دا دې رائې په رد کولوسره علامه کرمانی رحمه الله اوعلامه عینی رحمه الله فرمائی چه رقاع نه بعینه کپړې مراد نه دی بلکه ددې په ...وم کښې خناور نقدی سامان کپړې ټول اجناس شامل دی. په عمدة القاری کښې دی وليس المقصودمنه الخرقة بعينهابل نعم الاجناس عن الحيوان والنقود والثياب وغيرها (٢)

خلاصه د کلام دادې چه امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب مذکوره روایت ومن يغلل يات بماغل يوم القيامة تفسیر کولوسره نقل فرمائی چه کوم سړې په مال غنیمت کښې د خیانت ارتکاب اوکړی او یو څیز پټ کړی د قیامت په ورځ رسوا او ذلیل کولو دپاره به هغه پټ کړې شوې څیز د هغه په سټ باندې بار کړې شی ددې نه د جرم د سختوالی اندازه لګولې شی.

**قوله** وقال أيوب عن أبي حيان: فرس له حمحمة - دا تعلیق ابوطاهر ذهلی رحمه الله په فوائد کښې د قاضی یوسف بن یعقوب په طریق سره او امام مسلم رحمه الله عن حماد، بل عن عبدالوارث عن أبي حيان عن أبي زرعة عن أبي هريرة رضي الله عنه په طریق سره موصولاً روایت کړې دې. (٣)

**ددې تعلیق مقصد:** - د ترجمة الباب په مذکوره روایت کښې وعلى رقبته فرس له حمحمة کښې لفظ فرس تصریح ده. کشمیهنی نسفی اوابوعلی بن شبویه رحمهم الله په نسخو کښې دی وعلی رقبته له حمحمة په دې کښې لفظ فرس ساقط دې. (٤) نو امام بخاری رحمه الله په مذکوره تعلیق سره اشاره اوفرمائیله چه د لفظ فرس تصریح په دوو روایاتو کښې موجود ده. (٥)

**په مال غنیمت کښې د مسروقه مال حکم:** - علامه ابن منذر رحمه الله فرمائی د مال غنیمت د تقسیم نه وړاندې په سارق باندې مسروقه مال واپس کول بالاجماع واجب دی. (٦)

خو که دا مال د اسلامی لښکرد خوریدونه پس واپس کړې شی او مستحقینو ته د دغه مال رسول ممکن پاتې نه شی نوبیا به څه کولې شی؟ په دې کښې د فقهاؤ اختلاف دې. امام ثوری امام اوزاعی امام مالك او امام احمد بن حنبل رحمهم الله مسلك دادې چه هغه سړې به د

---

(١) ایضاً.

(٢) عمدة القاری:١٥/١٠.

(٣) فتح الباری:٦/٢٣٠وتغلیق التعلیق للحافظ ابن حجر:٣/٤٦٣.

(٤) عمدة القاری:١٥/١٠وفتح الباری:٦/٢٣٠وإرشادالاساری:٥/١٨٢.

(٥) عمدة القاری:١٥/١٠وفتح الباری:٦/٢٣٠وإرشادالاساری:٥/١٨٢.

(٦) نیل الاوطارللشوکانی رحمه الله كتاب الجهادوالسير:٨/١٣٨باب التشديدفی الغلول وتحريق رحل الغال.

مسروقه مال خمس امیرته واپس کړی او باقی حصه دې صدقه کړی (۱)

امام شافعی رحمه الله فرمائی چه چاسره مال غنیمت وی نو دهغې دوه صورتونه دی ① چه مال غنیمت دهغه شرعی حق وی یعنی د غنائم د تقسیم په وخت دهغې مالك جوړ شوې وی په دې صورت باندې ښکاره خبره ده چه دهغې صدقه کول واجب نه دی ② چه شرعی حق نه وی بلکه غلانی کړې وی نو په دې صورت کښې ښکاره خبره ده چه دا پردې مال دې او د پردی مال صدقه کول په یوصورت باندې هم جائزنه دی دا مال به د اموال ضائعه په حکم کښې وی یعنی دا به حاکم وخت ته واپس کول واجب وی (۲)

د مذکوره دواړو مسلکونو استدلال د سنن ابوداود ددې روایت نه دې عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما قال كان رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم ـ إذا أصاب غنيمة أمربلالا فنادى في الناس، فيجيئون بغنائمهم، فيخمسه ويقسمه. فجاء رجل بعد ذلك بزمام من شعر فقال: يارسول الله هذا فيما أصبناه من الغنيمة، فقال: أسمعت بلالا ينادى ثلاثا؟ قال نعم قال فما منعك أن تجئ به؟. فاعتذر اليه، فقال: كن أنت تجئ به يوم القيامة فلن أقبل منك. (۳)

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه کله به رسول الله ﷺ ته د غنیمت مال حاصل شو نو بلال (رضی الله عنه) ته به ئی د اعلان کولوحکم اوکړو نو ددې اعلان په نتیجه کښې به خلقو خپل غنیمت راوړلو حضورپاك به دهغې خمس ویستلو او تقسیم کولوبه نی یوځل د تقسیم غنائم نه پس یوسړی د ویښتوجوړشوې یوجلب راوړو وئی یارسول الله ﷺ دا د هغه مال غنیمت نه دې کوم چه مونږ ته ملاو شوې وو حضورپاك (درې ځل مکرر) اوفرمائیل آیا تا بلال په آواز کولواوریدلې وو؟ هغه وئیل اوجی حضورپاك اوفرمائیل بیاته څه څیزددې د راوړلونه منع کړې؟ هغه عذرپیش کړو نو حضورپاك اوفرمائیل صبراوکړه که چرې ته دا د قیامت په ورځ راوړې نوبیابه ئی هم زه قبول نه کړم.

امام ثوری امام اوزاعی امام لیث او امام مالك رحمهم الله فرمائی چه دې سړی له پکاروو چه د دغه مال خمس نی ویستلې وې او امیرته نی واپس کړې وې او باقی نی صدقه کړې وې. خو امام شافعی رحمه الله فرمائی لکه چه ددې تفصیل شاته تیرشوې دې که هغه په شرعی طریقه د مال مالك جوړشوې وو یعنی هغه مال هغه د غنیمت په توګه سره اخستې وو نوبیا په هغه باندې صدقه کول هډو واجب نه وو او که سرقه وه نوښکاره خبره ده چه پردې مال کیدو د وجه نه هغه صدقه کول جائزنه وو لهذا دغه مال هغه له اموال ضائعه په شان امام له حواله کول پکاروو.

علامه شوکانی رحمه الله په نیل الاوطار کښې فرمائی قال الثوری والاوزاعی والليث ومالك: يدفع إلى

---

(۱) المغنی لابن قدامة: ۵۲۶/۱۰ كتاب الجهاد أحكام في الغلول. رقم الفصل: ۷۶۰۷ وعمدة القاری: ۱۰/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۹/۶ وبذل المجهود: ۲۹۰/۱۲.

(۲) نیل الاوطارللشوکانی رحمه الله ۱۳۸/۸ کتاب الجهاد باب التشدیدفی الغلول وتحریق رحل اللغال وعمدة القاری: ۱۱/۱۵ وفتح الباری: ۲۲۹/۶ وبذل المجهود: ۲۹۰/۱۲.

(۳) سنن ابی داود: ۱۵/۲ کتاب الجهاد باب فی الغلول إذا كان يسيراً يتركه الامام ولايحرق رحله.

الامام خمسه ويتصدق بالباق وكان الشافعي لايرى ذلك ويقول: إن كان ملكه فليس عليه أن يتصدق به، وإن كان لم يملكه فليس له التصدق بمال غيره، قال: والواجب أن يدفع إلى الامام كالاموال الضائعة.[1]
دَ احنافو په نيز امام ته اختيار دې چه دَهغه سړي مال قبلولو نه انكار كولوسره اووائى چه هغه دې پخپله مستحق ته دَهغه حق اورسوى يادې دَهغې خمس واخلى بيت المال كښې دې جمع كړې باقى حصه دې هغه سړې دَ لقطه په توګه خپل خان سره اوساتى يادې مسكينانوته وركړى يادې بيت المال كښې جمع كړى. خپل خان سره دې په هغه صورت كښې اوساتى چه كله دَهغه اميدوى چه حقدارته به دغه مال اورسوى. كه چرې اميد نى نه وى نوبيادې په مسكينانو كښې تقسيم كړى يادې بيت المال كښې جمع كړى.
په السير الكبير كښې دى. ولوان رجلا غل شيئًا من الغنائم، فاتى به الامام بعد القسمة وتفرق الجيش فللامام فى ذلك راى: إن شاء كذبه فيما قال، وقال: أنا لا أعرف صدقك وقد التزمت وبالا بزعمك، وأنت أبصر بما التزمته حتى توصل الحق إلى المستحق، وإن شاء أخذ ذلك منه وجعل لمن سمى الله تعالى لانه وجد المال فى يده وصاحب المال مصدق شرعًا فيما يخبر به من حال فى يده وباعتبار صدقه خمسه لارباب الخمس فيصرف إليهم، والباق يكون بمنزلة اللقطة فى يده إن طمع أن يقدر على أهله...... وإن لم يطمع فى ذلك قسمه بين المساكين إن أحب وإلا جعله موقوفا فى بيت المال.[2]
يعنى كه يوسړې دَمال غنيمت نه غلاوكړى اوبيا دې خپيمانه وى اودَ غلا مال دَمال غنيمت دَ تقسيم اودَ لښكردَ خوريدو نه پس حاكم وخت له راوړى. نو په دې صورت كښې حاكم ته اختيار دې ياخودې دَهغه خبره دروغ اوګنړى او ورته دې اووائى چه زما ستا په صداقت باندې يقين نشته تاپخپله په خپل ځان باندې وبال اچولې دې. ته پوهه شه او حقدار ته دَهغه حق رسول ستا په ذمه دى. ياكه امام وخت غواړى نودَغلا دا مال دې واخلى او صحاب خمس ته دې وركړى. چونكه حاكم دغه مال دې سړى سره ليدلې دې. بل چه صاحب مال په خپله قبضه كښې موجود دَ كوم يوڅيز هم خبر وركړى نو شرعًا دَدې تصديق معتبردې. دَ هغه دَ قول اعتبار كولوپه صورت كښې دَغلادَ مال به خمس ويستلې شى اصحاب خمس ته دې وركړې شى. باقى حصه به دَدې سړى سره دَ لقطه په توګه پرته وى. كه مستحق ته دَ رسولودكاميابئ اميد وى نودغه مال دې دَهغې اصل حقدارته اورسوى. كه اميدنه وى نودَده مرضى ده كه غواړى نو په مسكينانو كښې دې تقسيم كړى يا دې بيا په بيت المال كښې جمع كړى.

[1] ) نيل الاوطار للشوكانى:١٣٨/٨ كتاب الجهاد والسير باب التشديد فى الغلول وتحريق رجل الغال وبذل المجهود:٢٩٠/١٢.
[2] ) بذل المجهود:٢٩٠/١٢.

## باب- ۱۸۶ القلیل من الغلول

**دَ ترجمة الباب مقصد**: په دې ترجمة الباب سره امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه دَ کم غلول حکم هم هغه دې کوم چه دَ غلول کثیر دې؟ دَدې جواب هم دَ روایت نه معلوم شوچه د دواړو حکم یو دې (۱)

**ولم یذکر عبدالله بن عمرو، عن النبی ﷺ أنه حرق متاعه، هذا أصح.**

چونکه بعض فقهاء دَ تحریق متاع دَ غال دَ جواز قائل دی او دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه په یو روایت کښې هم دی چه په سنن ابوداؤد کښې نقل دې تحریق متاع غال تصریح ده. په دې وجه وړاندې باب لاندې هم دَ عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روایت راروان دې امام بخاری رحمه الله دَ هغې متعلق باور کوی چه په دې روایت کښې دانقل نه دی چه حضورپاک دَ کرکره نومې غلام مال اومتاع سوزولو حکم ورکړې وو. صحیح دادی چه حضورپاک داسې هیڅ حکم نه وو صادر کړې دَ هذا أصح مطلب دادې چه صحیح هم دغه دی دَعبدالله بن عمرو رضی الله عنه په حدیث باب کښې دَتحریق متاع غال ذکر نشته.(۲)

په دې وجه امام بخاری رحمه الله ولم یذکر صیغه تمریض راوړلوسره دَعبدالله بن عمرو رضی الله عنهما ذکر تحریق متاع الغال والا روایت تضعیف اوفرمائیلو اودَعدم ذکر تحریق الغال والا روایت صحت طرف ته ارشاه اوکړه.(۳) دَ مذکوره جملې نه امام بخاری رحمه الله دَ سنن ابوداؤد دَ هغه روایاتو دَ ضعف طرف ته اشاره کړې ده. په کوم کښې چه تحریق متاع غال ذکر دې

① په سنن ابوداؤد کښې دَحضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما روایت دې. **عن صالح بن محمد بن زائدة قال دخلت مع مسلمة أرض الروم فأتی برجل قد غل فسأل سالما عنه فقال: سمع أبی یحدث عن عمر بن الخطاب عن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم قال: إذا وجدتم الرجل قد غل فأحرقوا متاعه واضربوه.** (۴)

صالح بن محمد وائې چه زه مسلمه سره روم ته لاړم. هلته یوغلول کونکې سړې راوستلې شو. دَ سالم بن عبدالله نه دده باره کښې تپوس اوکړې شو نوهغه اووئیل چه ما دَ خپل پلار (عبدالله بن عمر رضی الله عنهما) ته عمر بن خطاب رضی الله عنه روایت کولوسره واورېدو چه حضورپاک ﷺ اوفرمائیل کله چه تاسو غلول کونکې سړې اووینئ نودَهغه مال اوسوزوئ او هغه اووهئ.

هم دَدې روایت باره کښې امام بخاری رحمه الله په خپل تاریخ کښې تحریرفرمائی: **یحتجون بهذا الحدیث فی أحراق رجل الغال، وهو باطل لیس له أصل، وراویة لا یعتمد علیه.** (۵) یعنی بعض تحریق

---

(۱) عمدة القاری: ۱۱/۱۵ وفتح الباری: ۶/۲۳۰.

(۲) عمدة القاری: ۱۱/۱۵.

(۳) عمدة القاری: ۱۱/۱۵.

(۴) سنن أبی داؤد: ۲/۱۵ کتاب الجهاد باب فی عقوبة الغال وعمدة القاری: ۱۱/۱۵ وفتح الباری: ۶/۲۳۰ وإرشادالساری: ۵/۱۸۲.

(۵) فتح الباری: ۶/۲۳۰ وإرشادالساری: ۵/۱۸۲.

متاع غال قائلين د خپل مسلك د اثبات دپاره د دې حديث نه استدلال كوي حالانكه دا حديث باطل دې د دې هيڅ اصل نشته اودا روايت كونكې هم معتمد نه دې د دې حديث په سند كښې صالح بن محمد بن زائده ته ائمه رجال ضعيف ګرځولې دې امام ترمذي رحمه الله د دې حديث په ذيل كښې په صالح باندې جرح كولو سره تحرير فرمائي صالح منكر الحديث ولم يامر النبي صلى الله تعالى عليه وسلم يحرق متاع الغال [1]

د امام منذري رحمه الله قول دې وصالح بن محمد بن زائده تكلم فيه غير واحد من الائمة وقد قيل انه تفرد به [2] امام دارقطني رحمه الله هم د دې مذكوره روايت تضعيف كولو سره فرمائي أنكروا هذا الحديث على صالح بن محمد، وهذا حديث لم يتابع عليه، ولا أصل لهذا الحديث عن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم [3]

② د سنن ابوداؤد دويم روايت دې عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده: أن رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم وأبابكر وعمر حرقوا متاع الغال وضربوه [4] دا روايت هم سنداً ضعيف او مضطرب دې د دې په سند كښې زبير بن محمد الخراساني د نوم راوي متكلم فيه دې امام بيهقي رحمه الله د ده باره كښې فرمائي إنه مجهول [5] خلاصه دا شوه چه د امام بخاري رحمه الله په نيز تحريق متاع غال جائز نه دې د مذكوره جملې نه هغوي د سنن ابوداؤد د دې روايتونه ضعيف او بې اصل كيدو طرف ته اشاره كړې ده. په كوم كښې چه تحريق متاع غال تصريح ده

**په مال غنيمت كښې د خيانت مسئله** - امام اعظم ابوحنيفه امام مالك امام شافعي رحمهم الله او ډيرو صحابه كرامو او تابعين كرامو په نيز اميريا حاكم ته غلول كونكو د پاره بدني سزا او تعزير تجويز كولو اختيار دې خود هغه مال او متاع سيزل جائز نه دى [6]

**د مخالفينو مسلك او د هغوي دلائل ورد:** - حسن بصري، احمد بن حنبل، اسحاق، مكحول او امام اوزاعي رحمهم الله په نيز د هغه ټول مال او متاع سوزول جائز دى [7] البته امام اوزاعي رحمه الله فرمائي چه د تحريق د حكم كونكي اسلحه او لباس مستثنى دې هغه سوزول جائز نه

---

[1] ) جامع الترمذي: ١/٢٧٠ أبواب الحدود باب ماجاء في الغال مايصنع به. ونيل الاوطار: ١٣٨/٨ وفتح الباري: ٢٣٠/٦ وأوجز المسالك: ٣٣٩/٨.

[2] ) نيل الاوطار للشوكاني: ١٨٣٩/٨ كتاب الجهاد والسير باب التشديد في الغلول وتحريق رجل الغال.

[3] ) نيل الاوطار للشوكاني: ١٨٣٩/٨ كتاب الجهاد والسير باب التشديد في الغلول وتحريق رجل الغال.

[4] ) سنن أبي داؤد: ١٥/٢ كتاب الجهاد باب في عقوبة الغال.

[5] ) نيل الاوطار للشوكاني: ١٨٣٩/٨ كتاب الجهاد والسير باب التشديد في الغلول وتحريق رجل الغال.

[6] ) المغني لابن قدامة: ٥٢٤/١٠ كتاب الجهاد باب أحكام في الغلول وشرح النووي على صحيح مسلم: ١٢٣/٢ كتاب الامارة باب غلظ تحريم الغلول وعمدة القاري: ١١/١٥ وشرح ابن بطال: ٢٣٥/٥.

[7] ) المغني لابن قدامة: ٥٢٤/١٠ كتاب الجهاد باب أحكام في الغلول رقم المسئلة: ٧٦٠٣ وشرح النووي على صحيح مسلم: ١٢٣/٢ كتاب الامارة باب غلظ تحريم الغلول وشرح ابن بطال: ٢٣٥/٥ وفتح الباري: ٢٣٠/٦ - ٢٣١ وأوجز المسالك للمحدث الكاندهلوي: ٣٣٨/٨.

دى (١) خوحسن بصرى رحمه الله فرمائي د حيوان اومصحف نه علاوه دهغه ټول مال او متاع اوسوزوى (٢)

دې حضراتو د سنن ابوداؤد د روايتونه استدلال کړې دې امام بخاری رحمه الله د جمهورو تائيد کولوسره ددوى تضعيف کړې دې شته ددې تفصيل تيرشوې دې حضرت مولانا فخر الحسن گنگوهی رحمه الله فرمائي د جمهورو په نيزد سنن ابوداؤد روايات تغليظ باندې محمول دى اودهغى په نيزد رسول اکرم ﷺ نه د متاع غال د سوزولوحکم چرته نقل نه دي (٣)

امام طحاوى رحمه الله فرمائي که دا روايات سنداً صحيح هم اومنلى شى خو بيا هم د استدلال قابل نه شى جوړيدې ځکه چه دا په هغه وخت محمول دى اودمالى سزاحکم نه فذالعمل وو روستوداحکم منسوخ شوې اوس هرقسم مالى سزا منسوخ ده امام طحاوى رحمه الله فرمائي

لوصح الحديث لاحتمل أن يكون حين كانت العقوبة بالمال (٤)

[حديث ٢٩٠٩] (٥) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ كَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ كِرْكِرَةُ فَمَاتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «هُوَ فِي النَّارِ». فَذَهَبُوا يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ فَوَجَدُوا عَبَاءَةً قَدْ غَلَّهَا.

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله**:- داامير المؤمنين فى الحديث على بن عبدالله بن جعفر نجيح بصرى رحمه الله دې په ابن المدينى باندې مشهوردې ددوى تذکره کتاب العلم باب الفهم فى العلم لاندې تيره شوې ده (٦)

② **سفيان**:- دامشهور محدث ابو محمد سفيان بن عيينه بن ابى عمران هلالى رحمه الله دې د دوى تذکره کتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبره...... لاندې تيره شوې ده (٧)

③ **عمرو**:- دا ابومحمد الاثرعمرو بن دينارالمكى رحمه الله دې کتاب العلم باب العلم والعظه بالليل لاندې د دوى تذکره تيره شوې ده.

---

(١) المغنى:١٠/٥٢٤وشرح النوى على صحيح مسلم:٢/١٢٣.

(٢) المغنى:١٠/٥٢٤وشرح النوى على صحيح مسلم:٢/١٢٣.

(٣) التعليق المحمود على سنن أبى داؤد للعلامة المحدث فخر الحسن گنگوهى:٢/٥ كتاب الجهاد باب فى عقوبة الغال.

(٤) شرح النووى على صحيح مسلم:٢/١٣٢ وشرح ابن بطال:٥/٢٣٥ وعمدة القارى:١٥/١١ وفتح البارى:٦/٢٣١ونيل الاوطار للشوكانى:٨/١٣٩.

(٥) وأخرجه ابن ماجه أيضًا فى سننه ص:٢٠٤ فى الجهاد باب الغلول رقم:٢٨٤٩.

(٦) كشف البارى:٣/٢٥٦.

(٧) كشف البارى:٣/٨٦ – ٩٠.

④**سالم بن ابی جعد** - داد رافع الغطفاني الاشجعي آزاد کړې شوې غلام سالم بن ابی الجعد الکوفي رحمه الله دې كتاب الوضوء باب التسمية على كل حال وعند الوقاع لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده.

⑤**عبدالله بن عمرو** رضي الله عنهما - دامشهورصحابي حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص بن وائل بن هاشم بن سعيد السهمي دي. كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده (١)

په روايت کښې دی دَ رسول الله ﷺ په اهل اوعيال باندې يوسړې مقرروو کوم ته چه به ئې کرکره وئيل کله چه هغه مړ شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل هوفي النار خلق دَهغه کتلوته لاړل نوهغوی دَ لوټ په مال کښې يوه کمبله اوليدله کومه چه هغه پټه کړې وه

**ثَقَل** - ثاء اوقاف په فتحه سره اهل وعيال ته وائي. ﴿ وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا ﴾ کښې مفسرينو دَ بنيادم دَوجود په معنی کښې اخستې دې.(٢) دَ ثقل دويمه معنی ده: متاع السفر دَ مسافر دَ لارې توښه.(٣)

**کرکره** - علامه قسطلاني رحمه الله فرمائي چه په حديث باب کښې کرکرة دکاف اول اوثاني دواړو کسره سره دی.(٤) خودا رائې پخپله دامام بخاري رحمه الله درائې خلاف ده. وړاندې تعليقًا دَهغه دَ شيخ قول راځی چه په دواړو کافونوباندې فتحه ده.

دا يوتورحبشی ووديمامه هوذه بن علی الحنفي دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې هديه کړې وو. دَ جهاد په دوران کښې به ئې دَ رسول الله ﷺ دَ سورلئي واګه نيولې وه روستو بې حضورپاك آزادکړو. علامه بلاذري رحمه الله ليکلی دی چه دې هم دَغلامئی په حالت کښې وفات شوې دې. (٥) شراح حديث په دې باره کښې ليکلی دی وكان نوبيا دَ سوډان نوم دَ تاريخ په کتابونوکښې نوبيه هم ليکلې شوې دې په دې وجه سوډان سره تعلق لرونکوته نوبي وئيلې شي.

**دَ هوفي النار مطلب** - ①علامه داؤدی حافظ ابن حجر اوعلامه قسطلاني رحمهم الله فرمائي دَ رسول الله ﷺ دَدې ارشاد مطلب دې هوفي النار إن لم يعف الله عنه يعنی که چرې الله تعالی دَهغه مغفرت اونه کړو نودَ جهنم په اورکښې به راګيروی (٦)

② علامه عيني رحمه الله دَدې قول درې توجيهات بيان کړی دی چه ممکن ده چه دَخپل جرم سزا يوسړې په قبرکښې اوخوری اوروستودَ دوزخ دَ اور نه هغه ته خلاصې ملاؤشی نولکه چه دې

---

(١) کشف الباري: ٦٧٩/١.

(٢) مختار الصحاح ص: ١١٧ ماده ثقل.

(٣) النهاية لابن الاثير: ٢١٧/١ وعمدة القاري: ١٢/١٥ وفتح الباري: ٢٣١/٦ ومختار الصحاح ص: ١١٧.

(٤) إرشادالساري: ١٨٢/٥.

(٥) فتح الباري: ٢٣١/٦ و إرشاد الساري: ١٨٢/٥ ومعجم البلدان للحموی: ٣/٥٨ – ٥٩.

(٦) الانساب للسمعاني : رحمه الله ٥٣٠/٥.

نه عذاب قبر مراد دي ③ ممکن دہ چه هغه په زړه کښې نفاق پټ کړې وی او هم هغه د دوزخ د اور موجب جوړ شوې وی

④ یا په مال غنیمت کښې خیانت او غلا کولو د وجه د اور د عذاب مستحق ګرځیدلې وی او د دغه عذاب نه پس د هغه بخښنه شوې وی په یو روایت کښې د رسول الله ﷺ مبارک ارشاد دې یخرج من النار من في قلبه مثقال ذرة من ایمان یعنی د دوزخ د اور نه به هر هغه سړې خلاصې بیامومی د چا په زړه کښې د رتنی برابر ایمان هم وی که هغه په حالت د ایمان کښې مړ شوې وی نو ددې حدیث په رڼا کښې د مقرر سزا نه پس د هغه خلاصیدل یقینی دی

علامه عینی رحمه الله فرمائی: قوله: هو في النار، قال ابن التین عن الداؤدی: یحتمل أن یکون هذا جزاءه إلا یعفو الله، ویحتمل أن یصیبه في القبر، ثم ینجو من جهنم، ویحتمل أن یکون وجبت له النار من نفاق کان یسره أو بذنب مات علیه مع غلوله أو بما غل، فإن مات مسلما فقد قال النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: یخرج من النار من في قلبه مثقال ذرة من إیمان.[1]

**قوله: قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ قَالَ ابْنُ سَلَامٍ كَرْكَرَةُ، يَعْنِي بِفَتْحِ الْكَافِ، وَهُوَ مَضْبُوطٌ كَذَا:** د ابو عبدالله نه هم پخپله امام بخاری رحمه الله مراد دي او د ابن سلام نه د هغه شیخ محمد بن سلام (بتخفیف اللام) مرادي.[2] البته د ابوذر په روایت کښې قال أبو عبدالله ساقط دي[3] دلته امام بخاری رحمه الله د کرکرة په ضبط کښې د اختلاف طرف ته اشاره کولو سره د خپل شیخ محمد بن سلام رحمه الله نه د ابن عیینه رحمه الله قول نقل کړې دې چه هغوی د کرکره نه وړاندې دویم کاف باندې فتحه ورکولو سره تلفظ کړې دې. دا هم د دغه شان نقل دې او علامه اصیلی رحمه الله هم د دې تصریح کړې ده.[4]

قاضي عیاض رحمه الله فرمائی چه اول او دویم کاف دواړه فتحه او کسره سره لوستل صحیح دی.[5] امام نووی رحمه الله فرمائی چه د کاف اول په تلفظ کښې خو اختلاف دې لیکن دویم کاف بالاتفاق مکسور دې[6] علامه قسطلانی رحمه الله رائې شاته تیره شوه چه لفظ کرکره کښې اول او دویم کاف دواړه بالکسر دی.

امام بخاری رحمه الله د خپل شیخ محمد بن سلام رحمه الله نه د ابن عیینه رحمه الله چه کوم قول نقل کړې دې د هغې نه د امام بخاری رحمه الله رحجان هم معلومیږی چه د هغوی په نیز کاف اول او دویم فتحه

---

[1]) عمدة القاری:۱۲/۱۵.

[2]) عمدة القاری:۱۲/۱۵.

[3]) إرشادالساری:۱۸۲/۵.

[4]) فتح الباری:۲۳۱/۶وعمدة القاری:۱۲/۱۵ونیل الاوطار للشوکانی:۱۳۷/۸ کتاب الجهاد باب فی تشدید الغلول و تحریق رجل الغال.

[5]) فتح الباری:۲۳۱/۶ إرشادالساری:۱۸۲/۵ ونیل الاوطار للشوکانی:۱۳۷/۸.

[6]) فتح الباری:۲۳۱/۶ إرشادالساری:۱۸۲/۵ ونیل الاوطار للشوکانی:۱۳۷/۸.

سره لوستل راجح دى د كركره په تلفظ كنبې هريوقول اختياروليې شى په دې كنبې توسع ده

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت** - د باب القليل من الغلول ترجمه قايم كولوسره امام بخارى رحمه الله داخودلى دى چه دعقوبت او سزا په لحاظ سره په غلول كثير اوقليل كنبې څه فرق نشته په حديث باب كنبې دى فوجدوا عباءةقدغلها ترجمة الباب سره ددې مناسبت بالكل واضح دې چه د مال ومتاع دنورو اصنافو په مقابله كنبې د غنيمت نه يومعمولى څادر غلا كول هم د دوزخ دتباهنى كونكى عذاب موجب جوړيږى (١)

علامه شوكانى رحمه الله په نيل الاوطار كنبې فرمانى چه دعبدالله بن عمرو رضي الله عنهما دا روايت په دې باندې دلالت كوى چه دعقوبت او سزاپه اعتبارسره غلول كثير اوقليل دواړه برابردى (٢)

## باب-١٨٧ مايكره من ذبح الابل والغنم فى المغانم

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې باب لاندې امام بخارى رحمه الله داخودل غواړى چه دمال غنيمت دتقسيم نه وړاندې دامام د اجازت نه بغيركوم يوڅناور هم ذبح كول اوخوړل مكروه دى هغه د حديث باب نه استدلال كړې دى

[حديث ٢٩١٠] (٣) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهِ رَافِعٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - بِذِى الْحُلَيْفَةِ، فَأَصَابَ النَّاسَ جُوعٌ وَأَصَبْنَا إِبِلاً وَغَنَمًا، وَكَانَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فِى أُخْرَيَاتِ النَّاسِ، فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا الْقُدُورَ، فَأَمَرَ بِالْقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ، ثُمَّ قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الْغَنَمِ بِبَعِيرٍ، فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ، وَفِى الْقَوْمِ خَيْلٌ يَسِيرٌ فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ، فَأَهْوَى إِلَيْهِ رَجُلٌ بِسَهْمٍ، فَحَبَسَهُ اللَّهُ فَقَالَ « هَذِهِ الْبَهَائِمُ لَهَا أَوَابِدُ كَأَوَابِدِ الْوَحْشِ، فَمَا نَدَّ عَلَيْكُمْ فَاصْنَعُوا بِهِ هَكَذَا ». فَقَالَ جَدِّى إِنَّا نَرْجُو - أَوْ نَخَافُ - أَنْ نَلْقَى الْعَدُوَّ غَدًا وَلَيْسَ مَعَنَا مُدًى، أَفَنَذْبَحُ بِالْقَصَبِ فَقَالَ « مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ فَكُلْ، لَيْسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ، وَسَأُحَدِّثُكُمْ عَنْ ذَلِكَ، أَمَّا السِّنُّ فَعَظْمٌ، وَأَمَّا الظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ ». [ر: ٢٣٥٦]

## رجال الحديث

① **موسى بن اسماعيل**:- دا موسىٰ بن اسماعيل التبوذكى المنقرى البصرى رحمه الله دې كتاب الايمان باب كيف كان بدء الوحى لاندې ددوى تذكره تيره شوې ده (٤)

② **ابوعوانه** - دا ابوعوانه وضاح بن عبدالله يشكرى دې د دوى تذكره په مذكوره كتاب او باب لاندې تيره شوې ده (٥)

---

(١) عمدة القارى:١٥/١٢ وإرشادالسارى:١٨٢/٥.

(٢) نيل الاوطار للشوكانى:١٣٩/٨ – ١٤٠كتاب الجهاد باب التشديد فى الغلول وتحريق رجل الغال.

(٣) مر تخريجه فى كتاب الشركة باب قسمة الغنم رقم:٢٤٨٨.

(٤) كشف البارى:٤٣٣/١ – ٤٣٤.

(٥) كشف البارى:٤٣٤.

③ **سعید** دا جلیل القدر محدث سفیان ثوری رحمه الله پلار سعید بن مسروق الثوری دې. د دوی تذکره کتاب الاذان باب من شکا إمامه إذا طول لاندې تیره شوې ده

④ **عبایه بن رفاعه** دا عبایه بن رفاعه بن رافع الانصاری المدنی رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الجمعة باب المشی إلی الجمعة لاندې تیره شوې ده

⑤ **رافع** دا مشهور صحابی رافع بن خدیج بن عدی الحارثی الاوسی انصاری رضی الله عنه دې. د ده حالات کتاب مواقیت الصلوة باب وقت المغرب لاندې تیرشوی دی

قال کنا مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم بذی الحلیفة فاصاب الناس جوع وأصبنا إبلا وغنما وکان النبی صلی الله تعالی علیه وسلم فی أخریات الناس.

حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائی مونږ په ذوالحلیفه کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو خلق اوږګی شو نو مونږ د غنیمت نه اوښ اوچیلئ واخستې (مطلب دادې چه د خوراك د پاره څاروی ذبح کړل) هغه وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم د لښکر شاته حصه کښې وو

**قوله: فعجلوا فنصبوا القدور**- خلقو د (اولګې د سختوالی د لاسه) د تندنی نه کارواخستو او (څاروی ذبح کړل) کټوئی ئی په نغروباندې وراوخیژولې.

**قوله: فامر بالقدور فاکفئت**- کله چه رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړو نو د کټوو اړولو حکم ئی اوکړو نو کټوئی واړولې شوې.

**فاکفئت**- کفا کفاء (فتح) معنی راګرځیدل ده دلته د باب افعال نه استعمال شوې دې. د أکفا الاناء معنې ده لوښی اړول.

**د غنیمت د خوراك څښاك د څیزونو حکم**:- قاضی عیاض رحمه الله فرمائی په دارالحرب کښې د مجاهدین اسلام د پاره د غنیمت نه ملاویدونکی د خوراك څښاك څیزونه په اندازه د ضرورت په خپل استعمال کښې راوستل په اتفاق سره جائزدی او په دې کښې د امام نه اجازت اخستل هم ضروری نه دې. (١) د جمهور فقهاؤ په نیز څاروی هم د خوراك د پاره ذبح کول جائزدی. (٢) البته حافظ ابن حجر رحمه الله د امام شافعی رحمه الله نه د حاجت او ضرورت قید نقل کړې دې. (٣) خو په تحفة المحتاج کښې جمهور فقهاؤ سره د شوافع د موافقت تصریح موجود ده (٤) علامه خرقی رحمه الله فرمائی چه ترکومې اضطراری حالت نه وی د غنیمت د خوراك هیڅ څیز استعمال کول جائزنه دی. (٥)

---

١) شرح النووی علی صحیح مسلم: ٩٧/١ باب جواز الاکل فی طعام الغنیمة فی دارالحرب.
٢) لامع الدراری: ٣٨٩/٧ وأوجز المسالک: ٢٦٧/٨.
٣) فتح الباری: ٢١٤/٦ وأوجز المسالک: ٢٦٦/٨.
٤) لامع الدراری: ٣٨٩/٧ وأوجز المسالک: ٢٦٧/٨.
٥) المغنی لابن قدامة: ٤٩٩/١٠ کتاب الجهاد أحکام فی الغلول وأوجز المسالک: ٢٦٧/٨.

په دې مسئله کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله هم جمهورفقهاؤ سره دې قاضي عياض رحمه الله فرمائيلي چه دَامام احمد رحمه الله دَ ظاهرکلام نه معلوميږي چه دَ هغوی په نيزخاروې ذبح کول جائزدی ځکه چه دَ خوراك اوڅښاك په معامله کښې دهغوی خيال دې چه دَ خاروی حيثيت هم هغه دې کوم چه دَخوراك څښاك دَعامو څيزونودې (١) البته دجمهور فقهاؤ برخلاف دَامام زهري رحمه الله په نيزد خاروی دَ ذبح کولوجواز دَ جنګ دامير په اجازت باندې منحصردې که دَ امير اجازت وی نو جائزدې اوکنې نه دې (٢)

خلاصه دا ده چه دَجمهورفقهاؤ په نيزد مجاهدين اسلام دَپاره دَغنيمت نه دَ خوراك تول څيزونه دَ استعمالولو اجازت دې او په دې خبره کښې دَ امير اجازت ضروري نه دې امام بخاری رحمه الله دَ کتاب الخمس په آخره کښې **باب مايصيب من طعام في أرض العدو** ترجمه قايم کړې ده دَدې مسئلې متعلق نور تفصيل به هم هلته بيانوو. ان شاء الله

**دَ امام بخاری رحمه الله مسلک** - دلته غالباً امام بخاری رحمه الله دَ ترجمة الباب نه دا ثابتول غواړي چه په دارالحرب کښې دَ خوراك کوم څيزونه موجود وی مثلاً سالن روټئی او ميوې وغيره نودهغې استعمال خوبغيردَ اجازت دَ اميرنه دَ څه کراهت نه بغيرجائزدې لکه چه کتاب الخمس لاندې امام بخاری رحمه الله باب مايصيب من طعام في أرض العدوترجمه قايم کولوسره دَ جمهورو موافقت کولوسره دَ جواز تصريح کړې ده. خوکه مجاهدين خاروی ذبح کوی نودهغې دوه صورتونه دی: ① ومبې صورت دادې خاروې په دارالحرب کښې ذبح کړی ② دويم دا چه دَ دارالحرب نه په واپسئی دارالاسلام کښې ذبح کړی.

امام بخاري رحمه الله ممکن دی چه په ترجمة الباب کښې دا دويم صورت په کراهت باندې محمول کړې وی. دَ رافع بن خديج رضي الله عنه په روايت باب کښې هم ددې دويم صورت ذکردې.لکه چه دَ علامه مهلب رحمه الله رائې ده چه دا واقعه دارالاسلام يعنی ذوالحليفه په مقام باندې پيښه شوې. (٣) چه صحابه کرامو دَ اجازت نه بغير او دَتقسيم غنايم نه وړاندې خاروی ذبح کړی او دَ غوښې پخولودَپاره ئی کټوئی په نغرو باندې خيژولې وې. ليکن رسول الله ﷺ ته چه خبر اوشو نو دَ اړولوحکم ئی اوکړو.

تاهم دَ حضرت ګنګوهي رحمه الله په نيزدَامام بخاری رحمه الله ميلان مطلقاً دکراهيت طرف ته دې. که چرې ذبح په دارالحرب کښې وی نوبياهم دَامام بخاری رحمه الله ميلان دَ کراهت طرف ته دې. (٤)

والله تعالى اعلم وعلمه اتم واحکم.

**دَ کټوو دَ اړولوحکم ئی ولې ورکړو؟**:- په حديث باب کښې دَ غوښې نه ډکو کټوو اړولوچه کوم حکم رسول الله ﷺ فرمائيلې اشکال کيدې شی چه داغوښه مال غنيمت اودَ مسلمانانو

---

(١) المغنی لابن قدامة:١/٤٩٩.

(٢) شرح النووی علی صحيح مسلم:١/٩٧باب جواز الاکل من طعام الغنيمة فی دارالحرب وفتح الباری:٦/٢٣١.

(٣) شرح ابن بطال:٥/٢٣٦وفتح الباری:٦/٢٣٢وعمدة القاری:١٥/١٣ولامع الدراری:٧/٢٨٩.

(٤) لامع الدراری:٧/٢٨٩.

اجتماعي ملکيت وو نوحضورپاك ددې د ضايع کولواو تلف کولوحکم ولې ورکړو شراح حديث ددې مختلف توجيهات کړي دي ① علامه مهلب رحمه الله فرماني چه دا واقعه دارالاسلام يعني ذوالحليفه کښې پيښه شوې د ذوالحليفه تصريح په حديث باب کښې موجود دد چونکه د غنايم د تقسيم نه وړاندې د غنيمت څه څيز استعمالو جائزنه دی په دې وجه حضورپاك د غوښې ضايع کولوحکم ورکړو اومقصد صحابه کرامو ته دا باور کول وو چه دارالسلام کښې دتقسيم نه وړاندې د مال غنيمت يو څيز استعمالول جائزنه دی (۱)

② علامه ابن منير رحمه الله فرمائي د يوقول مطابق چه کله د امام د اجازت نه بغيرعلی وجه التعدی څاروې ذبح کړې شی نوهغه مذبوحه مية جوړشي دا يومذهب دې لکه چه امام بخاری رحمه الله د حديث باب د واقعه نه استدلال کولوسره د دغه مذهب تائيدکړې دې چه د صحابه کرامو د مذکوره طرزعمل نه د هغوی مذبوح څاروې مية جوړشو ښکاره خبره ده چه مية د حديث په رڼاکښې د نجس په حکم کښې دې. په دې وجه حضورپاك د هغې د ضايع کولو حکم ورکړو علامه ابن منير رحمه الله د احتمال په درجه کښې د امام بخاری رحمه الله يورحجان دا هم خودلې دې چه ممکن ده هغوی اکفاء بالقدور عقوبت مال (تعزيرمالي) باندې حمل کړې وی سره د دې چه هغه مال (څاروی) د ذبح په واقعه کښې ککړ مجاهدينو انفرادی ملکيت نه وو خود هغوی طمع هغې سره خامخا تړلې وه په دې وجه د غوښې په ضايع کولو هغوی ته مالی سزاورکړې شوه (۲)

③ امام قرطبی رحمه الله فرمائي په حقيقت کښې رسول الله ﷺ صرف خوروا ړولوحکم ورکړې وو د غوښې ضايع کولو حکم ئی نه وو ورکړې. ممکن ده چه روستودغه غوښه په مال غنيمت کښې شامل کړې شوی وی. ځکه چه پخپله د رسول الله ﷺ نه په يوروايت کښې د مال د ضايع کولوممانعت نقل دې. بيا د جرم اقبال هم يوڅوکسانو په انفرادی توګه کړې وو څه اصحاب خمس او بعض غانمين داسې وو چه په جرم کښې شريك نه وو او په دغه غوښه کښې د هغوی هم حق وو. چونکه په يوروايت کښې په صراحت سره ثابته نه ده چه حضورپاك د غوښې د ضايع کولوحکم فرمائيلې وی په دې وجه د شرعی قواعدو په رڼاکښې د دې حکم پخپله معلوم اومتعين کيږی. د لحوم خمر اهليه باره کښې د حضورپاك إنها نجس فرمائيلوسره د تلف کولو حکم ورکړې وو که چرې د دغه غوښې هم دا حکم وې نو د روايت باب په واقعه کښې به هم داسې حکم ورکړې شوې وو. کوم چه د دې خبرې دليل دې چه په مذکوره واقعه کښې د څاروی غوښه لحوم حمر اهليه په شان نجس ګرځولوسره د ضايع کولو حکم نه وو ورکړې شوې

(۱) شرح ابن بطال: ۲۳۷/۵ وعمدة القاری: ۱۳/۱۵ وإرشاد الساری: ۱۸۳/۵ قال المهلب إنما اكفا لقدور ليعلم أن الغنيمة إنما يستحقونها بعد قسمة لها وذلك أن القصة وقعت فی دارالاسلام لقوله فيها بذی الحليفة.

(۲) فتح الباری: ۱۳۲/۶ والفظه: وأجاب ابن المنير بانه قد قيل ان الذبح إذا كان على طريق التعدی كان المذبوح ميتة. كان البخاری انتصر لهذا المذهب. أو حمل الا كفاء على العقوبة بالمال. وإن ذلك المال لايختص باولئك الذين ذبحوا. لكن لما تعلق به طمعهم. كانت النكاية حاصلة لهم. قال وإذا جوزنا هذا النوع من العقوبة فعقوبة صاحب المال أولى فی ماله.

چنانچه فتح البَاري عمدة القاري او إرشاد الساري کښې دی: وقال القرطبی: المامور باکفائه إنما هو المرق عقوبة للذين تعجلوا، وأما نفس اللحم فلم يتلف، بل يحتمل على أنه جمع ورد إلى المغنم لأن النهي عن إضاعة المال تقدم، واجناية بطبخه لم تقع من الجميع إذ احملتهم أصحاب الخمس ومن الغانمين من لم يباشر ذلك، وإذا لم ينقل أنهم حرقوه أو أتلفوه تعين تاويله على وفق القواعد الشرعية، ولهذا قال في الخبر الأهلية لما أمر بإراقتها: إنها رجس ولم يقل ذلك في هذه القصة، فدل على أن لحومها لم تترك بخلاف تلك (١)

**ترجمة الباب سره مناسبت** - په حديث باب کښې رسول الله ﷺ د کټوودَ اړولوحکم ورکړې. دا مضمون فامر بالقدور الفاظو کښې نقل کړې شوی دی. د دې حکم مقتضی ښکاره دې چه کراهت دې په دې وجه ترجمة الباب سره د دې مناسبت هم ښکاره دې (٢)

## باب-١٨٨ البشارة في الفتوح

<u>البشارة</u>:- په کسره د باء سره د زيری په معنی کښې دې. البشارة، الابشار، والتبشير درې مختلف لغات دی او د دې هم يوه معنی ده. يعنی په زړه کښې خوشحالي پيدا کيدل (٣) علامه ابن الاثير رحمه الله فرمائيلي دی چه البشارة د باء په ضمه سره د زيرې ورکونکی انعام ته وئيلې شي لکه چه مزدور ته د هغه مزدوری ورکولې شي. (٤) د علامه محمد بن ابوبکر رازی رحمه الله په مختار الصحاح کښې دی که چرې لفظ بشارة د څه قيدنه بغير مطلق استعمال وی نو دې نه به هم د خير معنی اخستې شي او چه کله مقيد استعمال وی نو دا لفظ به د شر په معنی کښې وی لکه چه آيت ﴿ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ کښې لفظ بشارت مقيد کيدو سره د شر په معنی کښې استعمال شوې دې. (٥)

<u>الفتوح</u>:- د فتح جمع ده د اسلام د دښمنانو خلاف په جنګ کښې د اهل اسلام کاميابئی او سرلوړئی ته فتح او ظفر وئيلې شي.

**د ترجمة الباب مقصد**:- د دې ترجمة الباب نه امام بخاری رحمه الله دا باور ورکول غواړی چه اهل اسلام په فتح او کامرانئې سره کامياب وی نو د هغه فتح زيرې او بشارت نورو ته ورکولې شي. او د دې مشروعيت د حديث نه ثابت دې.

[حديث ٢٩١١] (٦) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ قَالَ قَالَ لِي جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ-رضی الله عنه-قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ-صلی الله

---

(١) فتح الباری:٦/٢٣٢ وعمدة القاری:١٥/١٣ وإرشاد الساری:٥/١٨٣.

(٢) عمدة القاری:١٥/١٣.

(٣) عمدة القاری:١٥/١٣.

(٤) النهاية فی غريب الحديث والاثر لابن الاثير رحمه الله ١/١٢٠.

(٥) مختار الصحاح لمحمد بن ابوبکر الرازی رحمه الله ص:٨١.

(٦) مر تخريجه الحديث فی کتاب الجهاد باب حرق الدور والنخيل رقم:٣٠٢٠.

عليه وسلم - « أَلاَ تُرِيحُنِي مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ » . وَكَانَ بَيْتًا فِيهِ خَثْعَمُ يُسَمَّى كَعْبَةَ الْيَمَانِيَةِ ، فَانْطَلَقْتُ فِي خَمْسِينَ وَمِائَةٍ مِنْ أَحْمَسَ ، وَكَانُوا أَصْحَابَ خَيْلٍ ، فَأَخْبَرْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - أَنِّي لاَ أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ ، فَضَرَبَ فِي صَدْرِي حَتَّى رَأَيْتُ أَثَرَ أَصَابِعِهِ فِي صَدْرِي فَقَالَ « اللَّهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا » . فَانْطَلَقَ إِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَحَرَّقَهَا ، فَأَرْسَلَ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يُبَشِّرُهُ فَقَالَ رَسُولُ جَرِيرٍ يَا رَسُولَ اللَّهِ ، وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ ، مَا جِئْتُكَ حَتَّى تَرَكْتُهَا كَأَنَّهَا جَمَلٌ أَجْرَبُ ، فَبَارَكَ عَلَى خَيْلِ أَحْمَسَ وَرِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ . قَالَ مُسَدَّدٌ بَيْتٌ فِي خَثْعَمَ . [ر: ٢٨٥٧]

## رجال الحديث

① **محمدبن المثنى** - دا ابوموسى محمد بن المثنى بن عبيد عنزى بصرى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الايمان باب حلاوة الايمان لاندې تيره شوې ده.[١]

② **يحيى** - دامشهورامام حديث يحيى بن سعيدبن فروخ القطان تميمى دې د دوى حالات كتاب الايمان باب من الايمان أن يحب لاخيه مايحب لنفسه لاندې تيرشوى دى.[٢]

③ **اسماعيل** - دااسماعيل بن ابى خالد احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده.[٣]

④ **قيس** :- دا مشهور مخضرم تابعى قيس بن ابى حازم احمسى بجلى كوفى رحمه الله دې كتاب الايمان باب قول النبى صلى الله تعالى عليه وسلم: الدين النصيحة....لاندې د دوى تذكره تيره شوې ده

⑤ **جريربن عبدالله** رضي الله عنه :- دامشهورصحابى حضرت جرير بن عبدالله بجلى كوفى رضي الله عنه دې د دوى تذكره هم په مذكوره كتاب او باب كښې تيره شوې ده.[٤]

**قال لى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم ألا تريحنى من ذى الخلصة، وكان بيتا فيه خثعم يسمى الكعبة اليمانية.**

**الخلصة** :- د خاء لام او صاد فتحه سره.[٥]

**خثعم** -خاء اوعين فتحه سره اود ثاء په سكون سره د يمن د يوې قبيلې نوم دې.[٦]

**قوله** : **كعبة اليمانية** - دا اضافة الموصوف الى الصفة د قبيل نه دې علامه قسطلانى رحمه الله

---

[١] كشف البارى:٢/٢٥.
[٢] كشف البارى:٢/٢.٣.
[٣] كشف البارى:١/٦٧٩.
[٤] كشف البارى:٢/٧٦٤.
[٥] إرشادالسارى:٥/١٨٣.
[٦] شرح الكرمانى:١٣/٦٦و إرشادالسارى:٥/١٨٣.

فرمائی د نحاة بصره په نيز په دې كښې لفظ الجهة محذوف دې او عبارت مقدردې كعبة الجهة اليمانية (۱)

په روايت كښې حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه فرمائي رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل آيا ته ذوالخلصة ورانولوسره ماته سكون نه شې رارسولې؟ راوى وائي چه دا كور خثعم قبيله جوړكړې وو كوم ته چه به نى د يمن كعبه ونيله رسول الله ﷺ د قبيله خثعم د دغه كعبه د ورانولوحكم خكه وركړې وو چه په دې كښې د خلصه نوم يوبت وو دغه خلقو به د دې عبادت كولو دا د خان نه جوړه شوې كعبه دوى د كعبة الله په مقابله كښې جوړه كړې وه. (۲)

**قوله: فانطلقت في خمسين ومائة من أحمس، وكانوا أصحاب خيل:** حضرت جرير رضي الله عنه وائي چه زه د قبيله احمس د يونيم سل سورو كسانوسره روان شوم اوهغه ټول ډير ښكلي سواره وو. فاخبرت النبى صلى الله تعالى عليه وسلم أنى لا أثبت على الخيل، فضرب فى صدرى، حتى رأيت أثر أصابعه فى صدرى: ما رسول الله ﷺ ته خبر وركړو چه زه په اس باندې كلك نه شم كيناستې. حضورپاك په خپل لاس مبارك باندې زه په سينه باندې يوګذار اووهلم تردې چه په خپله سينه باندې ما د رسول الله ﷺ ګوتې مباركې محسوس كړې.

**قوله: فقال: اللهم ثبته واجعله هاديا مهديا:** حضورپاك دعااوفرمائيله اې الله د دۀ ته په اس باندې د كلك كيناستو توفيق وركړه او دې هادى اومهدى جوړ كړې.

**قوله: فانطلق إليها فكسرها وحرقها:** نوجرير بن عبدالله رضي الله عنه لاړو او ذوالخلصه ئې مات كړو او وئې سوزولو.

**قوله: فارسل إلى النبى صلى الله تعالى عليه وسلم يبشره:** يعنى جرير بن عبدالله رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته د دې واقعه د زيرى پيغام راوليګلو. علامه قسطلانى رحمه الله وائي چه د زيرى وركولو د پاره جرير بن عبدالله رضي الله عنه د حضورپاك په خدمت كښې حصين بن ربيعه الاحمسى رضي الله عنه راليګلې وو.

**قوله: فقال رسول الله جرير: يارسول الله، والذى بعثك بالحق، ما جئتك حتى تركتها كأنها جمل أجرب:** د جرير رضي الله عنه پيغام رسونكي اووئيل يارسول الله! په هغه ذات باندې قسم كوم چه ته په حقه سره پيغمبر جوړكړې راليګلې زه ستاسو په خدمت كښې د راتلودپاره هغه وخت روان شوې يم چه كله ما ذوالخلصه د خارښتى اوښ په شان پريخودو يعنى د وينښتو پريوتلو وجه خارښتى اوښ نرې پرې پاتې شى او د خارښ د علاج د پاره په ده باندې د تور رنګ تيل مږى نو په هغه باندې تور تاكى جوړيږى هم دغه شان د ذوالخلصه ديوالونه او چت خه حصه پريوتلې ده او د سوزولو وجه نه په هغې باندې ځائى په ځائى د تور

---

۱) إرشادالسارى: ۱۸۳/۵.

۲) إرشادالسارى: ۱۸۳/۵.

رنګ ښنې لګیدلې دی

أجرب دا روایت امام بخاری کتاب الجهاد باب حرق الدور والنخیل لاندې عن مسدد عن یحیٰ په طریق سره نقل کړې دې او په دغه روایت کښې د أجرب په ځائې أجوف نقل دې [۱]

فبارك على خيل أحمس ورجالها خمس مرات رسول الله ﷺ د احمس او د هغه د سورو او پیاده پنځه ځل د برکت دعا اوکړه قال مسدد: بیت فیه خثعم

**د مذکوره تعلیق مقصد او د دې تخریج** - د دې تعلیق نه امام بخاری رحمه الله دا خودل غواړی چه د ترجمة الباب مذکوره روایت مسدد بن مسرهد هم په دې سند سره عن یحیی القطان په طریق نقل کړې دې په دې کښې د کان بیتا فیه خثعم په ځائې باندې بیت فی خثعم الفاظ نقل دی او هم دغه اصح دی [۲] علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی چه حفاظ محققین هم دا تصویب کړې دی [۳] د مسند احمد بن حنبل رحمه الله د روایت نه هم د دې تائید کیږی په کوم کښې چه د بیت لخثعم الفاظ مروی دی [۴]

**د حدیث نه مستنبط فوائد** - علامه ابن بطال رحمه الله او د هغوی په اتباع کښې علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د روایت باب نه معلومه شوه چه د دښمن خلاف مسلمان فتح بیاموسی د دې په شان دغسې د خوشحالئی واقعه پیښه شی چه د اسلام د سرلوړئی او کامیابئی سبب وی نو نورو ته د هغې زیرې ورکول ښکاره دی د پاره چه هغوی ته هم إعلاء کلمة الله باندې د خوشحالئی د اظهار او د الله تعالی په نعمت او احسان باندې د شکر ښکاره کولو موقع ملاؤشی دا د الله تعالی وعده ده چه کوم قوم په ورکړې شوی نعمتونو باندې کامیابو باندې او فتحو باندې شکر اداکوی الله تعالی هغوی ته نور ډیر وسعت ورکوی د سورت ابراهیم آیت ﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ هم دغه مطلب دې. شرح ابن بطال او عمدة القاري کښې دی فيه البشارة في الفتوح وماكان في معناه من كل مافيه ظهور الاسلام: هله، ليبشر المسلمون باعلاء الدين، ويبتهلوا إلى الله في الشكر على ماوهبهم من إحسانه، فقد أمر الله عباده ووعدهم المزيد فقال: ﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ [۵]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** - په حدیث باب کښې دی فأرسل إلى النبي صلى الله تعالى عليه وسلم يبشره. جریر بن عبدالله رضی الله عنه حصین بن ربیعه رضی الله عنه د حضور پاک په خدمت کښې د زیری ورکولو د پاره اولیګلو چه هغوی کعبه یمانیه تباه کولو سره فتح بیاموندې ده. ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې

---

[۱] عمدة القاري:۱۵/۱۴ وصحيح بخاری کتاب الجهاد باب حرق الدور والخيل رقم:۳۰۲۰.
[۲] عمدة القاري:۱۵/۱۴ وفتح الباري:۶/۲۳۳ وإرشادالساري:۵/۱۸۴.
[۳] وإرشادالساري:۵/۱۸۴.
[۴] مسنداحمدبن حنبل: رحمه الله ۴/۳۶۲ وتغليق التعليق:۳/۴۶۶.
[۵] عمدة القاري:۱۵/۱۴.

# باب - ۱۸۹ ما يعطى البشير

**د ترجمة الباب مقصد اوباب سابق سره مناسبت** په تیرشوی باب کښې د بشارت مشروعیت ثابت کړې شوې دې اوس دا چه عموماً په معاشره کښې بشارت ورکونکي ته زر خوشحالئ سره مغلوب کیږی نود انعام یا صله په توګه څه ورکولې هم شي آیا دا طرز عمل هم مشروع دې او په شریعت کښې ددې اجازت شته؟ امام بخاری رحمه الله هم په دې مناسبت سره باب ما يعطى البشير ترجمه قايم كولوسره خودل غواړی چه زیرې ورکونکي ته عطيه او انعام ورکول هم جائزدی امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب لاندې د حضرت کعب بن مالك رضي الله عنه يومعلق اثرنقل کړې دې هم د دغه اثرنه هغه استدلال کړې دې

**قوله** وَأَعْطَى كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ ثَوْبَيْنِ حِينَ بُشِّرَ بِالتَّوْبَةِ. [ر ۴۱۵۶]

**د تعليق مقصد** - په دې تعليق سره امام بخاری رحمه الله د کعب بن مالك رضي الله عنه يوطويل يعنى اوږد روایت طرف ته اشاره کړې ده په کوم کښې چه هغوی په غزوه تبوك کښې د شرکت نه د محرومتيا اوددې په نتيجه کښې په هغه باندې اود هغه په نورو ملګروباندې نازل کیدونکي رټنه اوبیا د الله تعالى د دربارنه د هغوی معافی اود دردنه ډکې قصې بیان دې کتاب المغازی، باب حديث كعب بن مالك رضي الله عنه لاندې دا روایت تفصیل سره راځي دلته امام بخاری رحمه الله د ترجمة الباب د مناسبت نه دغه اوږد روایت مخصوص مضمون تعليقاً نقل کړې دې

کله چه کعب بن مالك رضي الله عنه ته د توبه د قبليدو زیرې ورکړې شو نوهغه دوه کپړې هدیه کړې د غزوه تبوك په موقع باندې چه کله رسول الله صلى الله عليه وسلم د جهاد اعلان اوکړو نود منافقانو يولوئی ډلې د بهانوسهاره واخسته اوعذرونه ئې اوکړل اوپه جهاد کښې د شرکت کولونه انکار اوکړو په جهاد کښې چه کوم نوردرې مخلص صحابه کرام شريك نه شو په هغوی کښې حضرت کعب بن مالك رضي الله عنه هم شامل وو ددې تفصیل به ان شاء الله په کتاب المغازی کښې په خپله موقع راځي دلته مختصراً عرض دې چه په دې باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم ناراضه شو او صحابه کرامو رضي الله عنهم ته ئې حکم اوفرمائيلوچه ترکومې خپله الله تعالى د دوی په حق کښې څه فیصله اونه کړی ترهغه وخته پورې دوی سره خبرې اترې او تعلق بالكل ختم کړنې د قطع تعلق دا زمانه پنځوس ورځوپورې وه د دې ټولې مودې قصه حضرت کعب بن مالك رضي الله عنه ډیر د درد نه په ډکو الفاظو کښې بیان کړې ده د دغه مودې يوه يوه لمحه د هغه د په ډیره د تکليف او صبرنه ډکه وه دا صورت حال حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه فضاقت عليهم الارض بما رحبت بالكل صحيح مصداق اوخودلو او وئې فرمائيل چه په ما باندې زمکه د خپل وسعت سره تنګه شوې وه بیا د معافئ اعلان اوشو نوچه کوم سړې د معافئ د زيرى ورکولو د پاره راغلې وو نوكعب بن مالك رضي الله عنه د زیرى په خوشحالئ کښې خپلې دوه کپړې هغه ته عطيه کړې

نوفاعطى كعب بن مالك ثوبين حين بشر بالتوبة سره امام بخاری رحمه الله د دغه واقعه طرف ته اشاره کولوسره استدلال کړې دې چه زیرې راوړونکي ته په خوشحالئ کښې څه څيز ورکول پکاردی حضرت علامه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائي چه دا يوعام طريقه ده چه کله يوسړې زیرې راوړی راځي نوهغه ته څه ورکولې شي په دې وجه هم حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه د خپل

بدن دوه کپړې زیری اړونکی ته ورکړې (۱)

**کعب بن مالک رضی الله عنه ته زیرې ورکونکې څوک وو؟** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله رانې ده چه زیرې ورکونکې سلمه بن اکوع رضی الله عنه وو (۲) خو علامه قسطلانی رحمه الله په دوی باندې ردکولوسره فرمائی زیرې ورکونکې حمزه بن عمرو اسلمی رضی الله عنه وو په مغازی کښې مقدمه کښې او دغه شان مصابیح کښې هم د دې نوم تصریح موجود ده (۳) حضرت شیخ الحدیث محمدزکریا رحمه الله رانې هم دغه ده (۴)

**دحدیث نه مستنبط فواند** امام نووی رحمه الله فرمائی چه د دې روایت نه معلومه شوه چه زیرې راوړونکی ته کپړې لباس ورکول مستحب دی که کپړه نه وی نو بل څه څیز هم ورته هدیه کولې شی خوکپړه ډیره بهترده دامام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې دی فیه استحباب اجازة البشیر بخلعة وإلا فبغیرها، الخلعة أحسن وهی المعتادة (۵)

## باب — ۱۹۰ لاهجرة بعد الفتح

**د ترجمة الباب مقصد:** باب مایکره من ذبح الابل والغنم فی المغانم پورې د جهاد سره متعلق اهم اهم احکام په مختلف ابوابوکښې بیانولې شی باب البشارة فی الفتوح نه امام بخاری رحمه الله د جهادسره متعلق فروعی احکام اومناسبات ذکرکړی دی د باب البشارة فی الفتوح ترجمه قایم کولوسره نی اوخودل چه کله دجهاد په نتیجه کښې فتح وی نو د فتح زیرې ورکول هم جائز اومشروع دی د دې په مناسبت سره دویمه ترجمه قایمولوسره اوخودلې شو چه زیرې ورکونکی صحابې د اثر نه تحفه اوهدیه ورکول هم ثابت دی اومستحب دی

دلته امام بخاری رحمه الله ترجمة الباب سره دې طرف ته اشاره کړې ده چه کله دارالحرب فتح شی اودارالاسلام جوړشی نوده غه ځائی نه به د هجرت فرضیت ساقط شی ځکه چه هجرت د دارالحرب نه کیږی نوچه دارالحرب دارالاسلام جوړشی نوده هجرت ضرورت باقی نه پاتې کیږی په دې وجه د دې فرضیت ساقط کیږی لکه چه امام بخاری رحمه الله العبرة لعموم اللفظ لالخصوص المورد اعتبارکړې دې چه لفظ عام نه د کوم مورد چه خاص (د مکې فتح) وو یوعام حکم ئی ثابت کړې دې

[حدیث ۲۹۱۲] (۶) حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -

---

(۱) فیض الباری: ۱۳۷/٤.
(۲) فتح الباری: ۲۳۳/۶ وعمدة القاری: ۱٤/۵.
(۳) إرشادالساری للقسطلانی رحمه الله ۱۸٤/۵.
(٤) الابواب والتراجم للکاندهلوی: ص: ۲۰۵.
(۵) شرح النووی علی صحیح مسلم: ۳۶۲/۲ کتاب التوبة. حدیث توبة کعب بن مالک وصاحبیه.
(۶) مرتخریجه فی کتاب الجنائز باب الذخر والحشیش فی القبر رقم: ۱۳٤۹.

يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ «لاَهِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا». [ر: ١٥١٠]

## رجال الحديث

① **ادم بن ابى اياس** - دا ابوالحسن آدم ابن اياس عبدالرحمن القسطلانى رحمه الله دي. دَ دوی تذکره كتاب الايمان باب من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې تيره شوې ده.[1]

② **شيبان** - دا ابومعاويه شيبان بن عبدالرحمن بصرى رحمه الله دي. كتاب العلم باب كتابة العلم لاندې دَ دوی تذکره تيره شوې ده.[2]

③ **منصور** - دا مشهور محدث ابوعتاب منصوربن المعتمر الاسلمى الكوفى رحمه الله دي. كتاب العلم باب من جعل لاهل العلم أياما معلومة لاندې دَدوی تذکره تيره شوې ده.[3]

④ **مجاهد** - دا شيخ القراء والمفسرين ابوالحجاج مجاهدبن جبر مكى قرشى مخزومى رحمه الله دي. دَدوی تذکره كتاب العلم باب الفهم فى العلم لاندې تيره شوې ده.[4]

⑤ **طاؤس** - دا طاؤس بن كيسان اليمانى الجندى الحميرى رحمه الله دي. دَدوی تذکره كتاب الوضوء باب من لم يرَ الوضوء إلا المخرجين.... لاندې تيره شوې ده.

⑥ **ابن عباس** - دامشهورصحابى حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دي. دَدوی حالات بدءالوحی لاندې تيرشوی دی.[5]

**قال النبى صلى الله تعالى عليه وسلم يوم فتح مكة لاهجرة**

دَحضرت ابن عباس رضي الله عنهما روايت دې چه رسول الله ﷺ دَمکې دَفتح په موقع اوفرمائيل اوس هجرت ختم شو. دَ كتاب الجهاد په شروع کښې باب وجوب النفير لاندې دا روايت تيرشوې دې په دې باندې تفصيلي بحث هم شوې دې.

**دَ دارالحرب نه دهجرت حکم** :- مختصراً دلته دومره پوهه شئى چه اهل اسلام په دارالحرب يا دارالكفر کښې وی په هغوی به هجرت واجب وی که نه؟ دَدې درې صورتونه دی. ① که چرې دَ دارالحرب حالات ناموافق وی هلته دَاهل اسلام دَپاره دَ اسلام په احکامواوشعائرو باندې عمل کول ممکن نه وی اودَهغوی په هجرت کولوباندې قدرت وی نو په داسې صورت کښې به هجرت واجب وی.[6]

---

[1]) كشف البارى: ١/٤٧٨.

[2]) كشف البارى: ٤/٢٦٣.

[3]) كشف البارى: ٣/٢٧٠-٢٧٢.

[4]) كشف البارى: ٣/٣٠٧ — ٣١٠.

[5]) كشف البارى: ١/٣٤٥، ٣٤٧.

[6]) فتح البارى: ٦/٢٣٤ والادب والتراجم ص: ٢٠٥.

② دویم صورت دادې چه د اسلام په احکامو اوشعائروباندې عمل کولو دپاره فضاسازګاروی د هیڅ قسم ویرې بندیز او فتنې څه اندیښنه نه وی نو په دې صورت کښې هجرت بوجود مستحب دې څکه چه د دارالاسلام طرف ته هجرت کولو په نتیجه کښې په دارالاسلام کښې د اول نه د اوسیدونکو مسلمانانو ګنړه قوت او حشمت کښې به اضافه وی دوی به دهغوی امداد او اعانت کوی دغسې به د کافرانو خلاف د جهاددپاره د مسلمانانو خورشوې قوت په مرکزکښې راجمع شی خو په دارالحرب کښې اوسیدو سره ددې امکان شته بلکه په دارالحرب کښې د کافرانود طرف نه دهغوی دپاره دخطرو راپیداکیدلواندیښنه شته په هجرت سره به دغه اندیښنه ختمه شی هغوی به په امن کښې شی بل د منکرات او فواحش مظاهره کتلوسره به خلاصې بیامومی هغوی ته به خوشحالی نصیب شی (١)

③ دریم صورت دادې که چرته مسلمان بیماری یاد بل څه دعذر د وجه نه په هجرت باندې قدرت نه ساتی نو په دارالحرب کښې حصاریدل جائزدی خوکه مشقت او تکلیف برداشت کولوسره دارالاسلام طرف ته هجرت کول اختیار کړی نو په دې اجراو ثواب هم ملاویږی (٢)

علامه طیبی رحمه الله فرمائی: ① یوهجرت د دارالکفرنه د دارالاسلام طرف ته دې په شروع کښې اهل اسلام ته د دارالکفرنه دارالاسلام طرف ته د هجرت حکم ورکړې شو دې دپاره چه د اسلام په احکامو په آزادئی سره عمل کولو موقع په لاس راشی اوداسې د فتنو او مشرکینو د تکلیف رسولو نه محفوظ وی (٣)

②دویم هجرت د مکې نه مدینې طرف ته وو په مدینه کښې د مسلمانانو تعدادکم وو دمشرکانو په مقابله کښې هغوی کمزورې وو په دې وجه اهل اسلام ته حکم ورکړې شو چه هغوی دې د رسول الله ﷺ اعانت تبلیغ دین او شرائع واحکام اسلام کښې تفقه حاصلولودپاره مدینې منورې ته هجرت اوکړو بیاچه کله الله تعالی د فتح مکې په ذریعه دمسلمانانو قوت اوشوکت کښې اضافه اوکړه نوهغه عام اسباب کوم چه په مدینه کښې د قیام کولودپاره وو هغه ختم شو داهل مکه نه یولوئی سبب د ویرې او فتنې وو هغه هم پاتې نه شو دغه وخت د هجرت فرضیت ختم شو (٤)

**د ولکن جهاد ونية مطلب:-** امام نووی رحمه الله فرمائی چه د ولکن جهاد ونیة مطلب دادې چه د فتح مکه نه پس د هجرت ختمیدو د وجه د هجرت په ذریعه د خیرحاصلولوسلسله خو ختمه شوه لیکن دا خیرد جهاد او نیت صالحه په ذریعه اوس هم حاصلولې شی

قال النووي معناه أن تحصيل الخير بسبب الهجرة قد انقطع بفتح مكة لكن حصلوه بالجهاد والنية الصالحة (٥) علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه ددې مطلب دادې د فتح مکه نه پس د

---

١) فتح الباري:٦/ ٢٣٤.

٢) فتح الباري:٦/ ٢٣٤.

٣) شرح الطيبي رحمه الله على مشكاة المصابيح:٦/ ١٩ كتاب الجهاد.

٤) شرح الطيبي رحمه الله على مشكاة المصابيح:٦/ ١٩ كتاب الجهاد.

٥) إرشادالساري:٥/ ٣٣ باب فضل الجهاد والسير.

هجرت حکم منسوخ شو خو د جهاد دپاره یا د نیت خالص په وجه د علم د طلب دپاره یا د دارالکفریا داسې ښار نه چرته چه امر بالمعروف اونهی عن المنکرباندې عمل کول ممکن نه وی یا بیت الله. مسجدنبوی او مسجداقصی د زیارت دپاره وطن پریخودو سره د هجرت حکم ترقیامته پورې باقی دې د دې حکم نه دې منسوخ شوې

**قال الطيبى رحمه الله: فالمعنى أن مفارقة الاوطان الله ورسوله...... انقطعت، لكن المفارقة من الاوطان بسبب نية خالصة لله تعالى، كطلب العلم، والفرار من دارالكفر، أو مما لايقام فيها الامربالمعروف والنهى عن المنكر، وزيارة بيت الله وحرم رسوله والمسجد الاقصىٰ وغيرها، أوبسبب الجهاد فى سبيل الله باقية مدى الدهر.** (١)

په دواړو اقوالوکښې هم یومضمون بیان شوې دې فرق صرف دومره دې چه کومه خبره د علامه نووی رحمه الله په عبارت کښې په اختصارسره راغلې ده هغه د علامه طيبي رحمه الله په عبارت کښې هغه په وضاحت سره بیان کړې ده

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:-** په روایت کښې دی قال رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم يوم فتح مكة لاهجرة ترجمة الباب سره د دې مناسبت واضحه دې

احديث ٢٩١٣] (٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ مُجَاشِعِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ جَاءَ مُجَاشِعٌ بِأَخِيهِ مُجَالِدِ بْنِ مَسْعُودٍ إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ هَذَا مُجَالِدٌ يُبَايِعُكَ عَلَى الْهِجْرَةِ . فَقَالَ « لاَ هِجْرَةَ بَعْدَ فَتْحِ مَكَّةَ ، وَلَكِنْ أُبَايِعُهُ عَلَى الإِسْلاَمِ ». [ر: ٢٨٠٢]

## رجال الحديث

① **ابراهيم بن موسى:-** دا ابواسحاق ابراهيم بن موسى بن يزيد تميمى رازى رحمه الله دې د دوی تذکره کتاب الحيض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجيله لاندې تيره شوې ده

② **يزيدبن زريع:-** دا ابومعاويه يزيد بن زريع العيشى البصرى رحمه الله دې. د دوی تذکره کتاب الوضؤ باب غسل المنى وفركه لاندې تيره شوې ده

③ **خالد:-** داحافظ حديث ابوالمنازل خالد بن مهران الخداء بصرى رحمه الله دې د دوی تذکره کتاب الوضؤ باب التيمن فى الوضؤ والغسل لاندې تيره شوې ده.

④ **ابوعثمان النهدى:-** دا عبدالرحمن بن مل ابن عمر والنهدى رحمه الله دې. د دوی حالات کتاب مواقيت الصلوة باب الصلوة كفارة لاندې تيرشوی دی

---

(١) شرح الطيبى على المشكوة:٧/٢٨٧.

(٢) مرتخريجه فى كتاب الجهاد باب البيعة فى الحرب على أن لايفروا رقم:٢٩٦٢.

⑤ **مجاشع بن مسعود** دا صحابى رسول ﷺ مجاشع بن مسعود بن ثعلبه السلمى رضي الله عنه دي
كتاب الجهاد باب البيعة فى الحرب على أن لايفروا لاندې ددوى حالات تيرشوى دى
په روايت كښې دى چه مجاشع بن مسعود رضي الله عنه دخپل رور مجالدبن مسعود رضي الله عنه سره د
حضورپاك په خدمت كښې حاضر شو عرض ئې اوكړو مجالد تاسو نه په هجرت باندې بيعت
كول غوارى حضورپاك اوفرمائيل د فتح مكه نه پس هجرت باقى پاتې نه شو البته په اسلام
باندې دې بيعت كوم

امام بخارى رحمه الله دا روايت شاته كتاب الجهاد باب البيعة فى الحرب لاندې عن عاصم عن أبى عثمان په
طريق باندې نقل كړې دې هلته د روايت الفاظ د حديث باب نه مختلف دى أتيت النبى صلى
الله تعالى عليه وسلم أنا وأخى فقلت: بايعنا على الهجرة فقال: مضت الهجرة لاهلها فقلت: علام تبايعنا؟
قال: على الاسلام والجهاد.[1] په دې روايت كښې اسلام سره بيعت كښې د جهاد تصريح هم
موجود دد. دترجمة الباب په روايت د لفظ جهاد تصريح نشته په دې وجه به ونيلې شى چه
حضورپاك دغوى نه په اسلام او جهاد دواړو باندې بيعت واخستلو
**ترجمة الباب سره مناسبت:-** په روايت باب كښې لاهجرة بعد الفتح امام بخارى رحمه الله هم دادې
ترجمة الباب مدعى ثابته كړې ده.

احديث ٢٩١٤[2] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرٌو وَابْنُ جُرَيْجٍ سَمِعْتُ
عَطَاءً يَقُولُ ذَهَبْتُ مَعَ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ إِلَى عَائِشَةَ -رضى الله عنها- وَهِيَ مُجَاوِرَةٌ بِثَبِيرٍ فَقَالَتْ
لَنَا انْقَطَعَتِ الْهِجْرَةُ مُنْذُ فَتَحَ اللَّهُ عَلَى نَبِيِّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَكَّةَ.[٣٦٨٧، ٤٠٥٨]

## رجال الحديث

① **على بن عبدالله:-** داعلى بن عبدالله بن جعفر بن نجيح سعدى بصرى رحمه الله دې د ابن
المدينى په نوم باندې مشهوردې. ددوى حالات كتاب العلم باب الفهم فى العلم لاندې مخكې
تيرشوى دى.[3]
② **سفيان:-** دامشهور محدث سفيان بن عيينه بن ابى عمران هلالى الكوفى دې ددوى
حالات كتاب العلم باب قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبانا لاندې تيرشوى دى.[4]

---

[1] ) صحيح بخارى:١/٤١٥ - ٤١٦ رقم:٢٩٦٢ - ٢٩٦٣.
[2] ) وعندالبخارى أيضًا فى صحيحه:٢/٦١٥ فى المغازى، باب مقام النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بمكة ومن الفتح و:١/٥٥١ فى فضائل أصحاب النبى صلى الله تعالى عليه وسلم باب هجرة النبى صلى الله تعالى عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة رقم:٢٩٠٠ وعندمسلم فى صحيحه:٢/١٣١فى كتاب الامارة باب المبايعة بعدفتح مكة لى الاسلام ولجهاد والخير، وبيان معنى لاهجرة بعدالفتح رقم:١٨٦٤.
[3] ) كشف البارى:٣/٢٥٦.
[4] ) كشف البارى:٣/٨٦ - ٩٠.

③عمرو- دامشهرو محدث عمرو بن دینار الجرحی رحمه الله دي. دَدوی تذکره هم کتاب العلم باب العلم والعظة بالليل کښې تیره شوې ده

④ابن جریج - دا عبدالمالك بن عبدالعزيز بن جریج اموی رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجله لاندې تیره شوې ده.

⑤ عطاء - دا ابومحمد عطاء بن ابی رباح قرشی رحمه الله دې. دَدوی تذکره هم کتاب العلم باب عظة الامام النساء وتعليمهن لاندې تیره شوې ده. (۱)

**سمعت عطاء يقول ذهبت مع عبيد بن عمير إلى عائشة رضى الله عنها وهى مجاورة بثبير، فقالت لنا انقطعت الهجرة منذ فتح الله على نبيه مكة**

دا روایت عمرو بن دینار او ابن جریج دواړو دَعطاء بن ابی رباح نه اوریدلې دې. دواړو عطاء رحمه الله داسې وینا کولو سره اوریدلې چه زه عبیدبن عمیرسره حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها ته لاړم هغه (مزدلفه کښې) ثبیرنومی غرباندې ولاړه وه حضرت عائشه رضی الله عنها په دې موقع باندې اوفرمائیل دکله نه چه الله تعالی دخپل رسول ﷺ دَ پاره مکه فتح کړې ده نو دهغه وخت نه هجرت ختم شوې دې.

دلته په روایت کښې اختصار دې امام بخاری رحمه الله دغه روایت کتاب مناقب الانصار، باب هجرة النبی صلى الله تعالى عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة لاندې عن اوزاعی عن عطاء بن أبی رباح په طریق سره نقل کړې دې. دَدې تفصیل دادې:

**قالت: لاهجرة اليوم كان المؤمنون يفر أحدهم بدينه إلى الله تعالى وإلى رسوله مخالفة أن يفتن عليه، وأما اليوم فقد أظهر الله الاسلام، واليوم يعبد الله حيث يشاء، ولكن جهاد ونية. (۲)**

**قوله**: كان المؤمنون يفر أحدهم بدينه:- حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه په دې جمله کښې حضرت عائشه رضی الله عنها دَ هجرت دَ مشروعیت طرف ته اشاره کړې ده چه دَ هجرت اصل سبب ویره او فتنه ده. لکه چه دَهجرت حکم علت سره مشروط دې اګرچه هغه خائی دارالکفر ولې نه وی (۳) چنانچه امام ماوردی رحمه الله فرمائی که یومسلمان ته په دارالکفر کښې دَاسلام په احکاموباندې دَ عمل کولو آزادی حاصله وی نودغه خائی په دَ ده دَپاره دَ دارالاسلام په حکم کښې وی چرته چه دَهجرت په مقابله کښې دَهغه دپاره حصاریدل زیات بهتردی. ممکن ده چه په دارالکفر کښې دَده دَ قیام په نتیجه کښې بل څوك هم دَ اسلام په دائره کښې داخل شی (۴)

---

۱) کشف الباری: ۴/۳۷.

۲) صحیح بخاری: ۱/۵۵۱ رقم: ۳۹۰۰.

۳) فتح الباری فی کتاب مناقب الانصار.

۴) فتح الباری ایضاً.

**قوله**: وأما اليوم فقد أظهر الله الاسلام:- مطلب دادې چه د فتح مکه په ذریعه الله تعالی اسلام ته غلبه ورکړه مکه دارالاسلام جوړ شو اوټول قبائل په دارالاسلام کښې داخل شو. په دې وجه د واجب هجرت دروازه بنده شوه او مستحب هجرت باقی پاتې شو. (١)

## باب- ١٩١ إذا اضطر الرجل إلى النظر في شعور أهل الذمة والمؤمنات إذا عصين الله، وتجريدهن.

د ترجمة الباب په عبارت کښې مقدرات دی اول د دغه مقدراتو وضاحت کوو روستوبه د ترجمة الباب مقصد بیانوو

إذا اضطر:- د طاء په ضمه إذا جواب محذوف دې، عبارت مقدر دې: يجوز للضرورة. (٢)

والمؤمنات:- په ماقبل باندې عطف کیدو د وجې مجرور دې اوعبارت مقدر دې: وإذا اضطر الرجل إلى النظر في المؤمنات إذا عصين الله. (٣)

وتجريدهن:- داهم په ماقبل باندې عطف کیدو د وجې مجرور دې اوعبارت مقدر دې: وإذا اضطر الرجل إلى تجريدهن من الثياب. (٤)

**د ترجمة الباب مقصد**:- د دې ترجمة الباب لاندې امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه د ضرورت اومصلحت په وخت د ذمی یا مسلمانې ښځې د ویښتو تلاشی اخستل اوهغه بې لباس کول جائز دی په استدلال کښې امام بخاری رحمه الله د حاطب بن ابی بلتعه رضي الله عنه د خفیه خط اوړونکې ښځې واقعه نقل کړې ده.

**د ضرورت په وخت ښځه بې لباس کولووجه**:- علامه عینی رحمه الله فرمائی چه ښځه د ضرورت په وخت بې لباس کول ځکه جائزدی چه د معصیت په ارتکاب سره د هغې حرمت پامال کیږی په دې وجه حضرت علی رضي الله عنه او حضرت زبیر رضي الله عنه هم د حاطب بن ابی بلتعه رضي الله عنه خفیه خط اوړونکې ښځه بې لباس کولو اراده کړې وه. په دې باندې اجماع ده چه زنا مسلمانې اوکافرې دواړو سره حرام ده تردې چه هغې ته کتل هم منع دی. لیکن الضرورات تبیح المحظورات د اصول لاندې کله چه په دوی کښې کومه یوه هم د معصیت ارتکاب کوی نو د هغوی حرمت به باقی پاتې نه شی نو د ضرورت اوحاجت لاندې به هغې ته کتل جائز شی

علامه عینی رحمه الله د دې نه پس لیکی چه زما د معلوماتو مطابق د مذکوره ترجمة الباب تشریح چاهم نه ده کړې. په عمدة القاري کښې دی: قوله: تجريدهن أي: وإذا اضطر أيضا إلى تجريدهن من الثياب، لان المعصية تبيح حرمتها، ألا ترى أن عليًا والزبير – رضي الله تعالى عنهما – أراد كشف للمرأة في

---

(١) عمدة القاري: ١٧/ ٥٠ كتاب مناقب الانصار، باب هجرة النبى صلى الله تعالى عليه وسلم وأصحابه إلى المدينة

(٢) إرشاد الساري: ٥/ ١٨٥ وعمدة القاري: ١٥/ ١٥

(٣) إرشاد الساري: ٥/ ١٨٥ وعمدة القاري: ١٥/ ١٥

(٤) إرشاد الساري: ٥/ ١٨٥ وعمدة القاري: ١٥/ ١٥

قضية كتاب حاطب، وقد أجمعوا أن المؤمنات والكافرات فى تحريم الزنا بهن سواء، وكذلك تحريم النظر اليهن، ولكن الضرورات تبيح المحظورات، ولم أحدا تعرض اشراح هذه الترجمة. (١)

[حديث ٢٩١٥] (٢) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حَوْشَبٍ الطَّائِفِيُّ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَكَانَ عُثْمَانِيًّا فَقَالَ لِابْنِ عَطِيَّةَ وَكَانَ عَلَوِيًّا إِنِّي لَأَعْلَمُ مَا الَّذِي جَرَّأَ صَاحِبَكَ عَلَى الدِّمَاءِ سَمِعْتُهُ يَقُولُ بَعَثَنِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَالزُّبَيْرَ، فَقَالَ «ائْتُوا رَوْضَةَ كَذَا، وَتَجِدُونَ بِهَا امْرَأَةً أَعْطَاهَا حَاطِبٌ كِتَابًا». فَأَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَقُلْنَا الْكِتَابَ. قَالَتْ لَمْ يُعْطِنِي. فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ أَوْ لَأُجَرِّدَنَّكِ. فَأَخْرَجَتْ مِنْ حُجْزَتِهَا، فَأَرْسَلَ إِلَى حَاطِبٍ فَقَالَ لَا تَعْجَلْ، وَاللَّهِ مَا كَفَرْتُ وَلَا ازْدَدْتُ لِلْإِسْلَامِ إِلَّا حُبًّا، وَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِكَ إِلَّا وَلَهُ بِمَكَّةَ مَنْ يَدْفَعُ اللَّهُ بِهِ عَنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ، وَلَمْ يَكُنْ لِي أَحَدٌ، فَأَحْبَبْتُ أَنْ أَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا. فَصَدَّقَهُ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -. قَالَ عُمَرُ دَعْنِي أَضْرِبْ عُنُقَهُ، فَإِنَّهُ قَدْ نَافَقَ. فَقَالَ «مَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ اللَّهَ اطَّلَعَ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ، فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ». فَهَذَا الَّذِي جَرَّأَهُ. [ر ٢٨٤٥]

## رجال الحديث

① **محمدبن عبدالله**:- دَ دوى تذكره كتاب الاذان، باب احتساب الآثار لاندې تيره شوې ده.

② **هشيم**:- دا ابومعاويه هشيم بن بشرالواسطى رحمه الله دې. دَ دوى تذكره كتاب التيمم باب بلاترجمة لاندې تيره شوې ده

③ **حصين**:- دا ابوهذيل حصين بن عبدالرحمن السلمى الكوفى رحمه الله دې دَ دوى تذكره كتاب مواقيت الصلوة باب الاذان بعد ذهاب الوقت لاندې تيره شوې ده.

④ **سعدبن عبيده**:- دا ابوحمزه سعدبن عبيده السلمى الكوفى رحمه الله دې كتاب الوضؤ باب فضل من بات على الوضؤ لاندې دَ دوى تذكره تيره شوې ده

⑤ **ابوعبدالرحمن**:- داعبدالله بن حبيب بن ربيعه (بالتصغير) ابوعبدالرحمن السلمى الكوفى رحمه الله دې دَ دوى تذكره كتاب الغسل باب غسل المذى والوضؤ لاندې تيره شوې ده

**وكان عثمانيا** مطلب دادې لكه څنګه چه دَاهل سنت والجماعة مسلك دې ابوعبدالرحمن په حضرت على رضي الله عنه باندې دَ حضرت عثمان رضي الله عنه دَ فضيلت قائل وو (٣) په شروع كښې دَ

---

(١) عمدة القارى: ١٥/١٥ — ١٥.

(٢) مرتخريجه فى كتاب الجهاد: ٤٢٢/١ باب الجاسوس والتجسس رقم: ٣٠٠٧.

(٣) إرشاد السارى: ١٨٥/٥ وعمدة القارى: ١٦/١٥

حضرت علي رضي الله عنه حامي وو او په جنګ صفين کښې د هغوی د حاميانو په جماعت کښې شامل وو اود حضرت علي رضي الله عنه په حمايت کښې د صفين په جنګ کښې شرکت هم کړې وو خو روستو عثماني جوړ شو اودحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه د فضيلت قائل شو (١) په زهد اوتقوی کښې بې مثال وو او ثقه راوی وو دوفات نه پس دهغوی جنازه ابو جحيفه سره نيزدې تيره شوه نو وئې فرمائيل مستريح ومستراح منه (٢)

**قوله** فقال لابن عطية وكان علويا - وكان علويا د قول مقوله په مينځ کښې جمله معترضه ده مطلب دادې چه ابوعبدالرحمن حبان بن عطيه السلمي ته اوونيل وړاندې راروان دې چه څه ئې ورته اوونيل، د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په مقابله کښې دحضرت علي رضي الله عنه د فضيلت قائل وو دکوفې داهل سنت هم دغه مسلك وو (٣)

**په حافظ يوسف مزی رحمه الله باندې د حافظ ابن حجر رحمه الله رد** - تهذيب الکمال کښې حافظ يوسف مزی رحمه الله دحديث په سند کښې د راويانو حالات اودهغوی متعلق د جرح اوتعديل اقوال نقل کوی د سندنه قطع نظر. په نفس حديث کښې واردشوی رجال دحالات نه. خپل وضع کړې اصولو په رڼاکښې ئې قطعاً تعارض نه دې کړې د شروع نه تر آخره پورې حافظ مزی هم په دې اصولو باندې قايم دې دلته په روايت باب کښې لکه چه ظاهره ده دابن عطيه رحمه الله ذکرنفس روايت کښې خوشته ليکن دحديث راوی نه دې يعنی دحديث په سند کښې دهغه نوم نشته حافظ مزی رحمه الله د خپل اصول خلاف تهذيب الکمال کښې دهغه نوم هم په اسماء رجال کښې شامل کړې دې

حافظ ابن حجر رحمه الله په حافظ مزی رحمه الله باندې ردکولوسره ليکي: إن ذكر هذا الرجل في رجال البخاري عجيب ليست له رواية، فلو كان المزي يذكر كل من له ذكر ولا رواية له ويلتزم ذلك لاستدرکنا عليه طائفة كبيرة منهم لم يذكرهم، ولكن موضع الكتاب للرواة فقط. ثم أن حبان بن عطية هذا لم يعرف من حاله بشئ، ولا عرفت فيه إلى الآن جرحا ولا تعديلا، والله اعلم. (٤)

د حافظ صاحب د وينا مقصد دادې چه د صحيح بخاری په رجال کښې د ابن عطيه تذکره عجيبه غونډې خبره معلوميږي ځکه چه دهغه نه هيڅ روايت نقل نه دې په حديث کښې صرف چه د يوسړی ذکر وی اودهغه نه څه روايت نقل نه وی که چرې حافظ مزی رحمه الله دهر داسې سړی د ذکر التزام کوی نو مونږ هغه ته د دا قسم خلقو باندې مشتمل د يو لوئی جماعت فهرست پيش کولې شو د کومو ذکر چه هغه نه دې کړې. حالانکه دهغوی تهذيب الکمال صرف د راويانود پاره خاص دې بيا دا چه ابن عطيه يو مجهول الحال سړې دې تراوسه پورې پخپله ماته دهغه د جرح او تعديل (قول) معلوم نه شو

---

(١) تهذيب التهذيب لابن حجر رحمه الله: ٥/ ١٨٤.

(٢) الطبقات الكبرى لابن سعد: ٦/ ١٧٥.

(٣) عمدة القاری: ١٥/ ١٦.

(٤) تهذيب الكمال للحافظ ابن حجر رحمه الله ٢/ ١٧٢ _ ١٧٣ رقم الترجمة: ٣١٣.

خلاصه دا چه تهذيب الكمال د سند د راويانو دپاره خاص دي دخپلو اصولو خلاف ورزى كولوسره حافظ مزى رحمه الله له د ابن عطيه ذكرنه وو كول پكار ځكه چه دهغه نوم د سند په راويانوكښې نشته نفس روايت كښې وارد دې بيا دې مستورالحال هم دې دائمه جرح او تعديل نه دهغوى باره كښې هيڅ قول نقل نه دې په حافظ مزى رحمه الله باندې هم دغه اعتراض علامه علاء الدين مغلطائى حنفى هم كړې دې (١)

**قوله** إني لاعلم ما الذي جرأصاحبك على الدماء- داد قال مقوله ده په مينځ كښې وكان علويا جمله معترضه وه. ابوعبدالرحمن ابن عطيه ته اووئيل چه ماته معلومه ده چه په څه وجه ستا صاحب يعنى حضرت على رضي الله عنه د وينې تويولو حوصله او جرات اوشو.

جرأ- د راء تشديدسره ددې معنى ده جرات وركړو بهادر ئې جوړ كړو (٢)

**يواشكال اودهغې جواب**:- علامه كرمانى رحمه الله اشكال كړې دې چه د حضرت على رضي الله عنه د جلالت شان په رڼرا كښې دهغه طرف ته د قتل او وينو تويولو نسبت څنګه صحيح كيدې شى؟ (٣)

علامه كرمانى رحمه الله ددې جواب وركړې دې چه د دې جملې نه د ابوعبدالرحمن مطلب داوو چه حضرت على رضي الله عنه ته د جنتى كيدو يقين وو (حضرت على د عشره مبشره نه دې) ځكه هغه ته معلومه وه كه چرته په (جنګ صفين كښې د وينو تويولو) په نتيجه كښې زما نه اجتهادى خطا اوشوه نو د قيامت په ورځ به ضرور اوبخښلې شم. (٤)

ليكن علامه ابن بطال رحمه الله او علامه عينى رحمه الله فرمائى چه دا د عبدالرحمن خپل خيال دې حضرت على رضي الله عنه د علم اوفضل په ډير اوچت مقام او مرتبه باندې فائز وو او د هغوى نه قطعاً داسې توقع نه شي كيدې چه هغه بغيرد شرعى وجوب څوك قتل كړى سره ددې چه هغه ته په جنګ بدر كښې د شركت په وجه د جنت زيرې هم وركړې شوې وو. (٥)

مطلب دادې چه حضرت على رضي الله عنه د حق دفاع كولوسره مخالفينوسره جنګ كړې وو. په دې وجه سره نه چه هغه ته د جنت زيرې وركړې شوې وو بلكه هغه د خپل اجتهاد په وجه دا جنګ ضرورى ګڼرلې وو نودا وينا كول صحيح نه ده چه هغه صرف د جنت د زيرې د ملاويدلو وجې نه قتل وقتال كړې وو

هم په دې خبره باندې علامه داؤدى رحمه الله فرمائى : **بئس ما قال أبوعبدالرحمن.** (٦) ابوعبدالرحمن ناخوښه او خرابه خبره كړې ده دغه شان علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى: **وهذه العبارة فيها سؤ أدب** (٧) يعنى د ابوعبدالرحمن مذكوره جمله سوء ادب او ګستاخئى باندې مشتمل ده.

---

(١) إكمال تهذيب الكمال للعلامة علاء الدين المغلطائى: ٣/٣٤٥.

(٢) عمدة القارى: ١٥/١٧.

(٣) شرح الكرمانى: ١٣/٦٩ وعمدة القارى: ١٥/١٧.

(٤) شرح الكرمانى: ١٣/٦٩ وعمدة القارى: ١٥/١٧.

(٥) شرح الكرمانى: ١٣/٦٩ وعمدة القارى: ١٥/١٧.

(٦) عمدة القارى: ١٥/١٧.

(٧) إرشاد السارى: ١٥/١٨٥.

وسمعته يقول بعثني النبي صلى الله تعالى عليه وسلم والزبير، فقال: ائتوا روضة كذا، وتجدون بها امرءة أعطاها حاطب كتابا

ابوعبدالرحمن وائي حضرت علي رضي الله عنه ما داسې وينا كولوسره واوريدو چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ما او زبير رضي الله عنه ته حكم راكړو تاسو دواړه روضه خاخ ته روان شئ په روضه خاخ كښې به تاسو ته يوه ښځه ملاؤشي كومې ته چه حاطب ابن ابي بلتعه، خط وركړې دې په سمعته كښې "ه" ضمير حضرت علي رضي الله عنه طرف ته راګرځي. (١)

روضه كذا- كتاب الجهاد باب الجاسوس لاندې هم دا روايت نقل دې په هغې كښې تصريح ده روضة خاخ. (٢) په روايت باب كښې د روضه د نوم تصريح نشته

امرأة- د دغه ښځې نوم ساره وو. (٣)

فقلنا الكتاب- مونږ (هغه ښځې ته اووئيل) خط راكړه الكتاب لفظ د مقدر وجې نه منصوب دې عبارت تقدير دې فقلناهات الكتاب. (٤)

قالت لم يعطني- هغې اووئيل حاطب ماته هيڅ خط نه دې راكړې.

قوله: فقلنا لتخرجن أولا جردنك- مونږ اووئيل چه ته به په هرحال كښې هغه خط راؤباسې ګنې مونږ به تا بربنډه كړو. دلته د لتخرجن مفعول الكتاب محذوف دې او أو حرف عطف دې كوم چه مانعة الخلو دپاره دې مطلب دادې چه خط راؤباسه راكړه كه خط نه راكوې نو مونږ به تا بربنډه كړو.

دلته علامه عيني رحمه الله او دهغه په اتباع كښې علامه قسطلاني رحمه الله چه څه وئيلي دي دهغې حاصل دادې چه دلته أو حرف استثناء د إلا په معنى كښې دې او لاجردنك دغې مقدره په وجه منصوب دې او عبارت تقدير دې: لتخرجنك الكتاب إلا أن تجردي لكه څنګه چه لاقتلنك أو تسلم، إلا أن تسلم په معنى كښې دې. (٥)

كه چرې أو د إلى په معنى كښې واخستې شي نو بيابه هم دا دې نيزدې معنى وي لكه چه لالزمنك أو تعطيني حقي د إلى أن تعطني حقي په معنى كښې دې په دې پوره كلام كښې تامل دې او د تكلف نه خالي نه دې. هم دغه وجه ده چه د إرشاد الساري مصحح په دې باندې دخپل تامل اظهار كړې دې بالكل نيغ مفهوم هم هغه دې كوم چه مونږ په شروع كښې ليكلې دې. والله اعلم.

---

(١) عمدة القاري: ١٧/١٥.

(٢) صحيح بخاري: ٤٢١/١ رقم: ٣٠٠٧ وشرح الكرماني: ١٣/٦٨ وعمدة القاري: ١٧/١٥ وإرشاد الساري: ١٨٥/٥

(٣) شرح الكرماني: ٦٨/١٣ وعمدة القاري: ١٧/١٥ وإرشاد الساري: ١٨٥/٥.

(٤) شرح الكرماني: ٦٨/١٣ وعمدة القاري: ١٧/١٥ وإرشاد الساري: ١٨٥/٥.

(٥) عمدة القاري: ١٧/١٥ وإرشاد الساري: ١٨٥/٥.

**قوله** فأخرجت من حجزتها - نوهغې دَ خپلې نيفه نه خط راؤويستلو

په رواياتوكښې تعارض او دهغې حل - كتاب الجهاد باب الجاسوس لاندې روايت كښې دى فاخرجته من عقاصها هغه خط هغې دَخپلو ويښتو دَ كومځنى نه راؤويستلو او په حديث باب كښې دى نيفه نه ئې رااويستلو په دواړو رواياتوكښې تعارض دې دَحديث شارحينو حضراتو په دې دواړو رواياتوكښې مختلف تطبيقونه كړى دى

① يوتطبيق ئې دا وركړې دې چه اول دَ ويښتو په چوټيه كښې پټ كړې وو بيائى دَهغه ځائى نه اوويستلو نيفه كښې ئې پټ كړو يا داسې چه اول ئې په نيفه كښې پټ كړې وو او دَهغه ځائى نه ئې راؤويستلو دَ ويښتو په چوټيه كښې ئې پټ كړو (١)

② دَحديث بعض شارحينوتطبيق وركړې دې چه ممكن ده هغې سره دَ دوو مختلف جماعتونو په نوم خطونه وى يوه خط ئې عقاص (چوټيه) كښې پټ كړې وى او بل ئې حجز (نيفه) كښې (٢)

③ بعض حضراتو دا احتمال بيان كړې دې ممكن دى چه په روايت كښې حجزه نه مطلق (غوټه) مراد وى معقد ازار مردانه وى يا هغه معقد دَ ويښتو وى يا دَ ازار وى (٣)

④ ممكن دى دَ حجزه نه مراد رسئى وى دَدې دليل دادې چه اوښ په يوه خاص طريقه باندې په كومه رسئى باندې تړلې شى هغې ته هم حجز وائى (٤)

⑤ بعض شراح حديث په دواړو كښې تطبيق وركولوسره فرمائى چه خط دَ ويښتو په چوټيه كښې وو خود دغه ښځې ويښته دَ ډير اوږدوالى دَ وجې نه نيفه پورې رسيدلې وو په دې وجه هغې دَ ويښتو غوټه خط سره په نيفه كښې دننه كړه. دغه شان دَ دواړو ځايونونه راوتل ثابت شوى دَ ويښتود چوټئې نه هم اودَ نيفه نه هم. دَټولونه ښكلې او بهترين تطبيق هم دغه دى (٥)

فارسل إلى حاطب فقال لا تعجل والله ماكفرت ولا ازددت للاسلام إلا حبا ولم يكن أحد بين أصحابك إلا وله بمكة من يدفع الله به عن أهله وماله........

دَ حديث باب دَ مذكوره حصې متعلق بحث كتاب الجهاد باب الجاسوس لاندې تيرشوې دې

**ترجمة الباب سره مناسبت:** - دَ ترجمة الباب دوه اجزاء دى او دواړو اجزاؤ سره دَ حديث باب مناسبت دې. په حديث باب كښې دى **فاخرجت من حجزها** دَدې مناسبت دَ ترجمة الباب ړومبى جز **إذا اضطر الرجل إلى النظر فى شعور أهل الذمة والمؤمنات** سره دې ښكاره خبره ده چه په تلاشئى كښې دَخط دَ راويستلودپاره ويښته كتل هم ضرورى وو. دَ صحابه كرامو ويرولو او دهمكى وركولو په نتيجه كښې ښځې دَ ويښتود چوټئې نه هغه خط راؤويستلو كوم ته چه په روايت

---

(١) شرح الكرماني:١٣/٦٩ وعمدة القاري:١٥/١٧ وفتح الباري: ٦/٢٣٥وإرشاد الساري:٥/١٨٥.

(٢) شرح الكرماني:١٣/٦٩ وعمدة القاري:١٥/٧١ وفتح الباري: ٦/٢٣٥.

(٣) شرح الكرماني:١٣/٦٩ وعمدة القاري:١٥/٧١ وفتح الباري: ٦/٢٣٥.

(٤) شرح الكرماني:١٣/٦٩ وعمدة القاري:١٥/٧١ وفتح الباري: ٦/٢٣٥.

(٥) شرح الكرماني:١٣/٦٩ وعمدة القاري:١٥/٧١ وفتح الباري: ٦/٢٣٥.

باب کښې **فاخرجت من حجزها** په الفاظو سره تعبیرکړې شوی دې [1] هم دغه شان په روایت کښې دی لاجردنك ددې مناسبت د ترجمة الباب آخری جز وتجریدهن سره دې مناسبت بالکل ښکاره دې

**په مناسبت باندې اشکال اودهغې جوابات** دلته اشکال کیدې شی چه د ترجمة الباب دومې جز في شعور اهل الذمة والمؤمنات کښې د ذمی اومسلمانې ښخې تصریح ده حالانکه د ترجمة الباب لاندې نقل شوی روایت کښې تصریح نشته چه د حاطب بن ابی بلتعه خط رسونکې ښخه ذمیه وه که مسلمانه؟ په دې وجه ترجمة الباب سره په ظاهره د حدیث باب مناسبت نه شی جوړیدې

علامه ابن منیر رحمه الله ددې اشکال دا جواب ورکړې دې د روایت باب نه سره ددې چه داخبره معلومه نه ده چه دغه ښځه ذمیه وه که مسلمانه لیکن بې ضرورته نامحرم ښځې ته کتل حرام دی په دې حکم کښې مسلمانه او ذمیه دواړه برابرې دی په دې وجه د حدیث باب نه ترجمة الباب ثابتیږی [2]

**د علامه ابن التین رحمه الله اشکال اود هغې جواب** - ابن التین رحمه الله اشکال کړې دې که چرې هغه ښخه مشرکه وه نوبیاخو به ترجمة الباب سره د حدیث باب مناسبت نه کیږی

ددې اشکال داجواب ورکړې شوې دې چه معاهد د اهل ذمه په حکم کښې وی اوهغه ښخه هم معاهده وه او د اهل ذمه په حکم کښې وه [3]

## باب- ۱۹۲ استقبال الغزاة

**د ترجمة الباب مقصد** - ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله داخودل غواړی چه کله مجاهدین د جهاد نه واپس راشی نو دهغوی استقبال کول مستحب دی په حدیث کښې ددې اصل موجود دې لیکن ښکاره خبره ده چه دا څه قاعده او ضابطه نه ده په دې وجه که استقبال اونه کړې شی نو بیاهم څه بده خبره نه ده.

احدیث ۲۹۱۶ [4] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي الأَسْوَدِ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ وَحُمَيْدُ بْنُ الأَسْوَدِ عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ لاِبْنِ جَعْفَرٍ رضی الله عنهم أَتَذْكُرُ إِذْ تَلَقَّيْنَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنَا وَأَنْتَ وَابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ، فَحَمَلَنَا وَتَرَكَكَ.

## رجال الحديث

① **عبدالله بن ابی الاسود**: د کشمیهنی روایت کښې ابن أبي الاسود ضبط شوې دې او د عبدالله

---

[1] ) إرشاد الساری: ۱۸۵/۵.

[2] ) عمدة القاری: ۱۶/۱۵ وفتح الباری: ۲۳۵/۶.

[3] ) عمدة القاری: ۱۶/۱۵ وفتح الباری: ۲۳۵/۶.

[4] ) والحدیث عندمسلم فی صحیحه: ۲۸۳/۲ فی الفضائل باب من فضائل عبدالله بن جعفر وعند أبی داؤد فی سننه: ۳۵٤/۱ فی الجهاد فی رکوب ثلاثة علی دابة.

تصريح نشته (١) دا ابوبكر عبدالله بن محمد بن حميد بن ابى الاسود دي ددوى حالات كتاب الاذان باب بلاترجمة لاندې تيرشوى دى ذوړاندې روايت په سند كښې حميدبن الاسود الفاظ دى دادهغه نيكه دې (٢)

(٢) **يزيدبن زريع** . دا ابومعاويه يزيد بن زريع التميمى العيشى البصرى رحمه الله دې د دوى تذكره كتاب الغسل باب ال جنب يخرج ويمشى في الاسواق وغيره لاندې تيره شوې ده

(٣) **حميد بن الاسود**. دا ابوالاسود حميد بن الاشقر البصرى الكرابيسى رحمه الله دې مونږ په شروع كښې خودلى دى چه دا د عبدالله بن ابى الاسود نيكه دې هغوى د مختلف شيوخ حديث نه روايات كړى دى په هغوى كښې ښكاره او ممتاز شيوخو نامې دادى. اسماعيل بن اميه، حبيب بن الشهيد، عبدالله بن عون، عبدالعزيز بن صهيب، مالك بن انس، محمدبن عمرو بن علقمه، مصعب بن ثابت بن عبدالله بن زبير، هشام بن عروه بن زبير (٣)

اود هغه نه روايت اخستونكوكښې اسماعيل بن مسلمه قعنبى، ابوبشربن خلف، سعيد بن عامر صنعبى، عبدالله بن مبارك، ابوبكرعبدالله بن محمد بن ابى الاسود، عبدالرحمن بن مهدى، عبيدالله بن عمرالقواريرى، على ابن المدينى، مسددبن مسرهد شامل دى ثقه او معتمد راوى دې.

علامه عقيلى رحمه الله الضعفار الكبيركښې دهغه تذكره په ضعيف راويانوكښې كړې ده اودډې تضعيف بنياد هغه په دې جرح باندې اودرولې دې كان عفان يحمل عليه، لانه روى حديث منكراً (٤) ليكن حقيقت دادې چه دعلامه عقيلى رحمه الله دا جرح معتبرنه ده نور ائمه جرح اوتعديل د حميدبن الاسود توثيق كړې دې مثلاً ابن حبان رحمه الله د هغه تذكره ثقات كښې كړې ده (٥) قواريرى فرمائيل كان صدوقاً (٦) ابوحاتم رحمه الله دهغوى باره كښې وئيلى ثقه (٧) دامام دارقطنى رحمه الله قول دهغوى باره كښې حاكم رحمه الله نقل كړې دې ليس به باس (٨)

خلاصه دا چه حميد بن الاسود رحمه الله ثقه او معتبرراوى دې كه چرته ټول ائمه جرح اوتعديل د يو راوى په ثقاهت باندې متفق وى نودهغه په مخالفت كښې نقل شوې صرف د يوقول اعتبار نه شى كيدې. په وجه دحميدبن الاسود باره كښې دعلامه عقيلى رحمه الله جرح معتبرنه ده.

---

(١) عمدة القارى: ١٨/١٥.

(٢) تهذيب الكمال فى أسماء الرجال: ٣٥٠/٧.

(٣) تهذيب الكمال: ٣٥٠/٧ وتهذيب التهذيب: ٣٥/٣.

(٤) الضعفاء الكبير للعقيلى: ٢٦٨/١ وتهذيب التهذيب: ٣٦/٣.

(٥) تهذيب التهذيب: ٣٥/٣.

(٦) الجرح والتعديل لابن أبى خاتم: ٢٣٦/٣ رقم الترجمة: ٩٦٠. تهذيب الكمال للمزى: ٣٥١/٦ وتهذيب التهذيب: ٣٦/٣.

(٧) ايضاً.

(٨) تهذيب التهذيب: ٣٧/٣.

**نوټ** د روایت په سند کښې رومبې راوی عبدالله بن ابی الاسود رحمه الله د امام بخاری رحمه الله شیخ دې حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عینی رحمه الله فرمانی امام بخاری رحمه الله په خپل صحیح کښې دوه ځ یه د هغه روایات نقل کړی دی (۱)

عبدالله بن ابی الاسود رحمه الله مذکوره روایت د یزید بن زریع اوحمید بن ابی اسود دواړو نه اوریدلې دې په دې وجه د روایت په سند کښې هغه حمید بن اسود سره یزیدبن زریع هم متصلاً ذکرکړې دې وړاندې د سورة بقره په تفسیر کښې هم د روایت په سندکښې دواړه راویان مقرون دی (۲) البته امام مسلم رحمه الله په خپل صحیح کښې د هغه نه چه کوم روایت نقل کړې دې هغه غیرمقرون دې مطلب دادې چه هلته حمید بن اسود سره د یزید نوم ساقط دی

④ **حبیب بن الشهید** دا ابومحمد حبیب بن الشهیدازدی رحمه الله دې تابعی دې ابوطفیل رضی الله عنه سره د دوی ملاقات ثابت دې هغه د حسن بن ثابت، ابن ابی ملیکه، عمرو بن دینار، ابن المنکدر، میمون بن مهران او ابواسحاق السبیعی نه د حدیث روایت کړې دې البته زبیر بن عوام، سعید بن مسیب اوعبیدبن عمیر نه مرسلاً حدیث روایت کړې دی (۳)

دَهغوی نه روایت کونکوکښې شعبه، سفیان ثوری، حمادبن سلمی، یزیدبن زریع، ابن علیه، بشربن مفضل دَهغه خونی ابراهیم بن حبیب، ابواسامه، روح بن عباده، ابن ابی عدی، قریش بن انس او محمدبن عبدالله انصاری رحمهم الله شامل دی (۴)

ائمه جرح اوتعدیل په روایت حدیث کښې دَهغه په ثقاهت باندې متفق دی امام احمد بن حنبل رحمه الله دَهغوی باره کښې فرمانیلی دی **کان ثبتاً ثقة** (۵) یحیی بن معین ابوحاتم او امام نسائی رحمهم الله فرمانی **ثقه** (۶) دهغوی باره کښې د امام احمدبن حنبل رحمه الله نه دهغه خونی عبدالله داقول هم نقل کړې دې **ثقة مامون، وهوأثبت من حمید الطویل** (۷) ابواسامه دهغوی باره کښې وائی **کان من رفعاء الناس، وانما روی ماة حدیث** (۸) یعنی ډیر د اوچتې پائې د خلقونه وو صرف سل احادیث ئې روایت کړی دی

⑤ **ابن ابی ملیکه** - دا ابوبکر عبدالله بن عبیدالله بن ابی ملیکه رحمه الله دې دَدوی حالات کتاب الایمان لاندې تیرشوی دی (۹)

(۱) فتح الباری:۶/۲۳۵وعمدة القاری:۱۵/۱۸.
(۲) تهذیب الکمال: ۷/۳۵۲.
(۳) تهذیب الکمال:۵/۳۷۹ وتهذیب التهذیب:۲/۱۵۸.
(۴) تهذیب الکمال:۵/۳۷۹ وتهذیب التهذیب:۲/۱۵۸.
(۵) تهذیب الکمال:۵/۳۸۰ وتهذیب التهذیب:۲/۱۸۶.
(۶) تهذیب الکمال:۵/۳۸۰ وتهذیب التهذیب:۲/۱۸۶.
(۷) تهذیب الکمال:۵/۳۸۰ وتهذیب التهذیب:۲/۱۸۶.
(۸) تهذیب الکمال:۵/۳۸۰ وتهذیب التهذیب:۲/۱۸۶.
(۹) کشف الباری: ۲/۵٤۸.

قال ابن الزبیر لابن جعفر رضی الله عنهم: أتذکر إذا تلقینا رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم أنا وأنت وابن عباس

ابن زبیر رضی الله عنه ابن جعفر رضی الله عنه ته اووئیل آیا تاته یاد دی؟ چه زه ته او ابن عباس دریواړه د رسول الله ﷺ د استقبال دپاره لاړو هغه وخت رسول الله ﷺ د جهاد نه واپس کیدلو د ابن زبیر رضی الله عنه نه عبدالله بن زبیر او د ابن جعفر نه عبدالله بن جعفر رضی الله عنه مراد دي

**قوله قال: نعم، فحملنا وترکك.** عبدالله بن جعفر رضی الله عنه اووئیل او یاد دی رسول الله ﷺ زه او ابن عباس رضی الله عنهما په سورلئی کینولو او ته ئی پرې خودې

**د صحیح بخاری او صحیح مسلم د روایاتو د تعارض حل.** په مذکوره روایت کښې فحملنا وترکك قائل څوك دی؟ د ترجمة الباب په روایت کښې تصریح شته چه قائل عبدالله بن جعفر رضی الله عنه دې لیکن دا روایت هم په دې سند سره امام مسلم رحمه الله په صحیح مسلم کښې نقل کړې دې د صحیح بخاری د روایت برعکس دې قال عبدالله بن جعفر لابن الزبیر [1] ښکاره خبره ده چه د دې روایت په رڼا کښې به د فحملنا وترکك قائل عبدالله بن زبیر رضی الله عنه وی او د دې مفهوم د صحیح بخاری د روایت باب نه به بالکل برعکس وی چه حضور پاك عبدالله بن زبیر او ابن عباس رضی الله عنهما خپل ځان سره سواره کړی وی او عبدالله بن جعفر رضی الله عنه ئی پرې خودې وی دلته د صحیح بخاری اوصحیح مسلم په روایت کښې تعارض دې لیکن حقیقت دادې چه د بخاری مذکوره روایت باب راجح دې د نورو روایاتو نه د دې تائید کیږی

حافظ ابن حجر رحمه الله د صحیح بخاری روایت ته ترجیح ورکولو سره فرمائیلی دی چه د دې تائید د صحیح بخاری د کتاب الحج والا د روایت نه هم کیږی په کوم کښې چه دی: لما قدم رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم مکة استقبلته أغیلمة من بنی عبدالمطلب فحمل واحدًا من بین یدیه وآخر خلفه [2] ښکاره خبره ده چه هم عبدالله بن جعفر د عبدالمطلب د اولاد نه وو هم د دې نه د صحیح بخاری د روایت باب تائید کیږی چه هم عبدالله بن جعفر رضی الله عنه ئی په سورلئی باندې سور کړې وو او فحملنا وترکك هم د هغه قول دې. [3]

د غه شان مسند احمد بن حنبل او سنن نسائی کښې خالد بن سارة عن عبدالله بن جعفر په طریق سره چه کوم روایت نقل دې په هغې کښې تصریح ده: أن النبی صلی الله تعالی علیه وسلم حمله خلفه وحمل قثم بن عباس بین یدیه [4] یعنی رسول الله ﷺ عبدالله بن جعفر رضی الله عنه خپل ځان پسې شاته کینولو او قثم بن عباس ئی مخې ته کینولو. د علامه ابن التین رحمه الله رائې د دې خلاف ده هغه فرمائی:

---

[1] ) صحیح مسلم: ٢٨٣/٢ فضائل الصحابة، باب من فضائل عبدالله بن جعفر رضی الله عنهما.

[2] ) صحیح البخاری: ٢٤٢/١ کتاب العمرة باب استقبال الحاج القادمین والثلاثة علی الدابة رقم: ١٧٩٨.

[3] ) فتح الباری: ٢٣٦/٦.

[4] ) سنن النسائی: ٣٢/٢ کتاب المناسک باب استقبال الحاج، ومسند أحمد بن حنبل ص: ٢١٥ رقم: ٢٢٥٩ مسند عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وفتح الباری: ٢٣٦/٦.

ان في الحديث نصا بانه صلى الله تعالى عليه وسلم حمل ابن عباس وابن الزبير، ولم يحمل ابن جعفر (۱) يعنی نص حديث نه ثابت دی چه رسول الله ﷺ ابن عباس او ابن زبير رضی الله عنهما په سورلئی کینول او ابن جعفر رضی الله عنه ئی پريښی خودو

حافظ ابن حجر رحمه الله دا قول ردکولوسره وائي ماته نه دی معلومه چه ابن التين د کوم دليل په بنياد باندې دا رائې اختيارکړې ده؟ علامه داؤدی رحمه الله فحملنا وتركك د عبدالله بن جعفر رضی الله عنه كلام گرځولي دې هم دغه رائې د قاضی عياض رحمه الله هم ده د صحيح بخاری روايت باب هغه راجح گرځولوسره فرمائيلي دی والذی وقع في البخاری هو الصواب (۲) قاضی عياض رحمه الله فرمائی چه ابن ابی شيبه او ابن ابی خيثمه روايت هم د صحيح بخاری د روايت تائيد کوی (۳) الابواب والتراجم کښې حضرت شيخ الهند رحمه الله د صنيع نه معلوميږی چه د هغوی په نيز هم د صحيح بخاری روايت باب راجح دې (۴)

**د صحيح مسلم په روايت کښې د راوی وهم:-** د صحيح بخای او صحيح مسلم په مذکوره روايت کښې د تضاد سبب په اصل کښې د صحيح مسلم په روايت کښې د راوی وهم دې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائيلي دی چه دا روايت هم د صحيح مسلم په الفاظو کښې مسند احمد بن حنبل کښې نقل دې په هغې کښې **قال نعم** نه پس **فحملنا وتركك** نه وړاندې يو بل **قال** اضافه هم ذکر ده او عبارت هم داسې دې **قال نعم، قال فحملنا وتركك** (۵)

په دې صورت کښې ظاهره ده چه که د**قال فحملنا وتركك** قائل عبدالله بن جعفر رضی الله عنه وی کوم سره چه د صحيحين دواړه رواياتوکښې هيڅ تضاد باقی پاتې نه شو مطلب دادې که د مسند احمد مذکوره روايت په رڼا کښې د صحيح مسلم په روايت کښې **قال نعم** نه پس لفظ **قال** ساقط کيدلوته که د راوی وهم اووئيلې شی نوبيا د صحيح مسلم او صحيح بخاری په روايت کښې هيڅ تضاد نشته. خووړاندې امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی **وحدثنا به مرة أخرى، فقال فيه: قال نعم فحملنا** (۶) يعنی راوی هم دغه روايت په دويم ځل روايت کړې دې نو په دې کښې ئې د **قال** لفظ ذکرنه کړو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی که چرې د لفظ **قال** اعتبار اوکړې شی نود صحيح مسلم روايت د صحيح بخاری موافق کيږی گنی د ساقط کيدو په صورت کښې به په دواړو رواياتونوکښې تضاد وی (۷)

---

(۱) فتح الباری:۶/۲۳۶.
(۲) فتح الباری:۶/۲۳۶.
(۳) فتح الباری:۶/۲۳۶.
(۴) الابواب والتراجم: ص: ۲۰۴.
(۵) فتح الباری: ۶/۲۳۶.
(۶) فتح الباری: ۶/۲۳۶.
(۷) فتح الباری:۶/۲۳۶.

**د قاضي عياض رحمه الله رائې** قاضي عياض رحمه الله فرمائي که څرنګ د صحيح مسلم په روايت کښې تاويل کولو سره د **فحملنا** کښې د ضمير مفعول مصداق عبدالله بن جعفر جوړ کړې شي نو عبدالله بن زبير به متروک شي دغه شان د صحيح مسلم روايت به د صحيح بخاري د روايت موافق شي والله اعلم

فتح الباري کښې دي **وتاويل رواية مسلم أن يجعل الضمير في "حملنا" لابن جعفر فيكون المتروك ابن الزبير**

**د حديث باب نه مستنبط فوائد** - شارحينو حضراتو د مذکوره روايت باب نه يوڅو آداب او فوائد مستنبط کړي دي ① حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي د حديث باب نه معلومه شوه چه يتيمانو سره به شفقت سره مخ کيدل پکار دي د جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه د وفات نه پس د دغه خوني عبدالله بن جعفر يتيم پاتې شوې وو رسول الله صلى الله عليه وسلم شفقت اوکړو او دغه ئې خان سره په سورلنې کينولو

② حافظ صاحب فرمائي د حديث نه دويمه خبره دا معلومه شوه چه عبدالله بن جعفر او عبدالله بن زبير رضي الله عنهم دواړه هم عمر وو ([2])

③ روايت کښې دي عبدالله بن جعفر، عبدالله بن زبير او ابن عباس رضي الله عنهم د جهاد نه د واپسئ په موقع د رسول الله صلى الله عليه وسلم د استقبال د پاره تلي وو علامه ابن بطال رحمه الله فرمائي د دې نه معلومه شوه چه د جهاد يا حج نه واپس راتلونکي د مسافرو د استقبال د پاره وتل او په دغه موقع باندې د خوشحالئ اظهار کول هم نيکي ده ([3])

د مختلفو رواياتونه ثابت دي چه د سفر نه د واپسئ په موقع د حضور پاک ډير دروند استقبال اوکړې شو زمونږ د تهذيبي قدرونو نه يو دا هم دي چه د سفر نه څوک خپلوان راځي نو مونږ دهغه د استقبال د پاره خو د خوشحالئ اظهار کوو که په دې موقع باندې اتباع سنت او د ثواب نيت اوکړې شي نو شرعًا د دې عمل په خوښيدو او جائز کيدو کښې څه شک کيدې شي؟ خو د نن صبا وخت کښې يو خپلوان خاص کر د حاجيانو د استقبال په موقع باندې بې ځايه اسراف او تبذير رسوماتو او بدعاتو چه کومه مظاهره په کتلو کښې راځي نو ښکاره خبره ده چه دا هرڅه د شهرت ريا او خان خودلو د پاره کيږي په دې وجه د استقبال دا نوعيت د ګناه کبيره په ضمن کښې راځي او شرعًا دا جائز ګرځولو کښې هيڅ ګنجائش نشته

**ترجمة الباب سره د حديث باب مناسبت** حديث باب کښې حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنهما فرمائي اذ تلقينا رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم يعني کله چه مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم استقبال اوکړو ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې

---

[1]) فتح الباري: ۶/ ۲۳۶.
[2]) فتح الباري: ۶/ ۲۳۶.
[3]) شرح ابن بطال: ۵/ ۲۴۰ وعمدة القاري: ۱۸/ ۱۵ – ۱۹.

[حدیث ۲۹۱۷] ۱ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ قَالَ السَّائِبُ بْنُ يَزِيدَ - رضی الله عنه ذَهَبْنَا نَتَلَقَّى رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - مَعَ الصِّبْيَانِ إِلَى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ. [۲۱۶۴]

## رجال الحدیث

① **مالک بن اسماعیل** دا ابوغسان مالک بن اسماعیل النهدی الکوفی رحمه الله دي د دوی حالات کتاب الوضؤ باب الماء یغسل به شعرالانسان لاندې تیرشوی دی

②**ابن عیینه** دا مشهور امام حدیث سفیان بن عیینه رحمه الله دي د دوی حالات کتاب العلم باب قول امحدث حدثنا او اخبرنا لاندې تیرشوی دی [۲].

③**الزهری** دامشهور محدث ابن شهاب الزهری رحمه الله دي د دوی تذکره بدء الوحی دریم حدیث لاندې تیره شوې ده [۳].

④**السائب بن یزید** رضي الله عنه - داصحابی رسول ﷺ سائب بن یزید بن سعید الکندی رحمه الله دي د دوی حالات کتاب العلم لاندې تیرشوی دی

**قوله** ذهبنا نتلقی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم مع الصبیان الی ثنیة الوداع سائب بن یزید رضي الله عنه وانی مونږ کم عمر هلکانوسره ثنیه الوداع پورې د رسول الله ﷺ استقبال اوکړو هغه وخت رسول الله ﷺ د غزوه تبوک نه واپس راتلو د سنن ترمذی په یوروایت کښې تصریح ده لما قدم رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم من تبوك..... [۴] په استقبال کښې چه کوم کم عمره هلکان راغلي وو سائب بن یزید رضي الله عنه هم په هغوی کښې شامل وو [۵].

**ترجمة الباب سره مناسبت** - په حدیث باب کښې دی ذهبنا نتلقی رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم ترجمة الباب سره د دې مناسبت ښکاره دې

## باب-۱۹۳ مایقول إذارجع من الغزو

**د ترجمة الباب مقصد او باب سابق سره مناسبت** - په تیرشوی باب کښې خودلې شوی دی چه د جهادنه وطن طرف ته واپس کیدو په موقع باندې د مجاهدینو استقبال کول جائز دی پاتې

---

[۱] وعندالبخاری أیضافی صحیحه فی کتاب المغازی باب کتاب النبی صلی الله تعالی علیه إلی کسری وقیصر رقم:۴۴۲۶ ۴۴۲۷ ۴۴۲۷ وعند أبی داؤد فی سننه فی کتاب الجهاد باب فی التلقی رقم: ۲۷۷۹ وعند الترمذی فی جامعه فی الجهاد باب ماجاء فی تلقی الغائب إذا قدم.

[۲] کشف الباری:۳/۸۶ – ۹۰.

[۳] کشف الباری:۱/۳۲۶.

[۴] سنن الترمذی:۱/۳۰۲ کتاب الجهاد باب فی تلقی الغائب إذا قدم.

[۵] عمدة القاری:۱۵/۱۹ وإرشاد الساری:۶/۵۵۶.

شوه دا خبره چه پخپله به دَمجاهدینو وظیفه عمل څه وی؟
په دې مناسبت سره امام بخاری رحمه الله مذکوره باب قایمولوسره دا باور کوی چه کله دَ اسلام مجاهدین دَ جهاد دَ سفرنه په صحت اوعافیت سره وطن ته واپس شی نوهغوی له دَالله تعالیٰ شکر اداکول اودَتوبې او استغفار اهتمام کول پکاردی ځکه چه په احادیثوکښې دَدې اصل موجود دې

[حدیث ۲۹۱۸] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ -رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا قَفَلَ كَبَّرَ ثَلاَثًا قَالَ «آيِبُونَ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَائِبُونَ عَابِدُونَ حَامِدُونَ لِرَبِّنَا سَاجِدُونَ ، صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ ، وَنَصَرَ عَبْدَهُ ، وَهَزَمَ الأَحْزَابَ وَحْدَهُ». [ر ۱۷۰۳]

## رجال الحدیث

① **موسیٰ بن اسماعیل**:- دا ابوسلمه موسیٰ بن اسماعیل التبوذکی البصری رحمه الله دې دَدوی حالات بدء الوحی لاندې تیرشوی دی. (۲)

② **جویریه**:- دا جویریه بن اسماء بن عبید الضبعی البصری رحمه الله دې. دَ دوی تذکره کتاب الوضوء باب الجنب یتوضا ثم ینام لاندې تیره شوې ده.

③ **نافع**:- دا نافع مولی عبدالله بن عمر القرشی العدوی رحمه الله دې. کتاب العلم باب ذکر العلم والفتیافی المسجد لاندې دَدوی تذکره تیره شوې ده. (۳)

④ **عبدالله**:-دا مشهور صحابی عبدالله بن عمر رضی الله عنهما دې. دَدوی تذکره کتاب الایمان لاندې تیره شوې ده. (۴)

أن النبی صلی الله تعالیٰ علیه وسلم کان اذاقفل کبرثلاثا، قال: آیبون ان شاء الله تائبون، عابدون حامدون، لربنا ساجدون، صدق الله وعده، ونصر عبده، وهزم الاحزاب وحده.

په روایت کښې دی چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ جهاد نه واپس شو نودرې ځل الله اکبر وئیلوسره ئې اوفرمائیل: مونږ واپس کیدونکی یو ان شاء الله توبه کونکی یو. حمد کونکې یو. خپل رب ته سجده کونکې یو. الله تعالیٰ دَ (فتح اونصرت) خپله وعده رښتونې کړه اودَخپل بنده امداد ئې اوفرمائیلو اوهم هغه ذات (دکافرانو) لښکرته ماتې ورکړه

هم دغه روایت امام بخاری رحمه الله عن عبدالله عن عبدالعزیزبن أبی سلمة عن صالح بن کیسان عن سالم بن

(۱) مرتخریجه فی کتاب العمرة باب مایقول إذا رجع من الحج أو العمرة أو الغزو رقم:۱۷۹۷.
(۲) کشف الباری:۱/۴۳۳.
(۳) کشف الباری: ٤/٦٥١.
(٤) کشف الباری: ۱/٦٧٩.

عبدالله عن عبدالله بن يوسف عن مالك عن نافع عن عبدالله بن عمر ﷺ په طريق باندې کتاب الجهاد باب التکبير إذا علا شرفا لاندې هم نقل کړې دې

قفل: د باب نصر او ضرب نه، قفل قفولا په معنی کښې دې د سفر نه واپس کيدل واپس کيدل. هم د دې نه قافله ده په معنی د کاروان د سفرنه واپس کيدونکوخلقو جماعت [1] البته په روايت کښې قفل رجوع عن الغزوة په معنی کښې دې [2]

**قوله** آيبون إن شاء الله تائبون....... حديث باب کښې تائبون حامدون او ساجدون مختلف صفات دی سوال دا دې چه الفاظ مشيت (ان شاء الله) کوم يو صفت سره متعلق دې

دا يو د معلومه خبره ده چه ان شاء الله د راتلونکی وخت د کارونو د پاره ونيلې شی په دې وجه علامه ابن بطال رحمه الله فرمائی چه رسول الله ﷺ د جهاد د سفرنه واپس شوی وو په دې وجه صفت إياب د الله تعالی رضا سره متعلق کول صحيح نه دی. تو به حمد او عبادت په مستقبل کښې راتلونکی امور وو. لهذا په روايت کښې الفاظ مشيت آيبون په روستو راتلونکو صفاتو سره متعلق وی. علامه ابن بطال رحمه الله او فرمائيل چه انبياء عليهم السلام هر وخت د الله تعالی په عبادت حمد او ثنا کښې مشغول اوسيدل خو دهغوی په نيز آدب او احترام دومره خيال ساتلې شو چه هر وخت په عبادت حمد او ثنا کښې مشغول کيدونه باوجود د خپلو اعمالو نسبت د الله تعالی د قدرت کامله طرف ته کولو او د هغه په انعاماتو باندې شکر اداکولو سره د خپلې فقيرئی او محتاجئی اظهار کولو. مختصردا چه علامه ابن بطال په نيز ان شاء الله تعلق آيبون سره نه دې بلکه د روستو صفات تائبون حامدون او ساجدون سره دې

**په علامه ابن ابطال رحمه الله باندې دعلامه ابن منير رحمه الله رد:** - ليکن د علامه ابن بطال رحمه الله رائې علامه ابن منير رحمه الله رد کړې ده علامه قسطلانی رحمه الله تحرير فرمائيلې دې. تعقبه ابن المنير فقال: الظاهر أن المشيئة إنما علق عليها الاياب خاصه، وقوله: قد وقع فلا تعلق وهم، لان الاياب المقصود إنما هو الرجوع الموصل إلى نفس الوطن، وهو مستقبل بعد، فلا يصح أن يعلق النبی صلی الله تعالی عليه وسلم بقية الافعال على المشيئة، لانه قد حمد الله تعالى ناجزا، وعبده دائما، والعمل الناجز لاينبغی تعليقه على المشيئة، ولو صلی إنسا الظهر فقال: صليت إن شاء الله لكان غلطاً منه، لان الله قد أمره أن يصلی فصلی فلا تشكيك فی معلوم [3]

مطلب دا دې چه په ظاهره هم إياب مشيت سره متعلق کړې شوې دې د ابن بطال رحمه الله دا خبره بې

[1] ) النهاية فی غريب الحديث لابن الاثير: ٤/٩٢ – ٩٣ وعمدة القاری:١٥/٢٠.
[2] ) عمدة القاری:١٥/٢٠.
[3] ) إرشاد الساری: ٥/١٨٦ – ١٨٧.

اصل دہ چه اياب وقوع شوې ده نو دمشيت سره به ددې تعلق نه وی خکه چه د اياب مقصد وطن طرف ته مراجعت دې او هغه لااوس پوره شوې نه دې نومشيت به هم ددې متعلق کولې شی د اياب روستوباقی افعال مشيت سره متعلق نه دی په دې وجه حضورپاک هروخت او هميشه دالله تعالی حمداوثناء او عبادت کوې لکه چه دا مقررشوی اعمال دی او مقرر شوی اعمال مشيت سره متعلق کول مناسب نه دی که بوسړی د ماسپښين مونځ کوی او وائی چه ان شاء الله مونځ اوکړو نودا به صحيح نه وی خکه چه دده نه الله تعالی د مونځ کولو حکم کړې دې نوهغه مونځ اداکړو دا يومعلوم اومقررشوې حکم دې لهذا په يوه معلومه معامله کښې د شك کولوضرورت نشته

خلاصه دا چه علامه ابن بطال رحمه الله په نيز اياب مشيت سره متعلق نه دې بلکه بقيه اعمال سره متعلق دي ددې دپاره چه دهغوی په نيز اياب واقع شوې وو لهذا اياب مشيت سره متعلق کول دهغه په نيز صحيح نه دي خودا ابن منير رحمه الله رائي د دده خلاف ده دهغه په نيز اياب متعلق بالمشيئة دي خکه چه ددې وقوع مستقبل سره تړلي وه او باقی افعال مقرر شوی او ثابت وو نوهغه مشيت سره متعلق کيدې نه شی والله اعلم

روايت سره متعلق نور تفصيل شاته کتاب الجهاد باب التكبير اذا علا شرفا لاندې تيرشوې دی

احديث ٢٩٢٠/٢٩١٩ (١) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ-رضى الله عنه-قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مَقْفَلَهُ مِنْ عُسْفَانَ، وَرَسُولُ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- عَلَى رَاحِلَتِهِ، وَقَدْ أَرْدَفَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ، فَعَثَرَتْ نَاقَتُهُ فَصُرِعَا جَمِيعًا، فَاقْتَحَمَ أَبُو طَلْحَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ. قَالَ «عَلَيْكَ الْمَرْأَةَ». فَقَلَبَ ثَوْبًا عَلَى وَجْهِهِ وَأَتَاهَا، فَأَلْقَاهَا عَلَيْهَا وَأَصْلَحَ لَهُمَا مَرْكَبَهُمَا فَرَكِبَا، وَاكْتَنَفْنَا رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، فَلَمَّا أَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ «آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ». فَلَمْ يَزَلْ يَقُولُ ذَلِكَ حَتَّى دَخَلَ الْمَدِينَةَ.

## رجال الحديث

① **ابومعمر** دا ابومعمر عبدالله بن ابی الحجاج المنقری المقعد رحمه الله دي ددوی تذکره کتاب العلم باب قول النبي صلى الله تعالى عليه وسلم لاندې تيره شوې ده (٢)

② **عبدالوارث** دا عبدالوارث بن سعيد الذکوان التميمی رحمه الله دي ددوی تذکره هم په مذکوره باب او کتاب کښې تيره شوې ده (٣)

---

(١) قدمر تخريجه فی کتاب الصلوة باب مايذکر فی الفخذ رقم: ٣٧١.

(٢) کشف الباری: ٣٠٨/٣.

(٣) کشف الباری: ٣٠٩/٣.

③ **یحیی بن ابی اسحاق** دایحیی بن ابی اسحاق الحضرمی البصری النحوی رحمه الله دي د ذوی تذکره کتاب تقصیر الصلوة باب ماجاء فی التقصیر لاندې تیره شوې ده

④ **انس بن مالک** رضی الله عنه دَ انس بن مالک رضی الله عنه تذکره کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده (۱)

کنا مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم مقفله من عسفان، ورسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم علی راحلته
حضرت انس بن مالک رضی الله عنه وائی چه مونږ رسول الله ﷺ سره وو کله چه هغوی دَ عسفان نه واپس کیدلو او حضور پاک په خپله اوښه باندې سور وو

**قوله** وقد أردف صفیة بنت حیی - رسول الله ﷺ حضرت صفیه بنت حیي هم خان پسې شاته په اوښه کینولې وه

**په روایت کښې دَ راوی وهم** - په روایت باب کښې دی رسول الله ﷺ دَ عسفان نه واپس راتللو حافظ دمیاطی رحمه الله فرمائی چه دا دَ راوی وهم دې صحیح دادی چه حضور پاک دَ غزوه خیبر نه واپس راتللو ځکه چه حضرت صفیه رضی الله عنها حضور پاک ته په جنګ خیبر کښې ملاؤ شوې وه دَ خیبر واقعه په کال ۷ هجری کښې پیښه شوې وه. واپس راتللو وخت کښې حضرت صفیه رضی الله عنها حضور پاک سره شاته په سورلئي ناسته وه. او غزوه بنی عسفان په کال ۶ هجری کښې واقع شوې وه هغه وخت حضرت صفیه رضی الله عنها دَ کوم خائی نه راغله؟(۲) په ظاهره داسې معلومیږی چه غزوه عسفان او غزوه خیبر یو بل پسې راغلې په دې وجه راوی ته شک پیدا شوې او دَ حضور پاک دَ دې مراجعت نسبت ئې غزوه عسفان طرف ته کړې (۳)

**قوله** فعثرت ناقته فصرعا جمیعًا - خوداوښې خپه اوخوئیدله حضور پاک او ام المؤمنین حضرت صفیه رضی الله عنها دواړه راپریوتل

**قوله** فاقتحم أبوطلحة فقال: یارسول الله جعلنی الله فداءك - دې کتلو سره ابوطلحه رضی الله عنه زر دَ اوښ نه ورټوپ کړو او وئې وئیل زما خان دې په تاسو قربان وی

اقتحم - تحم فی الامر إذا رمی نفسه فیه من غیر رؤیة (۴) دَدې معنی ده خپل خان په یو کار کښې ورننویستل بې سوچ او بې پوهې اچول أقحم الفرس راکبه اس سور پرمخې راګذار کړو

**قوله** قال: ((علیك المرءة)) فقلب ثوبا علی وجهه وأتاها فألقاه علیها، وأصلح لهما مرکبهما فرکبا - رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل دَ ښځې خبر واخلئ ابوطلحه په خپل مخ

---

(۱) کشف الباری: ۲/۴، ۵.
(۲) فتح الباری: ۲۳۷/۶ عمدة القاری: ۲۰/۱۵ إرشاد الساری: ۵۵۸/۵.
(۳) فتح الباری: ۲۳۷/۶ فیض الباری: ۳۵۹/۶ الابواب والتراجم ص: ۲۰۵.
(۴) شرح الکرمانی: ۷۰/۳ وعمدة القاری: ۲۰/۱۵.

باندي کپړا واچوله ، دې دپاره چه په حضرت صفیه ﷺ باندې نظر پرینوځی، او حضرت صفیه ﷺ له راغلو نوهم هغه کپړا ئي په هغې ور واچوله بیائی د دواړو د پاره سورلی صحیح کړه حضورپاك او حضرت صفیه ﷺ دواړه سواره شو

**قوله** فاکتنفنا رسول الله صلی الله علیه وسلم. مونږ ټول دحضورپاك نه چاپیره راجمع شو

فاکتنفنا. أی أحطنا (١) مونږ راګیرکړل مونږ ترې راتاؤشو کنف (دنصر نه) احاطه کول او د ګیرولو په معنی کښې دې (٢)

**قوله** فلما أشرفنا علی المدینة، قال: ((آیبون تائبون، عابدون، لربنا حامدون))، فلم یزل یقول ذلك، حتی دخل المدینة. کله چه مدینې ته بالکل نیزدې شو نو حضورپاك اوفرمائیل آیبون تائبون عابدون لربنا حامدون حضورپا یو شان دغه کلمات فرمائیلوسره په مدینه کښې داخل شو. علامه انور شاه کشمیری ﷫ فرمائی چه د باب په روښی روایت کښې تصریح نشته چه حضورپاك به دغه مذکوره دعا د سفرنه په واپس راتلو کښې فرمائیله یا د مدینې د داخلیدو په وخت په دې دویم روایت کښې تصریح ده چه دعا به ئي مدینه کښې داخلیدو وخت کښې فرمائیله. (٣)

**ترجمة الباب سره مناسبت:** قال آیبون.........الخ مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دې

**د حدیث فوائد:** علامه عیني ﷫ ددې روایت نه مختلف آداب او فوائد مستنبط کړی دی

① په سورلئی دې ښځه سرې پسې شاته کینی او پرده کښې دې وی

② د نامحرم ښځې اوسړی دواړو د یوبل نه پرده کول او مخ په کپړا باندې پټول پکار دی

③ ابوطلحه ﷺ د رسول الله ﷺ خدمت کړې ددې نه معلومه شوه چه د وخت د امام او اهل علم خدمت مستحب دې

④ د سفرنه د مراجعت په وخت کله چه امام وخت خپل ملك یا ښارکښې داخل شی نو دهغه استقبال دې کوی او خلق دې دهغه نه چاپیره جمع شی.

⑤ کله چه مسافرخپل بال بچ ته په خیراوعافیت سره راورسی نو د الله تعالی شکر توبه او استغفار دې کوی

⑥ د روایت نه یوه دافانده معلومه شوه ازواج مطهرات سره ددې چه امهات المؤمنین وې لیکن د نامحرم سړو نه پرده او حجاب حکم دهغوی دپاره هم وو (٤)

---

(١) عمدة القاري: ٢٠/١٥.

(٢) مختار الصحاح ص: ٥٨٠ دارالمعارف بمصر.

(٣) فیض الباري:٣٥٩/٣.

(٤) عمدة القاري:٢٠/١٥.

احدیث ۲۹۲۰[۱]: حَدَّثَنَا عَلِي حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم وَمَعَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ، فَلَمَّا كَانُوا بِبَعْضِ الطَّرِيقِ عَثَرَتِ النَّاقَةُ، فَصُرِعَ النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - وَالْمَرْأَةُ، وَإِنَّ أَبَا طَلْحَةَ - قَالَ أَحْسِبُ قَالَ - اقْتَحَمَ عَنْ بَعِيرِهِ فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاءَكَ، هَلْ أَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ «لاَ، وَلَكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْأَةِ». فَأَلْقَى أَبُو طَلْحَةَ ثَوْبَهُ عَلَى وَجْهِهِ، فَقَصَدَ قَصْدَهَا فَأَلْقَى ثَوْبَهُ عَلَيْهَا، فَقَامَتِ الْمَرْأَةُ، فَشَدَّ لَهُمَا عَلَى رَاحِلَتِهِمَا فَرَكِبَا، فَسَارُوا حَتَّى إِذَا كَانُوا بِظَهْرِ الْمَدِينَةِ أَوْ قَالَ أَشْرَفُوا عَلَى الْمَدِينَةِ قَالَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم - «آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ». فَلَمْ يَزَلْ يَقُولُهَا حَتَّى دَخَلَ الْمَدِينَةَ. [۳۰۸۵، ۳۰۸۶، ۵۹۶۸، ۶۱۸۵]

## رجال الحدیث

① **علی**: - دا جلیل القدر محدث علی بن عبدالله بن جعفر المدینی رحمه الله دي ددوی تفصیلی حالات کتاب العلم لاندې وړاندې تیرشوی دی. ([۲])

② **بشربن المفضل**: - دا بشر بن المفضل ابن الاحق الرقاشی البصری رحمه الله دي ددوی حالات کتاب العلم باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: رب مبلغ أوعی من سامع لاندې تیرشوی دی [۳]

③ **یحیی بن ابی اسحاق**: ددوی تذکره کتاب تقصیر الصلوة باب ماجاء فی التقصیر لاندې تیره شوې ده.

④ **انس بن مالک**: - دَ انس بن مالک رضی الله عنه تذکره کتاب الایمان باب من الایمان أن یحب لاخیه مایحب لنفسه لاندې تیره شوې ده. ([۴])

**قوله**: أنه أقبل هو وأبوطلحة مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم - دا هم ځغه دَ ترجمة الباب دویم روایت دې خو سند ئې بدل شوې دې

فلما کانوا: - دَ ابوذر رضی الله عنه په روایت کښې کان دَ مفرد صیغه نقل کړې شوې ده ([۵])

عثرت الناقة: - دَ ابوذر او اصیلی رحمهما الله په روایت کښې ناقة په ځائې الدابة نقل دي. ([۶]) دابة دَ اسم فاعل صیغه ده په دې کښې تاء دَ وحدت ده دَ مؤنث اومذکردواړو دپاره

---

[۱]) مرتخریجه فی کتاب الصلوة باب مایذکر فی الفخذ رقم: ۳۷۱.
[۲]) کشف الباری: ۲۹۷/۳.
[۳]) کشف الباری: ۲۲۲/۳.
[۴]) کشف الباری: ۲/۴. ۵.
[۵]) إرشاد الساری: ۵۵۹/۶.
[۶]) إرشاد الساری: ۵۵۹/۶.

مستعمل ده ددې معنی ده په زمکه تګ کونکی خناور ،خاروی او څوپايه اکثرد دې استعمال په څوپايه باندې کیږی کوم چه د سورلئی یا بوج اوچتولوپه کارراخی

**قوله** حتی إذا كانوا بظهر المدينة، أو قال: أشرفوا على المدينة - دلته دراوی شك دې چه حضرت انس رضي الله عنه په دې دواړو کښې کومه جمله ونيلې وه كانوا بظهر المدينة ونيل يا اشرفوا على المدينة ونيلی وو

بظهر المدينة ظهرد ظاهر په معنی کښې دې یعنی چه کله مدینه مخامخ شوه (١)

**ترجمة الباب سره مناسبت** - مناسبت بالكل واضح دې

## باب-١٩٤ الصلاة إذا قدم من سفر

**دَ ترجمة الباب مقصد او باب سابق سره مناسبت** - ددې نه وړاندې باب کښې خودلې شوی چه کله مجاهد او مسافر دَ سفرنه واپس شي وطن ته راورسي نوداللّه تعالی شکردې اداکړي اوتوبه استغفار دې اوکړی اوس خبرد دا ده چه کله منزل مقصودته اورسي نو څه به کوی؟ په دې مناسبت سره امام بخاری رحمه الله باب الصلوة. إذا قدم من سفر ترجمه قايمولوسره داخودل غواړی چه کله مجاهد یا مسافر واپس شي خپل منزل مقصودته اورسي نوهغه له دَ شکرانې يو دوه رکعته مونځ اداکول پکاردی دَ رسول الله صلى الله عليه وسلم عادت مبارك وو چه دَ سفر نه په واپسئ باندې به نې جمات ته تعريف اوړلو او دوه رکعته به نې اداکول.

احديث [٢٩٢١] (٢) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ رضى الله عنهما قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي سَفَرٍ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لِي «ادْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ». [ر: ٤٣٢]

## رجال الحديث

① **سليمان بن حرب** - داابوايوب سليمان بن حرب بن بجيل واشحی رحمه الله دې كتاب الايمان لاندې ددوی تذکره تیره شوې ده (٣)

② **شعبه** - دامشهورمحدث شعبه بن الحجاج بن الورد البصری رحمه الله دې دَ دوی حالات كتاب الايمان لاندې وړاندې تيرشوی دی (٤)

③ **محارب بن دثار** - دا قاضی ابو مطرف. محارب بن دثار السدوسی الكوفی رحمه الله دې دَ وی تذکره كتاب الصلوة، باب الصلوة إذا قدم من سفر لاندې تیره شوې ده

---

(١) إرشادالسارى: ٦/ ٥٥٩.

(٢) مرتخريجه فى كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر رقم: ٤٤٣.

(٣) كشف البارى: ٢/ ١٠٥.

(٤) كشف البارى: ١/ ٦٧٨.

③ **جابر بن عبدالله** رضی الله عنهما :- دا مشهور صحابی رسول حضرت جابر بن عبدالله بن عمرو بن حرام الانصاری رضی الله عنهما دی د دوی حالات کتاب الوضوء باب صب النبی صلی الله علیه وسلم المغنی علیه لاندې تیر شوی دی

**کنت مع النبی صلی الله تعالی علیه وسلم فی سفر فلما قدمنا من المدینة قال لی ادخل المسجد فصل رکعتین** حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنهما وائی چه زه په سفر کښې رسول الله ﷺ سره ووم کله چه موږ مدینې ته اورسیدو نو حضورپاک ماته اوفرمائیل جابر جمات ته لاړشه او دوه رکعته اوکړه دې نه تحیة المسجد مراد نه دې دا د سفر نه د واپسئ نفل مونځ وو [۱]

**کتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر** لاندې امام بخاری رحمه الله دا روایت عن خلاف بن یحیی عن مسعر عن محارب بن دثار په طریق سره روایت کړې دې [۲] هم هلته د دې متعلق تفصیل هم تیر شوی دې علامه قسطلانی فرمائی چه امام بخاری رحمه الله دا روایت مختصر او تفصیلاً شلو مقاماتو کښې نقل کړې دې [۳]

**ترجمة الباب سره د حدیث باب مناسبت** :- د فلما قدمنا من السفر قال لی: ادخل المسجد فصل رکعتین مناسبت ترجمة الباب سره ښکاره دې

احدیث ۲۹۲۲ [۴] حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيهِ وَعَمِّهِ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ كَعْبٍ - رضی الله عنه - أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - كَانَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ ضُحًى دَخَلَ الْمَسْجِدَ، فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ. [ر ۲۶۰۶]

## رجال الحدیث

① **ابوعاصم** :- دا ابوعاصم ضحاک بن مخلد بن ضحاک بن بصری رحمه الله دی د دوی تذکره کتاب العلم باب القراءة والعرض علی المحدث لاندې تیره شوې ده [۵]

② **ابن جریج** :- دا عبدالملک بن عبدالعزیز بن جریج اموی رحمه الله دی د دوی تذکره کتاب الحیض باب غسل الحائض رأس زوجها وترجیله لاندې تیره شوې ده

---

[۱] ) إرشادالساری:۶/۵۵۹.

[۲] ) عمدة القاری:۱۵/۲۱.

[۳] ) إرشاد الساری:۶/۵۵۹.

[۴] ) مرتخریجه فی کتاب الجهاد باب إذا تصدق أو وقف بعض ماله أو بعض رقیقه أو دوابه فهوجائز رقم:۲۷۵۷.

[۵] ) کشف الباری:۳/۱۲۹ – ۱۳۲.

③ابن شهاب - مشهورمحدث محمد بن مسلم بن عبيدالله بن شهاب زهرى دې دډوى حالات هم بدء الوحى لاندې تيرشوى دى (١)

④ عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب - دا عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب بن مالك رحمه الله دې كتاب الوصايا باب إذا تصدق أو وقف بعض ماله لاندې ئې تذكره تيره شوې ده.

⑤ عبيدالله بن كعب - دادَ مشهورصحابى كعب بن مالك رضي الله عنه خوئې دې ثقه اومعتبرراوى دې دخپل پلار كعب بن مالك رضي الله عنه نه ئې روايات اخستى دى (٢) د دوى نه روايت كونكو كښې د ده ورارد. عبدالرحمن بن عبدالله بن كعب، محمدبن مسلم بن شهاب زهرى. او دهغه رور معبدبن مالك رحمهم الله شامل دى. (٣)

كله چه دَ كعب بن مالك رضي الله عنه نظر لاړو نوعبيدالله بن كعب دَ هغه سهارا جوړشو اودهغه ئې ښه خدمت اوكړو. (٤) امام بخارى امام مسلم امام ابوداؤد اوامام نسائى رحمهم الله ټولو دډوى روايات نقل كړى دى.

**قوله** أن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم كان إذا قدم من سفر ضحى دخل المسجد، فصلى ركعتين قبل أن يجلس :- حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به كله دَ ساختې وخت د سفرنه واپس راتلو نو اول به جمات ته تللو اودَ كيناستونه وړاندې به ئې دوه ركعته كول.

دَ امام بخارى رحمه الله عادت دې كه چرې يوروايت په مختلفو احكامو آدابو او فوائدباندې مشتمل وى نوهغه په مختلف أبواب كښې نقل كوى. مذكوره روايت دَ حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه دَ يوطويل او مفصل روايت جزء دې په كوم كښې چه هغه دَ غزوه تبوك نه پاتې كيدو قصه بيان كړې ده. شاته كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر لاندې مذكوره روايت باندې بحث كړې دې او وړاندې كتاب المغازى لاندې هم په تفصيل سره راروان دې. (٥)

**ترجمة الباب سره مناسبت** :- مناسبت بالكل ښكاره دې.

**دَ حديث نه حاصل شوې فوائد** :- علامه عينى رحمه الله اوفرمائيل چه دَ ترجمة الباب دَ روايت نه يوه فائده دا معلومه شوه چه دَ سفر نه په واپس كيدو نفل مونځ كول سنت دى اودَ دې ډير فضيلت دې دا سلامت اوبه عافيت سره واپس كيدو باندې دَ الله تعالى په حضوردَ شكريه ادا كولو مظهر دې دَ رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په دې طرز عمل كښې زمونږ دَپاره اوسوه او نمونه ده چه دَ سفر نه حضر حالت ته راتلل او دَهر كارنه وړاندې نفلى مونځ سره تبرك حاصل كړې شى. دادَ خير

---

(١) كشف البارى: ١/٣٢٦.
(٢) تهذيب الكمال للحافظ المزى: ١٩/١٤٥.
(٣) تهذيب الكمال: ١٩/١٤٥ وتهذيب التهذيب: ٧/٤٤.
(٤) تهذيب الكمال: ١٩/١٤٥ وتهذيب التهذيب: ٧/٤٤.
(٥) كشف البارى كتاب المغازى ص: ٦٣٥ – ٦٥١.

یود بهترینه کنجی ده (۱)
دویمه خبره دا معلومه شوه چه دَ سفرنه واپس راشی نودَخپل کور نه اول دَالله تعالی کور جمات کښې حاضر شي اوهم دَدغه ځائی نه دَحضرت شروع اوکړي خلقو سره لږ ساعت ناسته اوکړی نو سلام دعابه کوی (۲) بنکاره خبره ده چه دا هم یوه لویه فائده ده.

## باب-۱۹۵ الطعام عند القدوم

**دَ ترجمة الباب مقصد او باب سابق سره مناسبت:-** دَدې نه وړاندې باب کښې خودلې شوی چه اول دې جمات ته لاړشي مونځ دې اوکړی دَهغې نه پس دې بیا کورته څی کله چه مسافر خپل کورته لاړو آرام نې اوکړو نودهغې نه پس به څه کوی؟ دَدې مناسبت سره امام بخاری رحمه الله دا ترجمة قایم کړه دَ امام بخاری رحمه الله غرض دادې چه دَ خوشحالئی په موقع باندې که چرې دَ دعوت طعام انتظام اوکړې شی نودیره ښه خبره ده. په دې موقع باندې دَخپلوانو دوستانو دَپاره دعوت طعام بندوبست کول دَ سنت او صحابه کرامو رضی الله عنهم دَ اثرنه ثابت دی.

**قوله:** <u>وكان ابن عمر يفطر لمن يغشاه</u>:- عبدالله بن عمر رضی الله عنهما به دَ میلمانو او راتلو ملاقاتیانو دَوجې نه روژه نه ساتله.

<u>يغشاه</u>:- غَشِيَ يَغْشَا غِشْيَانا په معنی کښې دې دَ چاراتلل، راښکاره کیدل. په عربی ژبه کښې ملاقاتیان یا خدمت کونکې جماعت ته غاشية وئیلې شی. (۳)
ممکن دی چه په روایت باب کښې هم غاشیه نه هغه خلق مرادوی چه دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ خدمت او زیارت کولو دَپاره راتلل.

<u>يفطر</u>:- دَکشمیهنی په روایت کښې يفطر په ځائی يصنع لفظ راغلې دې (۴) حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عسقلانی رحمه الله فرمائی چه دَ معنی په لحاظ دَالفظ هم صحیح دې او دَدواړو په مینځ کښې څه تعارض هم نشته خو بیاهم دَ ترجمة الباب په روایت کښې يفطر مروی دې هم دَغه اصح دې. (۵)

**حضرت ابن عمر رضی الله عنهما دَ سفر اوحضر معمول:-** دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما معمول وو چه په سفرکښې به ئې کله هم روژه نه ساتله نه فرضی اونه نفلی. او په حضرکښې اکثر دَ روژې ساتلو اهتمام وو دَ رمضان په میاشت کښې به ئې په رخصت باندې عمل کولو اودَهغې قضاء به ئې راوړله. خوچه کله به ئې دَ سفرنه تشریف راوړلونو یوڅو ورځې به ئې روژه نه ساتله ځکه چه خلق به دَ ملاقات او مبارکئی دَپاره راتلل حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به دَهغوی دعوت او خاطرتواضع انتظام فرمائیلو اوبخپله به هغوی سره په خوراك څښاك کښې شریك کیدلو

---

(۱) عمدة القاری: ۱۵/۲۲.
(۲) عمدة القاری:۱۵/۲۲.
(۳) النهاية لابن الاثير: ۳/۳۷۰ (ماده غين شين).
(۴) إرشاد الساری: ۶/۵۶۰.
(۵) إرشادالساری: ۶/۵۶۰ وفتح الباری:۶/۲۳۱.

او یوځو ورځې به نې دخپل معمول خلاف روژه نه ساتله کله چه به د میلمنو راتګ بند شو نو بیا به نې د خپل معمول اهتمام کولو سره روژه ساتله (١)

مذکوره اثر قاضی اسماعیل بن اسحاق په الاحکام کښې عن حماد عن نافع عن ابن عمر په طریق سره موصولاً روایت کړې دې په دې کښې دی إذا کان مقیما لم یفطر، وإذا کان مسافرا لم یصم، وإذا قدم أفطر أیامًا لغاشیته، ثم یصوم. (٢) حضرت ابن عمر رضی الله عنهما چه به کله مقیم شو نو روژه به نې ساتله او چه په سفر کښې به وونو د روژې نه ساتلو معمول نې وو کله چه به د سفرنه واپس کیدو نو څو ورځې به نې دخپلو میلمنو د خاطره افطار کولو بیا به نې روژه ساتله

**د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما داثر نقل کولومقصد** - دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما دا معلق اثر نقل کولو سره امام بخاري رحمه الله د ترجمة الباب مدعی ثابتوی چه ګورئی د ابن عمر رضی الله عنهما په حضر کښې د نفل روژې ساتلو معمول وو لیکن چه کله به د سفرنه واپس کیدو نو د ملاقات نو د میلمستیا دې ره دخپل معمول خلاف پخپله هم هغوی سره خوراك کښې شریك کیدلو او څو ورځې به نې روژه نه ساتله.

**د ابن عمر رضی الله عنهما داثر نه مستنبط فوائد** - علامه ابن بطال رحمه الله ددې اثر لاندې دا فائده خودلې ده چه رؤسا او ائمه له پکار دی چه د سفر نه واپس کیدو نه پس خپل احباب او دوستانو ضیافت کونې دا مستحب دی او د اکابرو او اسلافو دا معمول پاتې دې (٣) دې دعوت ته په عربی کښې نقیعه ونیلې شي (٤) علامه ابن اثیر رحمه الله تحریر فرمانې چه نقیعه هغه خوراك ته وانی کوم چه مسافر د سفر نه د واپس راتلو سره تیاره وی (٥) یوقول دادې چه نقیعه د نقع نه دې نقع دوړې ته وانی مسافر هم په دوړو کښې سفر کوی (٦)

احدیث ٢٩٢٣/٢٩٢٤ (٧) حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ أَخْبَرَنَا وَكِيعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضی الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلی الله علیه وسلم - لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ نَحَرَ جَزُورًا أَوْ بَقَرَةً.

## رجال الحدیث

① **محمد** دا ابوعبدالله محمد بن سلام بن الفرج السلمی بیکندی دې د دوی تذکره کتاب الایمان

---

(١) فتح الباري: ٦/٢٣٨ وإرشاد الساري: ٦/٥٦٠.
(٢) تغليق التعليق لابن حجر: ٣/٤٦٧.
(٣) شرح ابن بطال: ٥/٢٤٣.
(٤) فتح الباري: ٦/٢٣٩.
(٥) النهاية في غريب الحديث لابن الاثير: ٥/١٠٩.
(٦) إرشاد الساري: ٦/٥٦١.
(٧) مر تخريجه في كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر.

باب قول النبی صلی الله تعالی علیه وسلم: أنا أعلمکم بالله وأن المعرفة فعل القلب لاندې اوګورئی (١)

**حدثنا محمد** - دَ محمد په نوم سره دَامام بخاری رحمه الله ډېر شیوخ حدیث ذکر صحیح بخاری کښې راغلي دي مثلاً محمدبن علاء. محمدبن مثنی وغیره هما خو په خپل صحیح کښې امام بخاری رحمه الله دا صنیع اختیارکړې دې چه کوم خانې دَ لقب یا کنیت وغیره دَ تصریح نه بغیر په سندکښې مطلقا محمد ذکرکوی نو ددې نه دهغوی په نیز محمدبن یحیی یا محمد ذهلی نه یوکس مراد وی (٢) بیا دا شبه پیداکیږی چه په سندحدیث کښې مطلق لفظ محمد نه به څنګه معلومیږی چه دې نه محمدبن یحیی مراد دې یا محمدذهلی؟ ددې جواب دادې چه دَ دواړو شیوخ حدیث جدا جدا دی لهذا دَ مروی عنه تعیین سره ددې خبرې هم تعیین کیږی چه دَ محمد نه محمد بن یحیی مراد دې که محمدذهلی (٣) دلته دَ روایت په سندکښې دَ محمد شیخ یعنی مروی عنه وکیع دې او وکیع بن جراح دَمحمد ذهلی په شیوخ کښې شامل نه دې په دې وجه دا شك باقی نه پاتې کیږی چه دَ محمد نه به دلته محمد ذهلی مراد وی

② **وکیع** - دامشهورامام محدث ابوسفیان وکیع بن الجراح بن ملیح الرواسی الکوفی رحمه الله دي دَ دوی حالات کتاب العلم باب کتابة العلم لاندې تیرشوی دی (٤)

③ **شعبه** - دا شعبه بن الحجاج واسطی بصری رحمه الله دې. دَ دوی حالات کتاب الایمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده لاندې وړاندې تیرشوی دی. (٥)

④ **محارب بن دثار** - دا قاضی ابومطرف محارب بن دثار السدوسی الکوفی رحمه الله دې دَدوی حالات کتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر لاندې تیرشوی دی.

⑤ **جابربن عبدالله** رضی الله عنهما - دا مشهور صحابی دې دَدوی حالات کتاب الوضوء باب صب النبی الوضوء علی المغمی علیه لاندې تیرشوی دی

**قوله: أن رسول الله صلی الله تعالی علیه وسلم لما قدم المدینة نحر جزوراً أو بقرةً:** - حضرت جابربن عبدالله رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم (به کله دَ ذات الرقاع نه واپس شو)(٦) مدینې ته راورسیدو نو حضورپاك یوه اوښه یا غوا ذبح کړه

**جزوراً أوبقرة:** - دَ جیم فتحه او زاء ضمه سره دَ قربانئی اوښ ته وائی په مذکر او مؤنث دواړو باندې دَ جزور اطلاق کیږی. (٧)

---

(١) کشف الباری: ٩٣/٢.
(٢) فتح الباری: ١٣٩/٦.
(٣) فتح الباری: ١٣٩/٦.
(٤) کشف الباری: ٤/٢١٩ – ٢٢٦.
(٥) کشف الباری: ٦٧٨/١.
(٦) إرشاد الساری: ٥٦١/٦.
(٧) عمدة القاری: ٢٢/٥ النهایة لابن الاثیر: ٢٢٦/١.

د دې جمع جرز د جيم او زاء ضمه سره[1]
راوى نه ياد نه دى چه اوښه ئې ذبح كړې وه كه غوا په دې بنياد باندې او دلته مفيد شك دې
ليكن راجح دادى چه حضور پاك غوا ذبح كړې وه ځكه چه د حضرت جابر رضي الله عنه هم دغه روايت
امام مسلم رحمه الله په دوو مختلف طرق سره خپل صحيح كښې روايت كړې دې او په دواړو كښې
د بقرة لفظ تصريح ده د جزور هډو ذكر نشته[2]
خلاصه دا شوه چه د صحيح بخارى په روايت باب كښې جزور د راوى شك دې صحيح دادې
چه حضور پاك غوا ذبح كړې وه

**ترجمة الباب سره مناسبت** ترجمة الباب سره د روايت باب مناسبت بالكل ظاهر دې ترجمة
الباب لاندې امام بخارى رحمه الله د سفر نه واپس كيدلو باندې د دعوت طعام سنيت او استحباب
ثابت كړې دې

احديث ص ١٦٩٦[3] مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَارِبٍ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اشْتَرَى مِنِّي النَّبِيُّ -
صلى الله عليه وسلم- بَعِيرًا بِوُقِيَّتَيْنِ وَدِرْهَمٍ أَوْ دِرْهَمَيْنِ، فَلَمَّا قَدِمَ صِرَارًا أَمَرَ بِبَقَرَةٍ فَذُبِحَتْ فَأَكَلُوا
مِنْهَا، فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ أَمَرَنِي أَنْ آتِيَ الْمَسْجِدَ فَأُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ، وَوَزَنَ لِي ثَمَنَ الْبَعِيرِ.

## رجال الحديث

①**معاذ** - دا معاذ بن معاذ العنبرى البصرى رحمه الله دې. د دوى تذكره كتاب الاذان باب إذا أقيمت
الصلوة فلا صلاة إلا المكتوبة لاندې تيره شوې ده د سند د باقى روايانو حواله دې نه وړاندې روايت
په سند كښې تيره شوې ده

**قوله** اشترى منى النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بعيرًا بوقيتين، ودرهم أو
درهمين - جابر بن عبد الله رضي الله عنهما وائى رسول الله صلى الله عليه وسلم مانه يو اوښ په دوه اوقيه او يو درهم يا
دوه اوقيه او دوه درهم واخستلو. راوى ته يادنه دى چه په دوه اوقيه او يو درهم باندې اخستې
وو كه په دوه اوقيه او دوه درهم باندې په دې وجه د أو درهمين سره د راوى شك ښكاره كيږى
خو د ابوذر په روايت كښې أوقيتين د همزه فتحه او واؤ سكون سره ضبط شوې دې په

[1]) النهاية لابن الاثير: ٢٢٦/١.
[2]) أخرجه مسلم فى صحيحه: ٢٩/٢ فى كتاب المساقاة والمزارعة. باب بيع البعير واستثناء ركوبه. عن عبيدالله بن معاذ العنبرى عن أبيه عن شعبة عن محارب أنه سمع جابر بن عبدالله يقول: اشترى منى رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم بعيرا بوقتين ودرهم. أو درهمين. قال: فلما قدم صرارًا أمر ببقرة فذبحت. فاكلوا منها. فلما قدم المدينة أمرنى ان آتى المسجد فاصلى ركعتين. ووزن لى ثمن البعير. فارجح لى رقم: ٤٠٧٣ وقد أخرجه أيضًا بطريق آخر: ٣٠/٢ عن يحيى بن الحبيب الحارثى. عن خالدبن الحارث. عن شعبة عن محارب. عن جابر. عن النبى صلى الله تعالى عليه وسلم بهذه القصة. غير أنه قال: فاشتراه منى بثمن قد سماه. ولم يذكر الوقيتين. والدرهم و الدرهمين. وقال: أمر ببقرة. فنحرت. ثم قسم لحمها. رقم: ٤٠٧٥.
[3]) قوله (زاد معاذ. عن شعبة) مر تخريجه فى كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر رقم: ٤٤٣.

یوروایت کښې وقیتین په واوباندې فتحه سره ضبط شوې دې او په دې کښې همزه ساقط ده [۱] او په دې مخې ته نسخه کښې هم دا ضبط کړې شوې دې

**قوله** فلما قدم صرارا، أمر ببقرة فذبحت فأكلوا منها ۔ کله چه حضورپاك مقام صرار ته اورسیدونو دیوې غواذبح کولوحکم ئې ورکړونو غواذبح کړې شوه اوټولو دَهغې غوښه اوخوړله

صرار : دَ صاد کسره سره دَ یوځائې نوم دې مشرق طرف ته مدینې نه درې میله فاصله باندې دې [۲] حموی، مستملی او ابن الخذاء رحمهم الله په روایت کښې ضرار په صاد باندې نقطه سره، ضبط شوې دې علامه ابن قرقول او حافظ ابن حجر رحمهما الله فرمائی دادَ راوی وهم دې صحیح صرار (بغیرنقطه) دې [۳] باوقیتین ودرهم أو درهمین

**الفاظ روایات کښې تعارض اودَهغې حل**:- علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی دا جمله دَ امام بخاری رحمه الله په نیز په روایت کښې په مختلف لفظونوسره نقل ده په یوروایت کښې دی باوقیتین دَ تثنیه په ځائې وقیة مفرد نقل کړې شوې دې په یوروایت کښې الفاظ دی احسبه بأربع أواق او په یوبل روایت کښې دی بعشرین دینار الفاظ نقل دی [۴] خو امام بخاری رحمه الله اوفرمائیل ان روایة وقیة اکثر [۵]

قاضی عیاض رحمه الله دَ روایت په دې جمله کښې نقل شوی اختلاف په مینځ کښې تطبیق ورکولو سره فرمائیلی چه په حقیقت کښې دا لفظی اختلاف دې دَمعنی په لحاظ په دغه مختلفو الفاظو کښې هیڅ تعارض نشته دَ اختلاف اصل منشاء خو روایت بالمعنی دې مطلب دادې چه راوی په روایت بالمعنی باندې عمل اوکړو او هم یومفهوم ئې په مختلفو لفظونو کښې تعبیرکړو. په اوقیة سره په روایت کښې أوقیة الذهب مراددې او دَدویم روایت مطابق اربع أواق په اصل کښې څلور اوقیه چاندی دَ أوقیة الذهب دَ قیمت مساوی دې لهذا معناً دې مختلفو الفاظ کښې څه تعارض نشته. دغه شان په شل دینار دَ دغه اواقی قیمت شی

علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی: وجمع القاضی عیاض بین هذه الروایات بان سبب الاختلاف: الروایة بالمعنی وأن المراد أوقیة الذهب والاربع أواق بقدر ثمن أوقیة الذهب [۶]

**دَدې تعلیق تخریج**:- امام مسلم رحمه الله دا تعلیق کتاب المساقات، باب بیع البعیرواستثناء رکوبه

---

[۱] ) إرشادالساری:۶/۵۶۱.
[۲] ) عمدة القاری:۱۵/۲۲ – ۲۳.
[۳] ) عمدة القاری:۵/ ۲۲ – ۲۳ وفتح الباری: ۴/۲۳۹.
[۴] ) إرشادالساری:۶/۵۶۱.
[۵] ) إرشادالساری:۶/۵۶۱.
[۶] ) إرشادالساری:۶/۵۶۱.

انډي موصولاً نقل کړې دي بل اسماعيل رحمه الله هم دا تعليق په مستخرج کښې موصولاً روايت کړې دې (١)

**ددې تعليق مقصد** - ددې تعليق نه دامام بخارى رحمه الله مقصد د ترجمة الباب دعوى ثابت کول دى چه رسول الله ﷺ د سفر نه مراجعت کولوسره مقام صرار ته اورسيدو نو حضوپاک د غوا د ذبح کولو حکم ورکړو کومه چه ټولو په يو خائى اوخوړله چنانچه فلما قدم صرارًا أمر ببقرة نه هم ترجمة الباب اوخى.

احديث نمبر ٢٩٢٤ (٢) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَدِمْتُ مِنْ سَفَرٍ فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « صَلِّ رَكْعَتَيْنِ » . صِرَارٌ مَوْضِعٌ نَاحِيَةً بِالْمَدِينَةِ. [ر: ٤٣٢]

## رجال الحديث

① **ابوالوليد** - دا ابوالوليد هشام بن عبدالملك طيالسى بصرى رحمه الله دي د دوى حالات كتاب الايمان باب علامة حب الايمان کښې تيرشوى دى (٣)

② **شعبه** - دا شعبه بن الحجاج بن الورد بصرى رحمه الله دي. د دوى حالات كتاب الايمان باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده لاندې وړاندې تيرشوى دى (٤)

③ **محارب بن دثار** - دا قاضى ابومطرف محارب بن دثار السدوسى الكوفى رحمه الله دي. د دوى حالات كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر لاندې تيرشوى دى

④ **جابربن عبدالله** رضي الله عنهما: دا مشهور صحابى جابر بن عبدالله بن حرام انصارى دي د دوى تذكره كتاب الوضوء باب صب النبى الوضوء على المغمى عليه لاندې تيره شوى ده.

**قوله** قال: قدمت من سفر، فقال النبى صلى الله تعالى عليه وسلم: صل ركعتين - د حضرت جابربن عبدالله رضي الله عنهما په روايت کښې دى چه زه د سفر نه واپس راغلم نو رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه دوه رکعته (نفل) اوکړه

**ترجمة الباب سره د حديث په مناسبت د يواشکال جواب** - حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چه دلته

---

(١) صحيح مسلم: ٢٨/٢ رقم: ١١٥.
(٢) مر تخريجه فى كتاب الصلوة باب الصلوة إذا قدم من سفر رقم: ٤٤٣.
(٣) كشف البارى: ٣٨/٢.
(٤) كشف البارى: ٦٧٨/١.

اشکال کیدي شي چه ددې روايت ترجمة الباب سره مناسبت نشته ددې مناسبت خود ماقبل باب باب الصلوة إذا قدم من سفر سره دې؟
حافظ ابن حجر ددې جواب ورکړې دې چه ابوالوليد په طريق سره مذکوره روايت نقل کولو سره امام بخاري ددې خبرې طرف ته اشاره کړې ده چه دا روايت د پوره حديث يو جزء دې ددې تفصيل دا دې چه د شعبه بن حجاج نه دهغه دريو شاګردانو دا حديث روايت کړې دې او هريو د شعبه بن حجاج نه د حديث صرف هم يوجزء نقل کولو باندې اکتفاء کړې ده. وکيع د شعبه نه د حديث هغه جزء نقل کړې دې په کوم کښې چه د غوا د ذبح ذکر دې. ابوالوليد او سليمان بن حرب د شعبه نه د حديث هغه جزء نقل کړې دې په کوم کښې چه رسول الله ﷺ مبارک حضرت جابر بن عبدالله ته د دوو رکعتو مونځ کولو حکم ورکړې دې او معاذ عنبري د شعبه نه پوره حديث نقل کړې دې (١)
خلاصه دا ده چه د باب دريواړه روايتونه هم د يوحديث مختلف اجزاء دی ابوالوليد په طريق باندې امام بخاري دا روايت ذکرکولو سره اشاره فرمائيلې چه دا دې نه د وړاندې روايت جزء دې (٢)

**قوله** صرار: موضع ناحية بالمدينة - د ترجمة الباب په معلق روايت کښې صرار لفظ وارد شوې دې امام بخاري وضاحت فرمائيلې دې چه صرار د مدينې په مضافات کښې واقع دې. د صحيح بخاري په يو نسخه کښې دا عبارت نشته (٣)
**براعت اختتام** - دامام بخاري دا عادت دې چه دهر کتاب په آخره کښې يو داسې لفظ ذکر کوی په کوم کښې چه د اختتام طرف ته اشاره وی.
شيخ الحديث مولانا محمدزکريا فرمائيلی دی چه په حقيقت کښې امام بخاري د کتاب اختتام سره انسان د دې په خاتمه باندې خبردارکوی چه څنګه د کتاب بحث اختتام ته اورسيدو ستا ژوند به هم دغه شان خپل انجام ته په رسيدو سره ختم شي. لهذا د مرګ نه غفلت مه کوه او په نيکو اعمالو سره د راتلونکې منزل تياری کوه.
د حافظ ابن حجر په نيز کتاب الجهاد هم په دې باب باندې ختميږی. کتاب الخمس په دې کښې شامل نه دې په دې وجه د حافظ صاحب په نيز په اختتام باندې دلالت کونکې جمله قدمت من سفر، فقال النبي صلى الله تعالى عليه وسلم: صل رکعتين ده. (٤)

---

(١) فتح الباري: ٢٣٩/٦ وتبعه القسطلاني أيضًا أنظر إرشادالساري: ٥٦١/٦.
(٢) فتح الباري: ٢٣٩/٦.
(٣) تحفة الباري لشيخ الاسلام زکريا بن محمد الانصاري: ٥٢٩/٣.
(٤) الابواب والتراجم للمحدث زکريا الکاندهلوی ص: ٢٠٥ ومقدمة لامع الدراري للکاندهلوي: ١٧١/١.

ليكن حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائيلي چه زما په نيز كتاب الجهاد په بدء الخلق باندې ختميږي [illegible] الرحمن ثم به كتاب الجهاد كښې شامل دې په دې وجه دلته په دې مقام باندې دَ براعت اختتام دَتصريح كولو هيڅ ضرورت نشته خو كه دَحافظ صاحب دَ رائې اعتبار اوكړې شي نو بيا هم براعت اختتام باندې دلالت كونكې هغه الفاظ دانه دى دكوم تصريح چه حافظ صاحب كړې دى بلكه دَ حديث باب په سند كښې وارد محارب او دثار هغه الفاظ دى چه براعت اختتام باندې دلالت كوى دَ محارب معنى ده جنګ كونكې جنګيدونكې په جنګ سره دَ مرګ واقع كيدل ممكن دى لكه چه لفظ محارب سره دَ مرګ واقع كيدو او ژوندون ختميدو طرف ته اشاره ده دثار نه اسم فاعل الداثرالهالك طرف ته اشاره ده هلاك كيدونكې په دې سره هم دَ مرګ او ژوند هلاكت يعنى ختميدو طرف ته اشاره ده (۱)

دغه شان دثار هغه كپړې ته وائى چه په بدن باندې لګيدلې كپړې دَپاسه وى دَدې ضد شعاردې شعار دَ بدن وينتو سره ليګدلې كپړې ته وائى دا دَ دثار نه لاندې وى دې ته تاسو تحتانى لباس هم وئيلې شئى حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمائى چه دثار دَ شعار ضد دې او شعار سره ذهن رسول اكرم ﷺ دَدې ارشاد طرف ته راګرځول دى دَ كو الفاظ چه دادى: شعرنها اياه (۲)

دَ رسول الله ﷺ لور بى بى حضرت زينب رضي الله عنها وفات شوه. دَهغې دكفن دفن انتظام اوكړې شو نو حضورپاك اوفرمائيل أشعرنها إياه يعنى دا ازار دَ زينب دَپاره شعار جوړ كړئى. (۳)

مختصر دا چه دثار دَ شعار سره مناسبت دې په كوم سره چه مذكوره روايت يادولو سره انسان خبرداركولې شى چه ته به هم مړكيږې او كفن دفن انتظام به دې كيږى لهذا غافل كيږه مه اودَمرګ تيارى كوه. والله اعلم

ختم شده

---

۱) الابواب والتراجم للمحدث زكريا الكاندهلوى: ص ۲۰۰ ومقدمة لامع الدرارى للكاندهلوى: ۱۷۱/۱.

۲) والحديث عندالبخارى: ۱۶۸/۱ فى كتاب الجنائز باب غسل الميت ووضوء بالماء والسدر. وباب ما يستحب أن يغسل وترا. وعندمسلم فى صحيحه: ۱/۳۰۴ – ۳۰۵ فى كتاب الجنائز باب غسل الميت ثلاثا أو خمسا.وعند النسائى فى سننه: ۶۶۶/۱ فى باب كيف يغسل الميت وعندالترمذى فى حامعه: ۱۹۳/۱ فى أبواب الجنائزباب ماجاء فى غسل الميت.وعند ابن ماجة فى سننه: ص: ۱۰۵ فى أبواب ماجاء فى غسل الميت.

۳) مقدمة لامع الدرارى للمحدث زكرياكاندهلوى: ۱۷۱/۱.

# المصادر والمراجع

الابواب والتراجم لصحیح البخاری / محمد زکریا صاحب الکاندھلوی رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۱۴۰۲ھ / ۱۹۸۲م ۔ ایچ ایم سعید کمپنی کراچی۔

الاحسان بترتیب صحیح ابن حبان / ابو حاتم محمد بن حبان بستی رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۳۵۴ھ ۔ مؤسسۃ الرسالۃ بیروت۔

احکام القرآن / ابو بکر احمد بن علی الرازی الجصاص رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۳۷۰ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ بیروت

احکام القرآن / ابو بکر محمد بن عبد اللہ المعروف بابن العربی المتوفی ۵۴۳ھ / دار المعرفۃ بیروت۔

ارشاد الساری شرح صحیح البخاری / ابو العباس شہاب الدین احمد القسطلانی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفیٰ ۹۲۳ھ ۔ المطبعۃ الکبریٰ الامیریۃ مصر / دار الکتب العلمیۃ بیروت۔

الاستذکار / ابن عبد البر ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفی ۴۶۳ھ ۔ دار احیاء التراث العربی بیروت ۔ الطبعۃ الاولی ۱۴۲۱ھ

الاستیعاب فی اسماء الاصحاب بہامش الاصابۃ / ابو عمر یوسف بن عبد اللہ بن محمد بن عبد البر ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۴۶۳ھ ۔ دار الفکر بیروت۔

اسد الغابۃ فی معرفۃ الصحابۃ / عز الدین ابو الحسین علی بن محمد الجزری المعروف بابن الاثیر ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفیٰ ۶۳۰ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ بیروت۔

الاصابۃ فی تمییز الصحابۃ / شہاب الدین ابو الفضل احمد بن علی العسقلانی المعروف بابن حجر ۔ رحمہ اللہ ۔ المتوفی ۸۵۲ھ ۔ دالفکر بیروت۔

اعلام الحدیث / ابو سلیمان حمد بن محمد الخطابی ۔ رحمہ اللہ تعالیٰ ۔ متوفی ۳۸۸ھ ۔ مرکز احیاء التراث الاسلامی جامعۃ ام القری مکۃ المکرمۃ۔

اعلاء السنن / ظفر احمد العثمانی ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۱۳۹۴ھ ۔ ادارۃ القرآن کراچی۔

اکمال اکمال المعلم شرح صحیح المسلم / ابو عبد اللہ محمد بن خلفۃ الوشتانی المالکی ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفی ۸۲۷ھ ۔ دار الکتب العلمیۃ ۔ بیروت۔

الانساب / ابو سعد عبد الکریم بن محمد بن منصور السمعانی رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۵۶۲ھ ۔ دار الجنان بیروت

اوجز المسالک الیٰ مؤطا مالک / محمد زکریا الکاندھلوی ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفی ۱۴۰۲ھ ۔ ادارہ تالیفات اشرفیہ ۔ ملتان / دار القلم ۔ دمشق۔

بدائع الصنائع فی ترتیب الشرائع / ملک العلماء علاء الدین ابو بکر بن مسعود الکاسانی ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۵۸۷ھ ۔ ایچ ایم سعید کمپنی کراچی۔

بدایۃ المجتہد / علامہ قاضی ابو الولید محمد بن احمد بن رشد قرطبی ۔ متوفیٰ ۵۹۵ھ ۔ مصر طبع خاص۔

البدایۃ والنہایۃ / حافظ عماد الدین ابو الفداء اسماعیل بن عمر المعروف بابن کثیر ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۷۷۴ھ ۔ مکتبۃ المعارف بیروت ۔ طبع ثانی ۱۹۷۷م۔

بذل المجہود فی حل ابو داؤد / علامہ خلیل احمد سہارنپوری ۔ رحمہ اللہ ۔ متوفیٰ ۱۳۴۶ھ ۔ مطبعۃ ندوۃ العلماء لکھنؤ ۱۳۹۳ھ / ۱۹۷۳م۔

تاج العروس من جواهر القاموس /ابو الفيض سيد محمد بن محمد المعروف بالمرتضىٰ الزبيدى ـ رحمه الله تعالىٰ ـ. متوفىٰ ١٢٠٥ھ . دار مكتبة الحياة . بيروت ـ
تاريخ بغداد او مدينة السلام /حافظ احمد بن على المعروف بالخطيب البغدادى ـ رحمه الله تعالىٰ ـ. متوفىٰ ٤٦٣ھ ـ دار الكتاب العربى بيروت ـ
التاريخ الكبير /امير المؤمنين فى الحديث محمد بن اسماعيل البخارى ـ رحمه الله ـ . متوفىٰ ٢٥٦ھ ـ دار الكتب العلمية بيروت ـ
تاليفات رشيديه / رشيد احمد گنگوهى قدس سره .المتوفى ١٣٢٣ھ . ادارهٔ اسلاميات ـ
تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق / فخر الدين عثمان بن على الزيلعى . متوفى ٧٤٣ھ . دار الكتب العلمية بيروت
تحرير تقريب التهذيب / بشار عواد معروف . شعيب الارنؤوط . مؤسسة الرسالة . بيروت ـ
تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف /ابو الحجاج جمال الدين يوسف بن عبد الرحمن المزى ـ رحمه الله تعالىٰ ـ. متوفى ٧٤٢ھ . المكتب الاسلامى بيروت ـ
تحفة البارى بشرح صحيح البخارى / ابو يحيى زكريا بن محمد الانصارى . المتوفى ٩٢٦ھ . دار الكتب العلمية بيروت . الطبعة الاولى ١٤٢٥ھ ـ
تدريب الراوى بشرح تقريب النواوى / جلال الدين عبد الرحمن سيوطى ـ رحمه الله ـ. متوفى ٩١١ھ . المكتبة العلمية المدينة المنورة ـ
تعليقات على بذل المجهود / محمد زكريا الكاندهلوى ـ رحمه الله تعالىٰ ـ . متوفى ١٤٠٢ھ . المكتبة التجارية .ندوة العلماء لكهنؤ . الطبعة الثالثة ١٣٩٣ھ / ١٩٧٣م ـ
تعليقات على تهذيب الكمال / بشار عواد معروف . حفظه الله تعالىٰ . مؤسسة الرسالة ـ
تعليقات على الكاشف للذهبى / محمد عوامة، احمد محمد نمر الخطيب حفظهما الله . مؤسسة دار القبلة / مؤسسة علوم القرآن . الطبعة الاولىٰ ١٤١٣ھ ـ
تعليقات على الكوكب الدرى / محمد زكريا الكاندهلوى ـ رحمه الله تعالىٰ ـ . متوفىٰ ١٤٠٢ھ ـ
تعليقات على لامع الدرارى / محمد زكريا الكاندهلوى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ١٤٠٢ھ / ١٩٨٢م ـ
جامع البيان / محمد بن جرير الطبرى ـ رحمه الله ـ . متوفى ٣١٠ھ . دار المعرفة . بيروت ـ
تفسير البغوى / ابو محمد الحسين ابن مسعود الفراء البغوى الشافعى . المتوفى ٥١٦ھ . ادارهٔ تاليفات اشرفيه ملتان ـ
تفسير عثمانى / شبير احمد العثمانى ـ رحمه الله ـ . تاج كمپنى ـ
تفسير القرآن العظيم /ابو الفداء عماد الدين اسماعيل بن عمر ابن كثير دمشقى ـ رحمه الله ـ . متوفىٰ ٧٧٤ھ . دار احياء الكتب العربية ـ
التفسير الكبير /فخر الرازى ـ رحمه الله ـ . مركز النشر . مركز العلمية الاسلامى ـ
التفسير المظهرى / ثناء الله پانى پتى ـ رحمه الله ـ . دار الكتب العلمية بيروت ـ
الجامع لاحكام القرآن / ابو عبد الله محمد بن احمد الانصارى القرطبى ـرحمه الله ـ. متوفى ٦٧١ھ . دار الفكر بيروت ـ
تقريب التهذيب / ابن حجر عسقلانى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ٨٥٢ھ . دار الرشيد حلب ـ

تكملة فتح الملهم / محمد تقى العثمانى حفظه الله ، مكتبه دار العلوم كراتشى۔
التمهيد لما فى المؤطا من المعانى و الاسانيد / ابو عمر يوسف بن عبد الله بن محمد عبد البر مالكى ـ رحمه الله ـ. متوفى ٤٦٣ ھ . المكتبة التجارية ،مكة المكرمة۔
تهذيب الاسماء و اللغات / محيى الدين ابو زكريا يحيى بن شرف النووى ـ رحمه الله ـ. متوفى ٦٧٦ ھ. ادارة الطباعة المنيرية۔
تهذيب التهذيب / ابن حجر عسقلانى رحمه الله ـ. متوفى ٨٥٢ ھ. دائرة المعارف النظامية . حيدر آباد دكن
تهذيب الكمال / جمال الدين ابو الحجاج يوسف بن عبد الرحمن مزى رحمه الله متوفى ٧٤٢ ھ مؤسسة الرسالة
الثقات لابن حبان / ابو حاتم محمد بن حبان بستى ـ رحمه الله ـ. متوفى ٣٥٤ ھ . دائرة المعارف العثمانية ، حيدر آباد ، ١٣٩٣ ھ ۔
جامع الترمذى / ابو عيسىٰ محمد بن عيسىٰ بن سورة الترمذى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ٢٧٩ ھ .ايچ ايم سعيد كمپنى / دار احياء التراث العربى بيروت ۔
الجرح والتعديل / عبد الرحمن بن ابى حاتم الرازى رحمه الله . المتوفىٰ ٣٢٧ ھ . دار الكتب العلمية بيروت
جمع الجوامع / جلال الدين عبد الرحمن بن ابى بكر السيوطى ـ رحمه الله ـ
حاشية السندى على البخارى / ابو الحسن نور الدين محمد بن عبد الهادى السندى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ١١٣٨ ھ . دار المعرفة .بيروت۔
خلاصة الخزرجى ـ خلاصة تذهيب تهذيب الكمال ـ / صفى الدين خزرجى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ٩٢٣ ھ . مكتب المطبوعات الاسلامية بحلب۔
الدر المختار / علاء الدين محمد بن على بن محمد الحصكفى رحمه الله متوفىٰ ١٠٨٨ ھ . مكتبه علوم فين . كراتشى
دلائل النبوة / ابو بكر احمد بن الحسين البيهقى ـ رحمه الله ـ. المتوفى ٤٥٨ ھ دار الكتب العلمية بيروت الطبعة الاولى ـ
ذخائر المواريث فى الدلالة على مواضع الحديث / عبد الغنى بن اسماعيل بن عبد الغنى النابلسى ـ رحمه الله . متوفى ١٣٤٣ ھ ـ دار المعرفة بيروت ـ
رد المحتار / محمد امين بن عمر بن عبد العزيز عابدين الشامى ـ رحمه الله ـ. متوفى ١٢٥٢ ھ ، مكتبه رشيديه . كوئٹه / دار الثقافة والتراث . دمشق . سوية / دار المعرفة بيروت۔
روح المعانى فى تفسير القرآن العظيم و السبع المثانى / ابو الفضل شهاب الدين سيد محمود آلوسى بغدادى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ١٢٧٠ ھ .مكتبه امداديه .ملتان ۔
سنن ابن ماجه / ابو عبد الله محمد بن يزيد بن ماجه ـ رحمه الله ـ . متوفىٰ ٢٧٣ ھ . قديمى كتب خانه كراچى / دار الكتاب المصرى قاهرة .دار الكتب العلمية بيروت . بتحقيق لحمود محمد محمود حسن نصار ـ
سنن ابى داؤد / ابو داؤد سليمان بن الاشعث السجستانى ـ رحمه الله ـ. متوفىٰ ٢٧٥ ھ . سعيد كمپنى /دار احياء السنة النبوية۔
سنن الدار قطنى / ابو الحسن على بن عمر الدار قطنى رحمه الله . متوفىٰ ٣٨٥ ھ . دار نشر الكتب العلمية .بيروت
سنن الدارمى / ابو محمد عبد الله بن عبد الرحمن الدارمى رحمه الله . متوفىٰ ٢٥٥ ھ ـ قديمى كتب خانه كراچى

سنن سعيد بن منصور / الحافظ سعيد بن منصور الخراسانی رحمه الله . متوفی . دار الكتب العلمية بيروت
السنن الصغریٰ للنسائی / ابو عبدالرحمن احمد بن شعيب النسائی ـ رحمه الله ـ. متوفیٰ ۳۰۳ ھ . نشر السنة ملتان /قدیمی کراتشی ـ
السنن الكبرى للبيهقی / ابو بكر احمد بن الحسين بن علی البيهقی رحمه الله متوفیٰ ۴۵۸ھ . نشر السنة ملتان
سیر اعلام النبلاء / ابو عبد الله شمس الدين محمد بن احمد بن عثمان الذهبی ـ رحمه الله ـ. متوفیٰ ۷۴۸ھ . مؤسسة الرسالة
السيرة الحلبية / علی بن برهان الدين الحلبی ـ رحمه الله ـ. متوفی ۱۰۴۴ھ . المكتبة الاسلامية . بيروت ـ
السيرة النبوية / ابو محمد عبد الملك بن هشام المعافری ـ رحمه الله ـ. المتوفی ۲۱۳ ھ . مطبعة مصطفى البابی . الحلبی ـ
الاشباه والنظائر / ابن نجيم الحنفی ـ رحمه الله ـ. ادارة القرآن کراتشی ـ
شرح ابن بطال / ابو الحسن علی بن خلف بن عبد الملك . المعروف بابن بطال ـ رحمه الله ـ. متوفیٰ ۴۴۹ ھ . مکتبه الرشد . الرياض ـ
شرح الكرمانی / شمس الدين محمد بن يوسف بن علی الكرمانی ـ رحمه الله ـ. متوفیٰ ۷۸۶ھ . دار احياء التراث العربی بيروت ـ
شرح مشكل الآثار / ابو جعفر احمد بن محمد سلامة الطحاوی . المتوفی ۳۲۱ ھ . مؤسسة الرسالة بيروت . الطبعة الثانية ۱۴۲۷ھ ـ
شرح النووی علی صحيح مسلم / ابو زكريا يحيیٰ بن شرف النووی رحمه الله . المتوفیٰ ۶۷۶ ھ . قدیمی کراتشی
صحيح للبخاری / ابو عبدالله محمد بن اسمعيل البخاری ـ رحمه الله ـ . المتوفیٰ ۲۵۶ ھ . قدیمی / دار السلام .رياض ـ
الصحيح لمسلم / مسلم بن الحجاج القشيری النيسابوری رحمه الله . متوفیٰ ۲۶۱ ھ . قدیمی / دار السلام
الطبقات الكبریٰ / ابو محمد بن سعد ـ رحمه الله ـ . متوفیٰ ۲۳۰ھ ـ دار صادر بيروت ـ
عمدة القاری / بدر الدين ابو محمد بن محمود احمد العينی ـ رحمه الله ـ. متوفی ۸۵۵ ھ . ادارة الطباعة المنيرية / دار الكتب العلمية بيروت . الطبعة الاولى ۱۴۲۱ ھ ـ
عون المعبود شرح سنن ابی داود / شمس الحق عظيم آبادی . دار الفكر بيروت ـ
الفتاوی التتارخانية / عالم بن علاء الانصاری الاندر پتی الدهلوی رحمه الله المتوفی ۷۸۶ ھ قدیمی کتب خانه
فتح الباری / احمد بن علی المعروف بابن حجر العسقلانی ـ رحمه الله ـ . متوفیٰ ۸۵۲ ھ ـ دار الفكر / قدیمی کراتشی / دار السلام ـ
فتح القدير / كمال الدين محمد بن عبدالواحد المعروف بابن الهمام ـ رحمه الله ـ . متوفیٰ ۸۶۱ ھ .مکتبه رشيديه / شركة و مطبعة مصطفى البابی الحلبی مصر ـ
فيض الباری / انور شاه کشميری ـ رحمه الله ـ . متوفیٰ ۱۳۵۲ ھ ربانی بکڈپو دهلی ـ
العدة شرح العمدة فی مذهب الامام احمد بن حنبل ـ رحمه الله ـ / بهاء الدين عبد الرحمن بن ابراهيم المقدسی رحمة الله عليه / مكتبة الرياض الحديثة بالرياض ـ

الفتاوی التاتارخانیة
القاموس الوحید / وحید الزمان بن مسیح الزمان قاسمی کیرانوی ـ رحمه الله ـ. متوفیٰ ۱۴۱۵ ھ. /۱۹۹۵م،
ادارہ اسلامیات لاهور۔
الکاشف / شمس الدین ابو عبد الله محمد بن احمد بن عثمان ذهبی ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۷۴۸ ھ۔ شرکة دار القبلة / مؤسسة علوم القرآن۔
الکاشف عن حقائق السنن / شرف الدین حسین بن محمد بن عبد الله الطیبی ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۷۴۳ ھ،
ادارة القرآن کراچی۔
کتاب الام / امام محمد بن ادریس الشافعی رحمه الله، متوفی ۲۰۴ ھ، دار المعرفة، بیروت، طبع ۱۳۹۳ ھ / ۱۹۷۳م
کتاب الخراج / الامام ابو یوسف، یعقوب القاضی ـ رحمه الله۔، المتوفی ۱۸۲ ھ۔
کتاب الضعفاء الکبیر / ابو جعفر محمد بن عمر بن موسی بن حماد العقیلی المکی رحمه الله متوفیٰ ۳۲۲ ھ، دار الکتب
کتاب المبسوط / الامام شمس الائمة ابو بکر محمد بن ابی سهل السرخسی ـ رحمه الله ـ المتوفی ۴۹۳ ھ، دار المعرفة / مکتبہ رشیدیہ کوئٹہ / مکتبة حبیبیة کوئٹه۔
کشف المغطا عن وجه المؤطا علی هامش المؤطا / اشفاق الکاندهلوی ـ رحمه الله۔
الکوکب الدری / حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۱۳۲۳ ھ، ادارة القرآن کراچی۔
لامع الدراری / رشید احمد گنگوهی ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۱۳۲۳ ھ، مکتبہ امدادیه مکة المکرمة۔
لسان العرب / ابو الفضل جمال الدین محمد بن مکرم ابن منظور الافریقی المصری ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۷۱۱ ھ، نشر ادب الجوزة، قم، ایران۔
المؤطا / مالک بن انس ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۱۷۹ ھ۔ دار احیاء التراث العربی بیروت۔
المتواری علی تراجم ابواب البخاری / ناصر الدین احمد بن محمد المعروف بابن المنیر الاسکندرانی ـ رحمه الله۔، متوفیٰ ۶۸۳ ھ۔ مظهری کتب خانه کراچی۔
مجمع بحار الانوار / علامه محمد طاهر پٹنی رحمه الله، متوفیٰ ۹۸۲ ھ، دائرة المعارف العثمانیه حیدرآباد
مجمع الزوائد / نور الدین علی بن ابی بکر الهیثمی ـ رحمه الله ـ، متوفیٰ ۸۰۷ ھ، دار الفکر۔
المجموع ـ شرح المهذب ـ / محیی الدین ابو زکریا یحییٰ بن شرف النووی رحمة الله علیه، متوفی ۶۷۶ ھ، شرکة من علماء الازهر / دار الفکر بیروت۔
مجموعة الفتاوی / ابو الحسنات عبد الحیی الکهنوی، متوفی ۱۳۰۴ ھ، ایچ ایم سعید کراچی۔
المحلی / ابو محمد علی احمد بن سعید بن حزم رحمة الله علیه، متوفی ۴۵۶ ھ ـ المکتب التجاری بیروت / دار الکتب العلمیة بیروت۔
مختار الصحاح / محمد بن ابی بکر بن عبد القادر الرازی رحمة الله علیه، متوفی ۶۶۶ ھ، دار المعارف۔
المدونة الکبری / مالک بن انس رحمة الله علیه، متوفی ۱۷۹ ھ، دار صادر، بیروت / مکتبة نزار مصطفی الباز، مکة المکرمة الریاض۔
مرقاة المفاتیح شرح مشکوة المصابیح / نور الدین علی بن سلطان القاری رحمة الله علیه، متوفی ۱۰۱۴ ھ، امدادیه ملتان / مکتبه رشیدیه کوئٹه۔

المستدرک علی الصحیحین / ابو عبد اللہ محمد بن عبد اللہ الحاکم النیسابوری رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۴۰۵ھ، دار الفکر۔
مسند احمد / احمد بن حنبل رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۲۴۱ھ، المکتب الاسلامی، دار صادر بیروت۔
مصباح اللغات / ابو الفضل عبد الحفیظ البلیاوی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۱۳۹۱ھ، مکتبہ برھان، دھلی۔
المصنف لابن ابی شیبۃ / عبد اللہ بن محمد بن ابی شیبۃ المعروف بابی بکر بن ابی شیبۃ رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۲۳۵ھ، دار الکتب العلمیۃ بیروت / دار قرطبۃ، بیروت۔
المصنف لعبد الرزاق / عبد الرزاق بن ھمام صنعانی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۲۱۱ھ، مجلس علمی، کراتشی۔
معالم السنن / الامام ابو سلیمان حمد بن محمد الخطابی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۳۸۸ھ، مطبعۃ انصار السنۃ المحمدیۃ۔
معجم البلدان / ابو عبد اللہ یاقوت الحموی الرومی رحمۃ اللہ علیہ متوفی ۶۲۶ھ، دار احیاء التراث العربی، بیروت
المعجم الکبیر / سلیمان بن احمد بن ایوب الطبرانی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۳۶۰ھ، دار الفکر۔
المغنی / موفق الدین ابو محمد عبداللہ بن احمد بن قدامۃ رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۶۲۰ھ، دار الفکر۔
المغرب / ابو الفتح ناصر الدین المطرزی۔ رحمہ اللہ۔، ادارۃ دعوۃ الاسلام کراتشی۔
مقدمۃ لامع الدراری / محمد زکریا کاندھلوی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۱۴۰۲ھ، المکتبہ امدادیہ مکۃ المکرمۃ
مختصر المعانی / سعد الدین التفتازانی، المتوفی ۷۹۱ھ، قدیمی کراتشی۔
مکمل اکمال الاکمال / ابو عبد اللہ محمد بن محمد بن یوسف السنوسی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۸۹۵ھ، دار الکتب العلمیۃ، بیروت۔
موسوعۃ النحو والصرف والاعراب / الدکتور امیل بدیع یعقوب، انتشارات استقلال للملایین، الطبعۃ الاولی ۱۹۸۸م، بیروت / دار العلم، ایران۔
میزان الاعتدال فی نقد الرجال / شمس الدین محمد احمد بن عثمان الذھبی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۷۴۸ھ، دار احیاء التراث العربیۃ، مصر۔
نصب الرایہ فی تخریج احادیث الھدایۃ / جمال الدین ابو محمد عبداللہ بن یوسف الزیلعی، المتوفی ۷۶۲ھ، مؤسسۃ الریان، بیروت، الطبعۃ الاولی ۱۴۱۸ھ۔
النھایۃ فی غریب الحدیث والاثر / علامہ مجد الدین ابو السعادات المبارک بن محمد ابن الاثیر رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۶۰۶ھ، دار احیاء التراث العربی بیروت / دار المعرفۃ بیروت الطبعۃ الاولی ۱۴۲۲ھ
الوجیز فی اصول الفقہ / الدکتور عبد الکریم زیدان، نشر احسان للنشر والتوزیع طھران، ایران۔
وفیات الاعیان / شمس الدین احمد بن محمد المعروف بابن خلکان رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۶۸۱ھ، دار صادر بیروت۔
الھدایۃ / برھان الدین ابو الحسن علی بن ابی بکر المرغینانی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۵۹۳ھ، مکتبہ شرکت علمیہ، ملتان / ادارۃ القرآن کراتشی۔
ھدی الساری (مقدمۃ فتح الباری) / ابن حجر عسقلانی رحمۃ اللہ علیہ، متوفی ۸۵۲ھ، دار الفکر، بیروت۔
ہزار سال پہلے / مناظر احسن گیلانی رحمۃ اللہ علیہ، بیت العلم کراچی۔